اوټوبيوګرافي

# زما ژوند

## شاعري او ليکوالي



عبدالباري جهاني

بسم الله الرحمن الرحیم



## د کتاب پېژندنه


❁ د کتاب نوم: زما ژوند، شاعري او ليکوالي

❁ ليکوال: عبدالباري جهاني

❁ خپرندوی: صداقت خپرندويه ټولنه- کندهار

❁ چاپ کال: ۱۳۹۸ ش./۲۰۱۹ م.

❁ چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه

❁ کچه: ۲۱×۱۳/۵۰ سانتي متره

❁ د مخونو شمېر: ۳۱۲

❁ د خپرونو لړ: ۳۳۸


**د تر لاسه کولو ځای:**

د تر لاسه کولو ځای:


**صداقت خپرندويه ټولنه**

کندهار - افغانستان

اړيکي: ۰۷۰۰۳۰۹۲۴۴

ايميل: sadaqat.books@gmail.com

# فهرست

# زما ژوند، شاعري او لیکوالي

## زما کورنۍ شجره:

زما په باره کي که ما پخپله او که زما خواخوږو څه لیکلي دي، نو کیسه له دې ځایه پیل کیږي چي عبدالباري جهاني په (۱۳۲۶ش.) کال د کندهار د بامیزیو په کوڅه کي د حاجی عبدالاحمد تاجر په کور کي، چي متوسط ژوند یې درلود، زیږیدلی دی او بیا نو زما د ژوند حالات ورپسي راځي. حقیقت خو دا دی چي زه په ژوند کي داسي کارنامه نه لرم چي په باب یې څه ولیکم او یا په لیکلو، یادولو او یا افتخار و ارزي. زه چي څه لیکم نو یوازیني علت یې زما د خواخوږو دوستانو او ملګرو، په تېره بیا د انجنیر محمد صدیق ظهیر، تر اندازې زیات فشار او ټینګار دی چي زه یې د خپل ژوند لیک، ادبي او تحقیقاتي هلو ځلو او سترګو لیدلو حالاتو په باب څه لیکلو ته مجبور کړی یم. د خپل ژوند په باب مي د څه لیکلو یو علت ښایي دا هم وي چي تر او سه پوري چي افغانانو د خپل ژوند او حالاتو په باب څه لیکلي او ما لوستلي دي نو زیاترو یې ځانونه، تر هغه چي دي، ډېر غټ معرفي کړي دي، یا یې د نورو کارنامې، چي د دوی ونډه به ښایي پکښې لږ وه، ځانونو ته منسوبې کړي دي او یا یې د خپلو تېروتنو پرده د نورو پر غاړه اچولې وي. ما،

لکه مخکې چې مې وویل، په ژوند کې کوم لوی کار یا خدمت نه دی کړی او کوښښ به کوم چې څه مې کړي. اورېدلي او یا لیدلي دي هغه کټ مټ ولیکم. د ژوند حالات مې په منظم شکل نه دي بیان کړي؛ کله ډېر مخ ته تللی او بیرته شاته ګرځېدلی یم. دا کار مې هم قصدي کړی او دا سبک یو ډول دلچسپ راته ښکاره سوی دی. بل چې مې هر څه را په یاد سوي هغه مې لیکلي دي او ښایي د غه ډول لیکني هم ترتیب یو څه خراب کړی وي. او دریم علت یې دا دی چې غوښتل مې لیکنه مې د نورو کسانو له لیکنو سره یو څه توپیر ولري.

د یوه حساب له مخې د (۱۹۴۸م.) کال په شاوخوا کې، چې دقیقه نېټه یې راته معلومه نه ده، د کندهار د ښار د دریمې ناحیې د بامیزیو په کوڅه کې، په یوه لوی تاریخي کور کې، چې ویل کېږي د احمد شاه بابا د صدراعظم شاه ولي خان بامیزایي کور وو او زموږ په وخت کې په بادام خانه مشهور وو، دنیا ته راغلم. په شپږ کلنۍ کې یې مکتب ته شامل کړم. دا کیسه مې لږ، لږ په یادېږي چې مورنۍ انا مې، چې زه یې زوی کړی وم، په هغه ورځ زما کالي زما مور ته ورتسلیم کړل. په سرو ساندو یې ژړل او ویل یې ماته فاتحه راکړئ؛ عبدالباري مړ سو. زما مور چې هر څه عذرونه ورته کول او ورته ویل یې چې مکتب ته زما په شاملولو کې هغه هیڅ ګناه نه لري او ټول اختیار د هلک د پلار دی؛ انا ته به مې چا قناعت ورکړی وای.

زما د پلار د کاکا زوی، محمدعمر اکبري، چې د غزني ولایت اوسیدونکی وو، د (۱۳۳۶ش.) څخه تر (۱۳۴۲ش.) پوري د کندهار په ګمرک کې مامور وو. د هغه مور چې زما د پلار د کاکا مېرمن او په قام وردګه وه او موږ به کوکو بلله، د خپلې خسرګنۍ په باب د کیسو کولو ډېره شوقي وه. عمر یې د اویا کلونو څخه تېر وو، خو سړي یې د قیافې څخه لا هم اټکل

کولای سو چي په ځوانی کي به بې حده ښکلې وه.

کوکو زما څخه يوه ورځ پوښتنه وکړه چي زما د پلار نوم څه دی؟

حاجي عبدالاحمد.

د نيکه نوم؟

عبدالاحد.

د ور نيکه نوم؟

نه پوهيږم.

ـ دا خو ډېر د شرم ځای دی، چي ستا د خپل ورنيکه نوم نه دی زده. ته به سبا د سيالانو په يوه مجلس کي د خپلي کورنۍ په باب څه وايې؟ ځکه چي ستا سيالان به، د افغانانو د کلتور سره سم، هريو، د خپلو کورنيو په باب ډېر زيات او مفصل معلومات ولري. د دې څخه معلوميږي چي تا ته به د خپلي کورنۍ په باره کي هيڅ ډول نور معلومات هم نه وي.

ـ دونه پوهيږم چي پلار مي په ډېره لوړه ځواني کي، چي عمر به يې ښايي شپاړسو کلونو ته هم نه وو رسېدلی او يا به رسېدلی وو، په ډېره خواشيني او شين زړه له غزني څخه را وتلی او د خپل ټاټوبي د پرېښودلو په وخت کي يې زړه دونه له غوسې څخه ډک وو چي تر اوسه نه غواړي د غزني نوم پر خوله راوړي.

ـ د پلار خبري دي پر ځای پرېږده خو ته بايد دونه پوه سې چي ستا ور نيکه ميرزا خالقداد نوميدی چي د خپلو پنځو زلميو زامنو سره د اميرشيرعلي خان په بند کي مړ سو. له هغه څه زما مېړه ميرزا اسلم خان، د هغه ورورا او زما دوهم مېړه محمداکبر خان او ستا نيکه عبدالاحد، ماشومان پاته سول. ستا تر نيکه او د ميرزا خالقداد پلار ميرزا خدايداد نوميدی، د اولادونو په باره کي يې معلومات نه لرم. د هغه پلار حاجی دين محمد يا ميرزا دين محمد

نومیدی، چې وایي د تیمورشاه په دربارکې یې د میرزا په حیث وظیفه درلوده او دیني عالم هم وو. زه نوره نه پوهیږم خو په کورنۍ کې داسي ویله کېدله چې د میرزا دین محمد پلار، له خپلو دریو یا څلورو ورونو سره، له هندوستانه راغلی او د احمدشاه بابا په دربار کې یې میرزایي کوله.

کوکو د خپل شخصي ژوند له کیسې سره، چې په ضمن کې د دې د ښایست او ښکلا افسانه هم وه، ډېره مینه درلوده. کوکو ویل "زه څوارلس کلنه یا پنځه لس کلنه پېغله وم، د نجونو په ټولۍ کې لوڅ مخ وتلې وم. نا بوبره پریوه سکاڼ آس باندي سپاره زلمي ولیدلم؛ ما خپل مخ په پلو پټ کړ؛ هغه زلمی سمدستي له سترګو پناه سو. زه خبره نه وم چې هغه سپاره زه له لیري څارلې او لا یې ښایي څو ځله نوره لیدلې وم او زموږ د قلا دروازه یې په نښه کړې وه. ښه ګړی وروسته هغه پرآس سپاره زلمي زموږ د قلا مخي ته د توپک ډزي وکړې. د دې معنی څه وه؟ زه باید یا خپل پلار هغه زلمي ته واده کړې او یا یې د هغه زلمي تر زړه ګولۍ ایستلې وای. زما پلار او دوه ورونه مي، له توپکو سره، د قلا مخي ته ورووتل. زړه ور زلمي له ځایه ټکان ونه خوړ. په هغه پسي یو بل سپور را ورسیدی او زما پلار ته یې وویل چې د ډزو خاوند میرزا اسلم خان، په خټه لودین او د غزني اوسیدونکی دی. ځرنګه چې میرزا اسلم خان هم ډېر شته من او هم سیال وو او وژلو یې ډېر لوی قومي فساد پېښاوه نو زما پلار په ډېر تریو تندي وویل چې زلمی دي د خپلو قومي سپین ږیرو او خپلوانو سره، لس ورځي وروسته، د وروستۍ فیصلې له پاره راسي. لس ورځي وروسته چې زما پلار، په قومي جرګه کې، د میرزا اسلم خان له پاره هرڅومره سخت شرایط کښېښودل هغه ټول ومنل او زه هغه ته واده سوم. میرزا اسلم خان دا وخت څلوېښت یا پنځه څلوېښت کلن وو، یعني څه باندي پنځه ویشت کاله تر ما مشر وو او یوه بله ځوانه او ښایسته

مېرمن یې هم درلوده.

میرزا اسلم خان شپږ اووه کاله وروسته تقریبًا په ځواني کي وفات سو او زه، له قومي عنعنې او رواج سره سم، د هغه کشر ورور محمد اکبرخان ته واده سوم. محمد اکبرخان د اعلیحضرت امان الله خان په حکومت کي یو عالي رتبه مامور وو او د هغه له ډېرو ټینګو طرفدارانو څخه وو. کله چي غازي امان الله خان له کندهاره څخه د کابل پر لور لښکرکښي وکړه او د غزني په محاصره کي ناکام سو او بیرته یې مخ د کندهار پر لور ونیوی نو د سقاو د زوی عسکرو زموږ او د میرزا اسلم خان قلاوي چورکړې. زما مېړه یې سمدستي اعدام کړ. زموږ پر کورنۍ باندي د سقاویانو ظلمونه د یادولو نه دي. زموږ د قلا ګانو د خونو چتونه زرین وه او د دروازو د ځنځیرونو او زلفیو رنګونه مو هم زرین وه. سقاویانو فکر کاوه چي دا به ګوندي طلا وي. د دروازو ټول ځنځیرونه یې د برچو په زور و ایستل او چتونه یې د توپکو په ډزو غارغار کړل. د وریجو، غنمو، بورې او چایو بوجۍ، چي ورسره وړلای یې نه سوای، ټولي په برچو وڅیرلې او مواد یې پر مځکه سره ګډ کړل او بیا نو پکښي وختل. ماشومان یې، چي له ویري رېږدېدل او د کورنۍ د ښځو او خپلو میندو په بغلونو ننوتلي ول، هر یو درې څلور څپېړې ووهل او په کور کي د مرګي خاموشي خپره سوه"

زما نیکه عبدالاحد، تر دې پینځلس کاله مخکي، چي عمر یې لا پنځوسو کالو ته نه وو رسیدلی، وفات سوی وو. زما پلار لس کلن او د هغه مشر زوی عبدالصمد، چي وروسته په مامور صمد مشهور سو، زما له پلار څخه څه باندي شپاړس کاله مشر وو. په هغه اندازه چي زما پلار له سبق، حساب او ښه خط سره مینه درلوده او تر پنځم ټولګي پوري یې هر کال انعامونه او نغدي جایزې تر لاسه کړي وې؛ په هغه اندازه زما مشر کاکا د قمار او کاکه

ګیو سره مینه درلوده او د پلار ډېري پیسې یې په قمار وهلي وې. څرنګه چې پلرونه په طبیعي ډول له اهل او صالح اولاد سره زیاته مینه لري، نو له هغوی سره د خپلو ورونو، په تېره بیا مشر ورور، حسد او کینه هم په دغه اندازه طبیعي وي. زما د نیکه د وفات څخه وروسته، زما کاکا عبدالصمد زما له پلار څخه هیڅ ډول ظلم او تېری ونه سپماوه او هغه یې بالاخره په پنځم ټولګي کي د مکتب پرېښودلو ته مجبور کړ.

زما پلار یوه ورځ له کوره ووت؛ له سهاره تر ماښامه یې سفروکړ او ماښام، لمر لویده یې، ځان د هزاره ګانو یوه کلي ته، چې، پلار مي ویل، کورونو یې د غارونو شکل درلود او له سهاره تر ماښامه به له شنه دوده ډک ول، ورساوه. د هزاره ګانو په دې کلي کي یې پنځه یا شپږ شپې تېري کړي وې او تر مرګه به یې د هغوی د بې ساري او بې مقصده مېلمه پالني یادونه کوله. پنځمه یا شپږمه ورځ، چي زما کاکا او زموږ د ټبر نور لوی او واړه زما د پلار له پیدا کولو څخه نا امیده سوي ول، هغه له یوې قافلې سره، چې له غزني څخه د کندهار او وروسته د چمن پر لوري روانه وه، ملګری سو. په دې قافله کي، تصادفاً، یو سوداګر وو چي هم په قام لودین او هم زما د نیکه ډېر نیژدې ملګری وو. په لومړي سر کي یې غزني ته زما د پلار د بیرته بېولو او خپلي کورنۍ ته د سپارلو کوښښ وکړ خو کله چې یې زما د پلار زارۍ او ژړاوي ولیدلې نو یې زړه وریاندي وسو او له ځان سره یې په قافله کي ملګری کړ. زما له پلار څخه د ورځو او شپو حساب هېر وو خو ویل به یې چې ښایي تر شلو ورځو پیاده او سپاره مزل څخه وروسته د چمن ښار ته رسیدلی وي.

زما پلار کیسه کوله چي "نومړي سوداګر، د چمن په ښار کي، د حاجي شیر محمد کاکړ په نوم یوه شته من سوداګر ته، چي د هندوستان په اصطلاح

کوټۍ والاوو، وسپارلم او ډېر زيات سپارښت يې ورباندي وکړ. حاجي شير محمد نه پوهيدی چي زما سره څه وکړي او بالاخره يې په اشپز خانه کي مصروف کړم. شپږ اووه مياشتي وروسته مي په کوټۍ کي، چي هيڅوک راته متوجه هم نه وه، د حاجي شيرمحمد د هندو منشي لويه حسابي غلطي را وګرځوله. په مجلس کي د ناستو کسانو سترګي رډي را وختلې؛ ځکه چي هيڅا فکر نه کاوه چي يو پنځلس کلن يا شپاړس کلن مسلمان هلک دي د يوه زاړه تجربه کار هندو غلطي را وګرځوي. کله چي ناستو کسانو زما څخه د خط او کتابت پوښتنه وکړه او ويې ليدل چي خط مي د ښايست او املاء له مخي په ټول چمن کي ساری نه لري نو په هغه ورځ په کوټۍ کي ميرزا سوم. دوه کاله وروسته مي، په ښه تنخوا، د دريو کوټيو کارکاوه؛ پيسې مي تر حساب تېري سوې او تر ډېره وخته په چمن کي په کوچني ميرزا مشهور وم"

حاجي شيرمحمد کاکړ دا وخت لا لومړی واده هم نه وو کړی. زما پلار ويل چي دوه يا درې کاله وروسته هغه واده وکړ او لومړۍ مېرمن يې، چي د عمه لور يې کېدله، له کندهاره را وستله. د دې مېرمني لومړۍ لور يې په وړوکوالي کي مړه سوه. دوهمه لور يې چي زما مور کيږي په شپاړس کلنۍ کي زما پلار ته په نکاح کړه. په دې حساب نو زما پلار زما تر مور زيات وکم دېرش لا ښايي پنځه دېرش کاله مشر وو. البته له واده څخه ډېر کلونه مخکي يې د کندهار د باميزيو په کوڅه کي زما د نيکه په کور کي، چي د احمدشاه بابا د صدراعظم شاه ولي خان باميزايي دربار وو او په وروسته کي په بادام خانه مشهور سوی وو، هستوګنه غوره کړې وه.

زما پلار سره له هغه چي نهايت پرهيزګار او متدين سړی وو او په ژوند کي يې چا دروغ، غيبت، سپکه خبره او قسم خوړل نه وه اوريدلي، خو د خپل مشر ورور ظلمونو او تېريو دونه ضدي سړی ورڅخه جوړ کړی وو چي تر

مرګه یې په غزني کې حتی یوه شپه هم تېره نه کړه او د خپلې پلرنۍ قلا دید یې پر ځان حرام کړی وو. یو وخت، د ژمي په یوه ساړه موسم کې، یې له کندهار څخه کابل ته د سفر په ترڅ کې شپه په غزني کې سوې وه، کاکا ګانو مې ډېرې زارۍ ورته کړې وې او حتی له ځانونو سره یې یو مشهور سید هم ورته راوستلی وو، خو زما پلار یې مرکه نه وه منلې، له هغوی سره خپل کورته نه وو تللی او شپه یې په هوټل کې تېره کړې وه.

زه به د پینځو کالو وم چې زما مشر کاکا مامور صمد کندهار ته راغی. د هغه د ټول انتظار په خلاف، زما پلار زما د مور مخ ور ښکاره نه کړ. د مامور صمد ذاتي غرور، چې دا وخت په غزني کې یو زورور قومي مشر لا هم وو، دا سپکاوی نه سو منلای او په هغه سبا بیرته غزني ته روان سو او بیا یې هیڅکله زموږ د کور د لیدلو عزم ونه کړ.

# زه او زما ژوند

ما داسي څوک نه دی لیدلی چي ژوند یې، زما په څېر، تقریبا ټول د تصادفاتو محصول وي. زما چي په ژوند کي هر څه ښېګڼې په برخه سوي دي هغه د قسمت او اسمان پېرزویني دي؛ او چي هر څه طلايي فرصتونه مي له لاسه ورکړي دي هغه زما د بې ځایه احساساتو، نیمګړیو قضاوتونو او غلط انتخاب نتیجه ده. ښایي دغه علت وي چي په شعر کي مي بخت، اسمان او قسمت، پرته له دې چي زما اراده پکښې شامله وي، هر ځای انعکاس کړی او په وصل او هجران کي را سره ملګري دي. څه نیمګړی شعر چي لیکم دا هم د اسمان او قسمت پېرزوینه ده او که مي خپله اراده هم پکښې شامله وای او لږ زیار مي ګاللی وای، نو زه یقین لرم چي، که نور هیڅ هم نه وای، نن به ډېر لوی شاعر وای. داچي ولي داسي پېښه سوې ده په علت یې چنداني نه پوهېږم او د ژوند په دې وروستیو کلونو کي مي د فکر کولو ډېر وخت د ځان په ملامتولو تېرېږي. د ژوند او وخت اهمیت ته هغه وخت متوجه سوم چي عمر مي تر شپېتو کلونو تېر او اوبه له ورخه اوښتي وې. ځوان نسل ته مي توصیه دا ده چي وخت تر سرو زرو ډېر قیمتي او ارزښتناک دی؛ ځکه چي سره زر قیمت لري او وخت بیه نه لري. هره ثانیه چي تېرېږي بیا په میلیاردونو ډالرو نه راګرځي.

په هغو کسانو مي ډېر کست کېږي چي د پلرونو د تعلیم او تربیې، د میندو د سواد او زده کړي، د اکاګانو، ماماګانو او مشرانو د پوهي، تعلیم او په

کورونو کي د کتابونو لرلو کیسې کوي. ما په دې لړ کي هیڅ نه درلودلي او نه لیدلي دي. په کور کي مي یوازي قرآن شریف لیدلی وو. پلار مي د تعلیم او سواد بیحده زیات شوقي وو، خو نه یې د اولاد د روزني طرز او طریقه زده وه او نه یې زما روزني ته چنداني وخت پیدا کولای سوای . له سهاره ترماښامه د تجارت او وچي مېوې په کاروبار پسي ورک وو او زیاتره وخت به یې په پاکستان او ایران کي په سفرونو تېرېدی. د مور پلار مي، حاجي شیرمحمد، د الف لیله و لیله، چي خلکو به الپ لیلا باله، د پښتو نکلونو منظوم کتاب درلود. زما د مور پلار دوې ښځي درلودلې او د خپلي ځواني او گراني مېرمني او د هغې د دوو لوڼو د خوشالولو او سات تېري له پاره به یې له دغه کتاب څخه نکلونه ورته لوستل. یوه ورځ مي دا کتاب له ځان سره اخیستی او په ډېر شوق مي لوستی. پلار مي، د نکلونو د کتاب د لوستلو له امله، نه یوازي را باندي په غوسه سو بلکه یو څه یې لا وډبولم. ویل یې ما چي ویل د مکتب سبقونه وایې او داسي په شوق غلی ورته ناست یې. ته د سیف الملوک نکلونه لولې. کتاب مي، په سرو سترگو، بیرته خپل نیکه ته ورتسلیم کړ؛ او مهربانه نیکه مي د کیسې په اورېدلو ډېر خواشیني سو.

په اووم ټولگي کي مي پټه مینه ناول، چي له ترکي ژبي څخه ترجمه سوی وو او د نورمحمدتره کي د بنگ مسافري د ښوونځي له کتابخانې څخه واخیستل او ومي لوستل. د پټې میني داستان مي دونه خوښ سو او د ناول د انتظار "suspense" برخه مي ، چي په ناول او داستان کي لوی کمال دی، دونه خوښه سوه چي خوند مي تر اوسه په خوله کي دی. په نهم ټولگی کي به وم چي د خپل کاکا په کور کي، چي زموږ سره دېوال په دېوال اوسېدی، د کتابونو یوې دکي الماری ته متوجه سوم. په هغه وخت کي په افغانستان، په تېره بیا کابل کي، د جنایي ناولونو لوستل ډېر باب ول او لوستل یې دونه

شیرین وه چي سرې به یې له هره کاره ایستلی وو. که دروغجن نه سم په یوه کال کي به مي تقریباً نیمه الماری کتابونه لوستي وي. هغو کتابونو که نوره هیڅ ګټه نه وي راته کړې نو د املاء په برخه کي یې دونه مرسته راسره وکړه چي تر ډېرو سیلانو یې لوړ کړم او د کوڅې له بېسوادو همزولو سره یې له ایله ګرځېدلو څخه را وګرځولم. او زما سره یې د کتاب لوستلو شوق او حوصله پیدا کړه.

زما استاد او ملګري محمدانور نومیالي کیسه کوله چي یوه ورځ مي په کندهار کي د یوه دوست په دوکان کي د طلوع افغان اخبار لوست. یوه تاجر حاجي پوښتنه راڅخه وکړه چي دا اخبار لوستل څه ګټه کوي. مه سمدستي ورته وویل چي بېغ مه لره حاجي صاحب په خوند یې مه سې خبر چي ډوډوی به پکښي رېزه کړې.

په یوولسم ټولګي کي مي ایندراګاندهي ته، چي وروسته د هند صدراعظمه سوه، د خپل پلار جواهرلال نهرو لیکونه یا نامه های پدری به دخترش او د محمدنادرایوبي سیاسي نظریات او اقتصادي نظریات کتابونه ولوستل. تر دې وروسته مي چي په کورکي، په پټه او ښکاره، هرڅه پیسې لاسته راتللي هغه مي د کتابونو په رانیولو لګولې. تاریخ قرون وسطی، تاریخ جهان باستان، منشاء انسان، منشاء نژادی های انسان، مکتب های سیاسي، د ماکسیم ګورکي ناولونه، د جک لندن ناولونه او دغه راز چېي ادبیاتو بازار درلود؛ او موږ هم په بشپړه اشتها لوستل. د معلوماتو یوه بله سرچینه، چي ډېر زیات ځوانان یې چپي افکارو او د شوروي طرفداري ایډیالوژی ته تشویقول، د اېران د "توده" په نوم ګوند کتابونه او خپروني وې، چي په قاچاقي ډول له شوروي اتحاد او اروپا څخه افغانستان ته داخلېدل. توده ګوند، چي مرکز یې په ختیځ آلمان کي وو، پخپله په پټه

2 سترګو د شوروي اتحاد د دولت او د هغه د کمونیستي ایډیالوژۍ او تبلیغاتو پیروي کوله. د توده ګوند د دنیا، مسایل بین المللي او ماهنامه مردم په نوم درې خپروني درلودلې، چې په ډېر میده خط پر ډېرو نازکو کاغذونو چاپېدلې. دا کتابونه او نشریات به معمولاً هغو محصلینو چې په شوروي اتحاد کې یې تحصیل کاوه له ځانونو سره د رخصتیو په شپو ورځو کې راوړل؛ او موږ به تر ستړي مسې وروسته معمولاً د دغو نشریاتو پوښتنه ورڅخه کوله. ما پخپله او زما په څېر ډېرو نورو کسانو، به دا نشریات په دومره شوق او احساساتو لوستل چې یوه کرښه به مو هم بېله لوستلو نه پرېښودله. په افغانستان کې د دغو کمونیستي او چپي افکارو د نفوذ یو اساسي علت د وخت د واکمنانو مطبوعاتي سانسور وو، چې زیاتره وختونه به یې هیڅ ډول منطق او پالیسي هم نه درلوده. بس چې هر څه به یې خوښ نه سول هغه یې خپرېدلو ته نه پرېښودل. ځوانو منورینو، چې د ښوونځي پر درسونو برسېره یې نورو علمي معلوماتو او اطلاعاتو ته اړتیا درلوده، هر ډول چپي آثار چې له شوروي اتحاد او چین څخه واردېدل په شوق او علاقه لوستل. چین هم، چې په سیمه کې یې خپلې ګټې درلودلې او ورځ په ورځ په یوه لوی طاقت تبدیلېدی، په وروسته کې، د شوروي اتحاد په څېر فعال سو او د شعله جاوید د ګوند د غړو پر لاس یې خپل تبلیغاتي کتابونه او د چین د کمونیستي ګوند د مشر او کمونیستي حکومت مؤسس ماوتسه تونګ آثار افغانستان ته لېږل. چپي تبلیغات د افغانستان په منورینو کې د ځنګله د اور په څېر خپرېدل؛ او د افغانستان واکمنانو یې د معقولې دفاع له پاره هیڅ ډول کار نه کاوه او یا یې له وېرې او یا بې صلاحیتۍ په وجه نه سو کولای. که د افغانستان واکمنانو د هر ډول اجتماعي او فرهنګي تحول څخه دونه بېځایه وېره نه درلودلای او د مشروطه غوښتونکو، ویښ زلمیانو، وطن ګوند او

نورو ملي او تحول غوښتونکو ګوندونو او اشخاصو ته یې د طبیعي ودې کولو زمینه برابره کړې وای نو په هیواد کې ښایي نه د چپي او نه د هغه په مقابل کې اخواني تبلیغاتو ته دومره تنده موجوده وای چې تر لسو کالو په کمه موده کې یې لمن دونه پراخه سوه چې مخ یې چا را ګرځولای نه سو. ما چې یو وخت د ویښو زلمیانو د انګار اخبار او د ډاکټرعبدالرحمن محمودي د ندای خلق اخبار ولوستی نو په ریشتیا هم په دې پوه نه سوم چې د ظاهرشاه نظام او یا د هغه مقتدرو اکاګانو او کورنۍ دا اخبارونه ولي بندول. ځکه چې ما په هغو اخبارونو کې یوه داسي کلمه ونه لیده شاهي نظام ته یې خطر متوجه کړی وي.

زما په ټول ژوند کې به زما یوه لویه نېکمرغي دا وي چې له ډېري لومړۍ ځوانۍ څخه مي له لوست سره بې اندازې مینه درلوده او دا مینه اوس هم را سره ژوندۍ ده. په ډېره لومړۍ ځواني کې مي واده وکړ او خپلي مېرمني ته مي د واده په دوهمه شپه وویل چې زه په ژوند کې له کتاب سره زیاته مینه لرم او ښایي دا مي ډېر لوی عیب وي؛ ځکه چې د کتاب لوستل مي کله، کله د شپې تر ډېره ناوخته پوري ویښ ساتي. زما دوهمه لویه نېکمرغي د مکتب په دوره کې او په وروسته ژوند کې ښه ملګري او همصنفیان ول. که مي دا ملګري نه درلودلای نو ښایي ښوونځی مي بېخي پای ته رسولی نه وای او ژوند به مي بالکل بل شکل او مسیر درلودلای. زما د مکتب ملګري هر یو: انجنیر محمدصدیق ظهیر، محمدمعصوم هوتک، انجنیر عبدالهادي دستیار، نعمت الله عزیز، د صوفي ولي محمد زوی شېر احمد، چې موږ به شېرماما باله، هریو زما په ژوند کې مثبته اغېزه لري. له لوست او په تېره بیا جدي کتابونو لوستلو، سره مینه مي هم له همدغي ډلي څخه زده کړې او وروسته مي پاللې ده. زما خپلو ځوانو دوستانو ته، د یوه سپین ږیري په

حيث، دا توصيه ده چي د ملګرو په انتخاب کي له احتياط څخه کار واخلي. ښه ملګري تر هر ډول سرمايې او جايداد ارزښتمن دي.

انجنير محمدصديق ظهير، چي په خپل مسلک کي يې تحصيلات، د ډاکټرۍ تر کچي پوري، په جاپان کي بشپړ کړي دي، له وړوکوالي څخه تر اوسه پوري دو نه آرام راغلی دی چي په اصطلاح په ژوند کي يې مېږی نه دی آزار کړی. له ډېري وړوکوالي څخه يې له مطالعې سره مينه درلوده. په ډېره وړوکوالي، يعني د مکتب په اووم او نهم ټولګي کي، يې د ماکسيم ګورکي "دوران کودکي" او "کانوالوف" په نوم لوی ناولونه له فارسي څخه په پښتو ژبه وژباړل او د طلوع افغان په ورځپاڼه کي يې خپاره کړل. که ووايم چي زما د ترجمې استاد هم ظهيرصاحب دی نو پر ځای خبره به وي. له څه باندي پنځه ويشتو کالو راهيسي يوه بل ته په نسبتاً نيژدې فاصله کي ژوند کوو او په هفته يا دوو هفتو کي يو ځل له نيژدې سره وينو. تر اوسه يې له ښو مشورو او علمي صحبتونو څخه ګټه اخلم.

بل ملګری مي نعمت الله عزيز، چي موږ د ښوونځي په کلونو کي نعمت باله، له څه باندي دېرشو کالو راهيسي د کاناډا د ټورنټو په ښار کي ژوند کوي. په عمر کي له ما او معصوم جان څخه ښايي څلور کاله مشر وي. د ښوونځي له لومړيو کلونو څخه يې ډېر پاک او غښتلی شخصيت درلود. په ښوونځي کي زموږ د کنفرانس رئيس وو او د پوهنتون تر کلونو پوري ښه نطاق پاته سو او هر وخت زموږ د خبرو سړی وو. څرنګه چي له لومړي سره ډېر خدمتي سړی وو نو په صنفي مېلو او باغونو کي به زموږ مېله مشر وو.

محمدمعصوم هوتک له وړوکوالي څخه خواري کښ او بااستعداده راغلی وو. هم اول نمره وو، هم يې ښه آواز درلود، هم يې ښه خط وو او يو وخت لا ښه ښکاري هم وو. زما او د ده پلار هم اشنايان او هم د سوداګرۍ

شریکان ول نو زه او دی ګواکي له هغه وخته چي سترګي مو نړی ته پرانیستلي دي تر اوسه پوري ملګري او اشنایان راغلي یو. زما ښه په یاد دي چي په اووم یا اتم ټولګي یې د محمود طرزي د "جزیره پنهان" په نوم لوی ناول چي هغه پخپله له ترکي ژبي څخه ژباړلی وو، ترجمه کولو ته لېږلي راغړلي وه او تر ښه ډېره ځایه پوري یې ترجمه هم کړ. ما ته به یې د هغه کتاب څخه کیسې لوستلې او ما له هغو شپو ورځو څخه زیات و کم پنځوس کاله وروسته هغه کتاب په امریکا کي ولووست.

انجنیر عبدالهادي دستیار، چي اوس په هالینډ کي ژوند کوي او منظم ټلیفوني تماس سره لرو. څه کم یو کال مخکي مي په سوېډن کي لیدلی او کلونه مخکي یې په هالینډ کي په کورکي مېلمه سوی یم، له هلکوالي څخه هم صمیمي او هم بې اندازې ظریف او حاضر جوابه وو. تر اوسه پوري چي په ټلیفون کي خبري سره کوو پر ظرافتونو او ټوکو یې خوند اخلم. د ده د ظرافتونو او ټوکو کیسې ډېري دي خو یوه کیسه به مي تر مرګه هېره نه سي.
په دوولسم ټولګي کي زموږ صنف ته له کابل څخه د پښتو یو ښوونکی راغی چي د سواد او پوهي له اړخه تر اندازې زیات کمزوری وو. دا باید ووایم چي زموږ صنف له داسي ویښو او د مطالعې څښتنو ځوانانو څخه ډک وو چي نه یې په کندهار کي ساری او نه یې سابقه درلوده او نه بیا داسي صنف په کندهار کي چا لیدلی دی. معلم صاحب، له خپلي بدي طالع، خدای د دغه صنف ښوونکی کړ. یوه ورځ یې د کاظم خان شیدا دا بیتونه راته ویل:

مضمون د شعر لکه پیکر دی
رنګین الفاظ یې رخت و زیور دی
ورته ضرور دي دا دواړه توکي
پیکر که هر څو دلرباتر دی

ده لا لو مړی بیت بشپړ کړی نه وو چي ما هسي له ټوکو پوښتنه ور څخه وکړه چي، معلم صاحب پیکر څه معنی؟ ده ویل پیکر معنی جنګ. ما ورته وویل چي هغه به پیکار وي. معلم صاحب ویل اشتباه دي کړې ده. ما هم بل څه ونه ویل. د معلم صاحب خبره به چا غبر ګوله؟ خو د شعر په پای کي له پیکر سره، چي په جنګ معنی سوی وو، رخت او زېور او دلرباتر هیڅ خوند نه کاوه. جنګ څرنګه دلربا کېدلای سي. معصوم زما په طرفداري وویل چي پیکر د جسم معنی ورکوي. معلم صاحب ویل سمه ده. شېرماما ورته وویل چي ښایستې نجلۍ ته، چي واده یې نه وي کړی، هم پیکر وایي. معلم صاحب ویل کېدلای سي. عبدالعلي چي موږ به لعلي باله او ډېر ظریف سړی وو، هغه ورته وویل داسي یو تعمیر چي نوی جوړ سوی او ګوزاره نه وي پکښي سوې هم پیکر بلل کېږي. معلم صاحب شکمن سو خو څه یې ونه ویل. عبدالهادي ور ږغ کړه. ویل یې معلم صاحب په عربي کي کډو ته هم پیکر وایي. د معلم صاحب اعصاب ورته خراب سول. ویل یې رذیله ټوکي راسره کوې؟ په دې وخت کي یې د تخته پاک واری وربانديوکړ. تخته پاک، ډېر لوړ، پر دېوال باندي له چت سره نیژدې ولګېدی. هادي، پرته له دې چي یو څه وار خطا سي، پر معلم صاحب باندي ږغ کړل چي واه ته خو ښه ښکاري هم یې. موږ ټول خندا واخیستو او معلم صاحب، هادي له صنفه وایست. زه په یقین سره ویلای سم چي په ټول صنف کي مو داسي څوک نه درلود چي چا دي بد بللای وای. بلکه هر یوه خپل ځان ته خاصه ښېګڼه درلوده.

## کندهار:

د کندهار د زاړه تاریخ او حتی نامه په باب ډېر زیات اختلاف موجود دی، چې دلته یې راوړل چنداني پر ځای کار نه بولم. البته، کندهار په اتلسمه، نولسمه او شلمه پېړۍ کې داسې سیاسي، نظامي، ادبي او علمي څېرې لرې چې د افغانستان په نورو پښتني سیمو کې یې چنداني ساری نسته. ملي قاید میرویس نیکه، شاه محمود او شاه اشرف، احمدشاه بابا او له هغه سره ملګري جنرالان او قومي مشران هر یو جلا، جلا په یادولو ارزي. پیر محمد کاکړ، شمس الدین کاکړ، حنان بارکزی، حاجي جمعه بارکزی او... داسې شاعران تېر سوي دي چې، په خپل عصر کې یې، ساری د افغانستان په پښتني سیمو کې نسته. په شلمه پېړۍ کې، ویښو زلمیانو په عمومي صورت، اوعبدالحی حبیبي، عبدالشکوررشاد، عبدالروف بېنوا ، محمد انورنومیالی، عبدالرحیم هاتف، محمدګل نوري، محمدابراهیم عطایي او ګڼ شمېر نورو پوهانو هر یوه داسې ډېرې لګولې دي چې رڼا به یې تر ډېره وخته، حتی تر ابده، خاموشه نه سي. محمدګل نوري خو، په تش لاس، په یوازې سر او په وړې ګېډه، د دې سیمې د فوکلوري خزانو د پیدا کولو، راغونډولو او خپرولو نه پاره دومره خدمت کړی دی چې د هیچا په وس پوره نه وو. څه چې دې لوی خدمتګار را غونډ کړي او خپاره کړي دي تر قیامته به خپل ارزښت له لاسه ورنه کړي. سل ځله افسوس! چې نه یې چا په ژوند کې قدر وکړ او نه یې له مرګه وروسته لازمه قدرداني وسوه.

که د خدای تعالی (ج) دا پېرزو کړې هستي د کندهار وبولو او بیا نو په شلمه پېړۍ کې، په پښتني سیمو کې، د کندهار عمومي وروسته پاته والي ته یو نظر واچوو نو سړی هک پک سي. زما په ماشومتوب او تانده ځواني کې د دې علمي، سیاسي او ادبي هستیو د سابقې او موجودیت او رواني او

موجودي عمومي فرهنګي او اجتماعي وضع تر منځ ډېر ژور توپیر موجود وو.

د ښار په کوڅو او بازارونو کي بېکاره، بې تعلیمه او بې تربیې هلکان او ځوانان ګرځېدل. د پایلوچانو کلتور، چي زیاتره یې له جنګ، وینو تویولو او نور اخلاقي فساد څخه پرته بل څه نه درلودل، د ښار پر روحیاتو باندي حکومت کاوه. د چړې، چاقو او سېلاوو جنګونه د ورځي موضوع وه او په هر دوو هفتو یا میاشتي کي یو قتل کېدی. هلکانو او تنکیو ځوانانو، د ښار په تقریبا هره کوڅه کي، تقریبا هره ورځ، د مازدیګر او ماښام په وختونو کي خلکو ته ډول ډول آزارونه ورکول. د ښار په تقریبا یوه کوڅه کي هم څوک له آزار لیدلو پرته نه سو تېرېدلای. لېونیان مو په ډبرو ویشتل، په لویو کوڅو کي به مو غالبوزي یا غومبسي قهرولي وې او کله، کله خو به یوه لویه کوڅه، د قهرېدلو غالبوزو له لاسه، په ساعتونو بنده وه. زما ښه په یاد دي چي یوه ورځ په کوڅه کي یوازي ولاړ وم؛ یو نیم بربنډ سړی مي په ډبره وویشت. هغه سړي، چي یقین لرم ډېر به مي خوږ کړی وی، اوف یې کړه، سمدستي یې لاس پر خپله اوږه، چي زما ډبره ورباندي لګېدلې وه، ونیوی او شاته یې ونه کتل. دې صحنې مي پر ماشوم او حساس زړه دونه اغېزه وکړه چي سمدستي په ژړا سوم؛ کورته ولاړم او په یوه ګوښه کي غلی کښېنستلم. په ژوند کي مي بیا د خدای انسان، حتی حیوان، ته آزار نه دی ورکړی. په لویوالي کي مي د خپلو تقریبا ټولو استادانو څخه، چي د ملګرتوب افتخار یې هم لرم، د کندهار د عمومي فرهنګي وضعي، له مکتب، سواد او مطالعې سره د خلکو د بې علاقه ګۍ او حتی مخالفت کولو له امله ډېر زیات شکایتونه اورېدلي دي.

## تعليم او تربيه (ښوونه او روزنه)

که د پښتنو ورونو او خويندو خوا را څخه بد ونه سي نو ويلای سم چي پښتانه په عمومي صورت او کندهاريان په خاص ډول، له تعليم او سواد سره چنداني علاقه نه لري، يا لږ تر لږه زما په وړوکوالي او لومړۍ ځوانۍ کي يې له تعليم سره چنداني علاقه نه درلوده. او حتى زموږ د مکتب تر شپو ورځو پوري يې، چي د شلمي پېړۍ د شپېتو لسيزه وه، له مکتب سره تعصب ښودی؛ د نجونو د سواد او ښوونځي خو بېخي سوال نه پيدا کېږي. که د ښوونځيو د چپړاسيانو او حتى پوليسو زور نه وای نو ښايي د ښوونځيو د شاګردانو په سلو کي شپېته هلکان، د غيرحاضرۍ له امله، له ښوونځيو څخه خارج سوي وای. مکتبيانو ته چا په ښه سترګه نه کتل او د کندهار اکثريت خلک د ملايانو د دې تبليغ تر تاثير لاندي ول چي مکتب د کفر او الحاد سرچينه ده. د کندهار عوامو يوه سندره زمزمه کوله:

ستا و بابا ته شنه لوټونه ورکومه- تا له مکتبه خلاصومه
په تاريکه کي معلمان حلالومـــه- تا له مکتبه خلاصومه

دا مي ښه په ياد دي چي د ښار په اطرافو کي به خلکو ويل چي د خدای پار دی دا څرنګه مکتب دی چي سهار وختي هلکان کتار ودروي او دا خبره دوه درې ځله په ټولو تکراروي چي:

مور مي غوا پلار مي غويی- سر معلم صاحب ښه سړی.

په کندهار کي هيڅ چا دا زړه ونه کړ چي يوه ورځ سهار وختي مکتب ته سر

ور دننه کړي او د دې خبري ریښتیا او دروغ معلوم کړي. او ټولو یا اکثریت خلکو چي د ښوونځي په باب هر ډول منفي تبلیغ اورېدی هغه یې په پټو سترګو مانه.

ظاهرشاهي نظام که هر څه وو، د ښوونې او روزنې په برخه کې یې خپل وس نه سپماوه. د یوه غریب او منتهي نېستمن هیواد په حیث یې له ښارونو څخه نیولې تر لیرې پرتو کلیو پوري ښوونځي جوړ کړي ول او د ښار سره نیژدې پرتو کلیو له پاره یې په لویو ښارونو کي لیلیه ښونځي، چي له اووم ټولګي څخه پیل کېدل، جوړ کړي ول. کتابونه، له هر مضمون سره یوه کتابچه او په دوو دریو کالو کې یو ځل یې قرطاسیه وړیا ورکوله. پوهنتون وړیاوو او د لیلیې شرایط به یې په نړۍ کي ډېرو لږو هیوادونو درلودلي وي. زموږ په وخت کې د پوهنتون له لومړي ټولګي څخه تر څلورم ټولګي پوري محصلینو ته میاشتنۍ تنخوا، چي هر کال به زیاتېده، ورکول کېدله. پر دې برسېره په کال کي دوه ځله، خپلو ولایاتو ته د سفر کولو له پاره، محصلینو ته، پیسې ورکول کېدلې. سهارنۍ، غرمنۍ او ماښامنۍ ډوډۍ مو د کابل د لوړې طبقې خلکو په سویه وه. له پوهنتون څخه په لومړۍ، دوهمه یا دریمه درجه او کله، کله حتی کښتنو درجو فارغ سویو کسانو ته په خارج کي د ماسټرۍ او ډاکټرۍ اخیستلو زمینه برابره وه. په ټول هیواد کي داسي کس نه وو چي دوولسم ټولګی یې لوستې او بېکاره وي. اعلیحضرت له ټولو هغو کسانو سره چي له خارجه به یې ماسټرۍ راوړي وې پخپله کتل او که به چا ډاکټري راوړې وه نو له هغه سره خو به یې دوه درې ځله لیدل او بیا به یې د هغه د تعلیمي څانګي او تخصص سره سم په مناسبو کارونو ګومارل. د تعلیم او تربیې دغه راز ښه شرایط زموږ په ګاونډ او نیژدې او لیري سیمو کي، چي هیوادونه یې تر موږ ډېر بډای ول، نه وه موجود.

خو په کندهار کې د ښوونې او روزنې عمومي کيفيت چنداني ښه نه وو. د دې خبرې يو علت، په ښايي، دا وو چې حکومت ډېر زيات لايق ښوونکي نه درلودل. د پښتو مضمون، چې د هلکانو د سواد او زده کړې اساس وو، داسې معلمانو ته سپارل کېدی چې بل به يې هيڅ شی زده نه وه. د دينيات مضمون، چې د هلکانو د عقيدې بنسټ يې ور جوړاوه، ملايانو ته سپارل کېدی. ملايان په دينيات پوهېدل خو د عصري تعليم او تربيې له اصولو څخه بې برخې ول. بدني روزنه، چې د هلکانو د جسماني او فزيکي انکشاف اساس وو، هغو کسانو ته سپارل کېدی چې بله خواري يې نه سوای پيدا کولای. د ساينسي مضامينو استادانو معمولاً ډېر بد وهل کول او د هلکانو به يې زړونه له مکتبه تور کړل. البته د محيط د ټول منفي عکس العمل او د هيواد د ټولې عمومي نېستمنۍ سره، سره مکتب موجود وو او په وروسته کې يې د کميت تر څنګ کيفيت هم بهتر سو؛ لايق ښوونکي ډېر سول او لايق شاګردان يې وروزل. زموږ څخه يو کال مخکې په کانکور کې د افغانستان عمومي اول نمره، د ډاکټر صاحب امير جان زوی، توريالی وو، چې اوس د امريکا د باسټن په ښار کې يو لايق ډاکتر دی. زموږ په دوره کې د افغانستان عمومي اول نمره لچمنداس وو. يعني کندهار، له خپلو ټولو تعليمي او فرهنګي ستونزو سره، سره، دوې دورې پرله پسې عمومي اول نمره فارغ کړل.

زموږ له کور څخه د ميرويس نيکه تر ښوونځي پورې تقريبا درې کېلوميتره فاصله وه. په ژمي کې، په تېره بيا هغه ورځ چې يا به باران اورېدلی او يا به اورېدی، سخت په زحمت وو. په خټو کې د بوټ پاتېدل او په خټو لړلې پښه بيرته په بوټ ننه ايستل او، له دغه امله، د پښو يخې کېدل د هرې ورځې کيسه وه. په دغه جنجال کې به کله، کله د حاضرۍ تر وخت يو

ته ناوخته ښوونځي ته ورسېدلو. په ښوونځي کې به یو موظف ښوونکی، چې زیاتره وختونه به د بدني روزنې یا سپورټ ښوونکی وو، ولاړ وو او زونګی ته تر ننوتلو مخکې به یې، د ناوخته رسېدلو په ګناه، په شنه یخ، ښې نودې لښتې راکړې.

د کور او ښوونځي تر منځ د لارې په تقریبا نیمایي کې د سړک پر غاړه د دریو کورونو مخې ته یو دالان وو؛ په دالان کې یوه دوکانچه وه، چې له مخکې څخه دوې لوېشتې لوړه وه. پر دې دوکانچه به یو تور مُلا، چې تل به یې سپینې جامې په ځان کې وې، ناست وو. د ده مخې ته به یو وړوکی خیرن مېز، چې معمولاً به دوه درې کتابه وریاندې ایښې وه، پروت وو. مُلا به هر وخت د تعویذونو په لیکلو لګیا وو؛ ځکه داسې ډېره لړ پېښېده چې هغه ته دې دوه درې تنه، چې معمولاً به ښځینه وې، راغلي نه وي. مُلا صاحب د غله د پیدا کولو ډېره اسانه طریقه درلوده. د شپږو یا اوو کلونو په عمر یا تر دې هم د کښته عمر ماشومان به یې له لارې را و ګرځول او یا به د غلا سویو مالونو څښتن، چې معمولاً به ښځه وه، کوم ماشوم ورسره راوستلی وو. د هغه ماشوم د ښې لاس د بټې ګوتې پر نوک به یې د میشوانۍ څخه را اخیستې سیاهي وموښله او د ګوتې نوک به یې داسې ور تور کړ چې د توروالي څخه به ځلېدی. رنګ به سمدستي وچ سو او مُلا به هلک ته ویل چې په خپل نوک کې پاچا وینې چې کرار کرار را روان دی؟ هلک به ویل هو. مُلا به ویل چې وګوره هغه ښځه چې تور پوړنی یې پر سر دی او مخ یې پټ کړی دی؛ د خوني خواته په تلوار روانه ده. هلک به وازه خوله نیولې وه او د مُلا تولې خبرې به یې تاییدولې. وروسته به مُلا د ښځې د قیافې په باره کې معلومات ورکړل او هلک به تولې ننبې تایید کړې. دا نو وروسته د غلا سویو مالونو په څښتن یا څښتنې اړه درلوده چې د مُلا له قوله سره سم یې

څوک د غلا په تور نیوی. که به کوم ماشوم، چې یو څه به هوښیار وو او د مُلا د تګې تر اغېزې به نه لاندې کېدی، مُلا ته وویل چې په خپل نوک کې هیڅ شی نه وینی نو مُلا به په ډېر قهر وویل چې دا هلک حرامي دی. اوس نو څوک وو هغه نر چې د تعویذ ګر مُلا مخې ته دریدلی وای.

د مکتب څخه کورته د تللو په لاره کې، د کوډګر ملا پر مخامخ، د کندهار مشهور شاعر ملا عبدالمنان یو ډېر کوچنی غریبانه دوکان درلود. په ډېر وړوکوالي کې مې په کوڅه او بازار کې د هغه دا غزل:

محبت اول آسانه په نظر راغی
په اخیر کې مې نصیب خون جګر راغی

اوریدلې او په زړه کې کېښېنستلې وه. دا سندره کلونه وروسته ناشناس په کابل راډیو کې وویل خو کله چې یې د خپل هنري ژوند، خاطرو او افکارو په باب خپل کتاب خپور کړ؛ په کتاب کې یې دا نظم د ملاعبدالسلام شاعر په نوم ثبت کړی وو. ما د دې خبرې یادونه ورته وکړه. زه پوهېږم چې چندانې ښه ورباندې ونه لګېده.

څو کاله وروسته، چې اووم ټولګي ته ولاړم؛ ملا منان مې په خپل دوکان کې نه لیدی. ښایې یا به وفات سوی او یا به کوم بل ځای ته نقل سوی وو. د کندهار له مشهورو شاعرانو څخه وو. په فارسي ژبه یې هم د اشعارو یو بشپړ کتاب موجود وو. اوس یې ټول پښتو او فارسي شعرونه ورک دي.

د میرویس نیکه د ښوونځي سره نیژدې به زیاتره وختونه هغه بار وړونکي موټران چې کابل ته به تلل ولاړ ول. د کندهار کابل لاره ډېره خرابه وه او ډېر زیات موټرونه به چپه کېدل. موټروانانو یا د موټرونو مالکانو به سهار وختي د بار وړونکو موټرونو په دغه تم ځای کې ډوډۍ او کله کله حلوا او

دودی خیراتول؛ څو د لاري له ټولو خطرونو څخه په امان سي. ما پخپله د خپل مشر ماما سره کابل ته په یوه باروړونکي موټر کي سفر کړی او پوره دوې شپې مو پر لاري تېري کړي دي. د موټرونو په دغه تم ځای کي یوه ورځ یوه سړي یو کاغذ راکړ او ما هم ورڅخه واخیستی. په کاغذ کي لیکلي وه چي د مدیني شریفي متولي خوب لیدلی دی چي قیامت رانیژدې سوی او په دې رلنډ وخت کي به مهدي آخر زمان راځي. ټول مسلمانان باید توبې وباسي ځکه چي د توبې دراوزه تړله کېږي. د کاغذ په پای کي یې لیکلي وه چي هر هغه مسلمان چي دا کاغذ ولولي باید چي اووه نقله یې واخلي او اوو کسانو ته یې ور تقسیم کړي کنه نو ایمان یې په خطر کي دی. کاغذ مي په جېب کي واچاوه او پرته له دې چي معلم صاحب یا خپل پلار ته حال ووایم کورته له رسېدلو سره سم مي د کاغذ په اووه نقله جوړولو بنا وکړه. اووه نقله خو مي جوړ کړل خو اوس غم دا وو چي دا کاغذونه چاته ورکړم. ما دېر لږ داسي کسان پېژندل چي خط یې لوستلای سوای؛ نو لومړی نقل مي خپل کشر ماماته، چي هم باسواده او هم یې مُلایي کتابونه لوستي وه، ورکړ. ما هیله درلوده چي هغه به ګوندي شاباسی راکړي. هغه راباندي وخندل او راته وې ویل چي د مدیني شریفي متولي پخوا هم څو ځله داسي خوبونه لیدلي دي. زما ماما خو په ما پوري وخندل خو ما اورېدلي دي چي دېرو کسانو په دې خطونو دونه باور کړی وو چي خپل مالونه یې خرڅ کړي او د آخرت په انتظار کښېنستلي ول.

## زموږ لومړی کډه:

د دوولسو کالو به وم چي پلار مي په ده خواجه کي یو کور واخیست او موږ ګواکي له باران څخه ولاړ سولو او ناوې ته کښېنستلو. په ده خواجه کي، چي د کندهار د ښار پنځمه ناحیه بلل کېدله، د بې کارو او هغو هلکانو شمېر ډېر زیات وو چي کرۍ ورځ یې د خلکو په ازارولو، په کوڅو کي په ایله ګرځېدلو، قمار او په خپلو کي په جنګونو تېرېدله. په ده خواجه کي هلکانو او لویانو عجیب او غریب نومونه درلودل: پالی، چیچو، چینجو، اتام، پشمل، بړنګ، بړک، ډم، شبول، پک اغالالی، بوچ اغا، بابک، ګجان، ډانګ اغا، مست کاکو، تور، نانی، چپاو، پټ، او ... له دې ناپېښو نومونو څخه سړی د هغه چاپېریال د هلکانو او لویانو د ژوند او تربیې اټکل کولای سي.

موږ وړوکي وو چي محمد اکبرخان، چي د کندهار پایلوچانو به شین سری باله او ویل کېږي چي ډېر سخت دیکتاتور وو او ډېر بد وهل یې کول، د کندهار امنیه قوماندان وو. ویل کېږي چي د هغه د وخت امنیت بیا چا په کندهار کي نه دی لیدلی. د وطن سړی وو او د خپلو خلکو په ژبه ښه پوهیدی. د شپې او د ورځې به په ښار کي ګرځیدی او د امنیت ساتلو نیمایي وظیفه یې پر خپله غاړه اخیستې وه. یوه ورځ یو سړی ورته عارض سو ویل یې قوماندان صاحب د خدای پار دی! په سپینه ورځ غلو وشکولم او ټولي پیسې یې را څخه یوړې.

ـ چیرته یې وشکولې؟

ـ په ده خواجه کي.

ـ دووسه ته ولي غیر علاقې ته تللې؟

ده خواجه داسي یاغي سیمه وه چي د محمد اکبرخان غوندي یوه تکړه

قوماندان هم زور نه په رسیدی او پخپله یې غیرعلاقه بلله . تر دوولسم ټولګي پوري مي په ده خواجه کي مکتب ووایه. دا چي چرسي او قمار باز نه سوم له خپل خدای څخه راضي یم ؛ ښایي دا به هم د قسمت او اسمان فیصله او ضمنا، په ښوونځي کي، د ښو ملګرو د انتخاب نتیجه وه. تر لسم ټولګي پوري مي، زموږ د کور پر مخامخ مسجد کي، چي زیاتره یې زما پلار آباد کړی وو؛ او له دغه امله مي په مسجد کي اوسېدونکو طالبانو هم ډېر مراعت کاوه، پر مولوی عبدالحمید اخوند باندي تفسیر، نورالظلم او ابوالمنتهی ولوستل. له هغه څخه وروسته مي، په همدغه مسجد کي، صرف بهایي او صرف میر پر مولوي عبدالستار باندي، چي تازه له دیوبند مدرسې څخه فارغ سوی وو، ولووست.

## میرزا محمد هاشم:

زه به د اوو یا اتو کالو وم چي زموږ د کوڅې یوه اوسیدونکي، میرزا محمد هاشم، زما له پلار سره د میرزا په حیث کار پیل کړ. په قد ګردی، په وجود نسبتاً خوار، په عمر به پنځه شلو ښت کلن وو، خو تر خپل عمر ډېر زوږ ښکاریدی (البته زه پخپله دومره ماشوم وم چي هر لوی سړی بوډا راته ښکارېدی) معمولاً به یې پر کلکه خولۍ باندي شنه لونګۍ ډېره ټینګه پیچلې وه. وړه شنه ږیره یې درلوده او نوریې نو مخ ټول ګونجو لاندي کړی وو. هر وخت به یې ډبریني تسبې په لاس کي اړولې او چي خبري به یې نه کولې نو معمولاً به یې خوله ښوریدله؛ ګواکي تل به په ذکر لګیاوو. خو کله، کله چي به یې خوله پرانیستله نو داسي پوچي او ناروا خبري، ټوکي او کیسې به یې کولې چي د ده له تسبو او ذکر سره به هیڅ نه جوړېدې. میرزا محمد هاشم، چي موږ به میرزاکاکو باله، لس کاله د ده مزنګ په بندیخانه

کي تېر کړي وه. وهل يې خوړلي وه. د شپږو او موږکانو سره يې شپې تېرې کړې وې، لوږې، تندې او ناجوړې يې ليدلې وې. د خپلې کوټې د انډيوالانو غرغره کېدل يې ليدلي وه، د مرګ او اعدام په انتظار يې شپې سبا کړې وې. د ده په قول چې څه باندې اته کاله پر له پسې يې د لمر مخ نه وو ليدلی او بالاخره يې يوه ورځ د خوشې کېدلو زېرې واورېدی. ميرزا محمد هاشم ويل چې نه د بندي کېدلو په وخت کي، نه د بند په جريان کي او نه تر خوشې کېدلو وروسته پوه سوی دی چې ولي او پر څشي بندي سو. ميرزا کاکو به هر وخت د بنديخانې کيسې کولې او يوه ورځ يې وويل چې د ده د کوټې د يوه انډيوال مېرمني د خپل مېړه رپوټ وکړ او هغه څو شپې وروسته غرغره سو. له ميرزا کاکو څخه مي پوښتنه وکړه چې رپوټ څشي وي؟ هغه وويل چې رپوټ حکومت ته د يوه چا په باره کي اطلاعات يا غلط معلومات ورکول دي. ما ويل نو څرنګه ستا د ملګري مېرمني د خپل مېړه په باره کي غلط معلومات ورکول. ده ويل هغې ښځې د مېړه تر غرغره کېدلو وروسته بل مېړه وکړ؛ خدای مي دي غاړي نه بندوي لکه چې مخکي ورسره جوړه وه.

د ميرزا کاکو د بنديخانې کيسو او له هغوی سره بې حده ناروا ظلمونو مي د حکومت او حکومتي مامورينو په مقابل کي ډېره ژوره کرکه او نفرت پيدا کړ. ښه مي په ياد دي چې په کندهار کي د ښځو د لوڅ مخی په مقابل کي د بلوا په ورځ، چې ډزې کېدلې او د ښار يوازينی سينما ته اور اچول سوی وو، زما او د معصوم هوتک پلرونو موږ له ښونځي څخه کورونو ته بېولو؛ ښوونکيو له وېرې يوې او بلې خواته ځغستل؛ ما له ځان سره ويل چې خدايه برې ورکړې. برې چاته؟ زه طبعا نه پوهيدم چې خبره څه ده او دا ډزې ولې کيږي؛ خو دونه پوهيدلم چې دا د حکومت پر ضد عمل دی او حکومت

ظالم دی؛ پرېږده چي نسکور سي او یا یوه غیبي بلا ورباندي نازله سي. پلار مي، چي یو عاجز او مظلوم سړی وو، د خپل سیوري څخه بېرېدی او زما له وروکوالي څخه یې تل دا یوه خبره راته کوله چي پام کوه په سیاست کي د حکومت به لاس نه وهې. البته ښایي تر ډېره ځایه حق په جانب وو؛ ځکه چي په وطن کي د هاشم خان صدراعظم د استبداد داسي دوره تېره سوې وه چي له هر چا سره، په تېره بیا زما د پلار په څېر خلکو سره، چي په کندهار کي یې هیڅ تېر نه درلود او بې کسه وو، د سر او مال وېره پیدا کړې وه.

## د کندهار بلوا:

دکندهار د بلوا اصلي علت د دولت له خوا د ښځو پر لڅ مخی باندي د ښار او اطرافو د محافظه کارو او مذهبي عناصرو اعتراض وو. دا چي دننه په حکومت کي به ښایي د یوه او بل عالي رتبه مقام د بدنامولو او پرزولو له پاره څه احتمالي دسیسې رواني وې، زه معلومات نه لرم؛ خو د کندهار د وخت نایب الحکومه محمدصدیق خان وزیري لکه چي د صدراعظم محمدداوود خان د امر په عملي کولو کي یو څه له توندی څخه کار اخیستی وو. وزیري تولو حکومتي مامورینو، په تېره بیا رئیسانو او مدیرانو ته حکم کړی وو چي په تاکلې شپه د خپلو لڅ مخو مېرمنو سره د والي مېلمستیا ته ورسي. په هغه شپه د کندهار د پوهني لوی مدیر عبدالباري آشنا، چي یو لایق سړی او د خپل وخت له ښو لیکوالانو څخه وو، مېلمستیا ته نه وو حاضر سوی او یا له مېرمني پرته مېلمستیا ته ورغلی وو؛ او والي یې، چي یو ډېر احساساتي سړی وو، په غوسه کړی وو. عبدالباري آشنا د خپل هغه عمل له کبله د تل له پاره له رسمي وظیفې څخه طرد سو.

په ښار کي ګنګوسې وې او یوه ورځ د ماپښین یا مازدیګر پر مهال په ښار

کي ځیني پاڼي ووېشلي سوې او له خلکو څخه یې غوښتي وه چي سبا
دوکانونه وتړي. دورځي لس یوولس بجې به وې چي له ښاره څخه د ډزو
آوازونه واورېدل سول او یو ګړی وروسته مو د کندهار د یوازیني سینما د
وداني دودونه ولیدل چي آسمان ته پورته کېدل. بلوا کوونکو د کندهار
سینما او په وروسته کي د نجونو د زرغونې انا د لېسې د اسنادو کتابونو او
چوکیو او مېزونو ته اور اچولی وو. د کندهار د قول اردو قوماندان
ډګرجنرال خان محمد خان، د امنیت د ټینګولو له پاره، له پوځي قواوو څخه
کار واخیست او خلکو د لومړي ځل له پاره د ښار په لارو کوڅو کي ټانکونه
او په زغره والو موټرونو کي سپاره عسکر ولیدل. د ښار په منځ کي ښې
ډېري هوایي ډزي هم وسوې او بلوا لکه څرنګه چي په غیر منظمه توګه پیل
سوې وه په هماغه چټکي په ډېره بې نظمي پای ته ورسېده او هر څوک په خپله
مخه ولاړ. داسي مي اورېدلي دي چي خلک د ښورښ له پاره د فتوا د
اخیستلو په منظور د کندهار د ترټولو جید او مشهور عالم ملا شرف الدین
اخندزاده کورته، چي دا ګړی ډېر سپین ږیری او سخت ناروغه هم وو،
ورغلي ول. اخندزاده له خلکو څخه پوښتنه کړې وه چي آیا د سرکار خلک
ستاسي کورونو ته درغلي او تاسي یې د ښځو لوڅ مخ را ایستلو ته مجبور
کړي یاست؟ خلکو منفي جواب ورکړ؛ ځکه چي داسي هیڅ وخت نه وه پېښه
سوې. اخندزاده خلکو ته امر کړی وو چي ټول خپلو کورونو ته ستانه سی؛
ځکه چي تاسي ټول باغیان یاست او سرکار ته مو وژل روا دي. خلکو چي د
بلوا د مذهبي او روحاني مشر ملا عبدالصمد اخندزاده په تحریک حرکت
پیل کړی وو د شرف الدین اخندزاده په فتوا او د دې تر څنګ د سرکار د زور
د لیدلو له امله، خپل حرکت پای ته ورساوه. د بلوا قومي مشر د کرز صالح
محمد خان او حاجي حبیب الله پوپلزی، صمد اخندزاده او څو نور کسان

بنديان سول او څو کاله د کابل د ده مزنګ په بنديخانه کې پراته ول.

له دې پېښو څخه څه کم شل کاله وروسته، چې په کابل کې د (۱۹۷۸م.) کال د اپرېل پر اته ويشتمه د خلقيانو نظام منځته راغی، صالح محمد خان، حاجي حبيب الله، عبدالرب اخندزاده، عبدالاحد هلمندی، د احمد شاه بابا د لمسي مدير حاجي ګلوجان يا حاجي آغا، ډاکټر محمد صديق، محمد افضل لودين، مشهور شاعر مولوي عبدالغفاربريالی او ځيني نورمخورين، په کندهار کې، د لومړيو قربانيانو څخه ول. صمد اخندزاده دا وخت وفات سوی وو.

د کندهار د بلوا د علتونو، جريان او تلفاتو په باب عجيبي او غريبي آوازې خپرې سوې، چې ځيني يې اوس هم لا ژوندۍ دي. زما د معلوماتو له مخي، په دې بلوا کي يوازي يو تن، چې هغه هم د کندهار د ښار او سېډونکی نه وو او خلکو ويل چې د ارغنداب له اولسوالۍ څخه ښارته، د خپلي خورد ليدلو له پاره راغلی وو، په بې هدفه ډزو لګېدلی او وژل سوی وو. د هغه مړی تر ماښام پوري د ښار په مرکز چارسو کي پروت وو او ايله ماښام يې خپلوان پيدا سول. دغه راز پنځه شپږ کسان، چې ښايي په بلوا کي يې برخه هم نه وي درلودلې، په تصادفي توګه ټپيان سوي ول؛ او په بلوا کي د برخي درلودلو په تور بنديان هم سول. په دې کسانو کي زما يو همصنفي غلام جيلاني، چې مورې به جيلان باله، هم شامل وو. زموږ سره يو ځای يا يو څه مخکي يا وروسته له مکتبه روان سوی وو. کورته د تللو په لاره کي په پښه کي ويشتل سوی وو. هم په پښه ګوډ سو، هم مکتب ورڅخه پاته سو او هم لا دوه درې کاله بندي وو.

د بلوا څخه به پنځه شپږ کاله تېر سوي ول چې د کندهار يوه صاحب منصب، چې طبعاً ترموږ متعلمينو يو څه مشر وو، غوښتل چې خپل ځان ډېر مهم او

په پټو اطلاعاتو خبر وښیي، موږ ته د پښتونستان په کافي کې وویل چې سرې هر څه دباندي نه سي ویلای. دا څو ورځې مخکې مو د کندهار په فرقه کې له یوه ځاه ځخه یونیم سل مړي، چې په بلوا کې وژل سوي ول، را وایستل. دا نو معلومه نه ده چې نور به څو نه له مړو د ک ځاهان موجود وي. موږ یوه بل ته سره وکتل او صاحب منصب ته مو، چې زموږ ټولو شناخته وو، په تعجب وویل چې کندهار خو ډېر کوچنی ښار دی او ټول خلک یې سره پېژني. موږ خو داسې څوک نه پېژنو چې په بلوا کې وژل سوی وي. نه داسې څوک پېژنو چې پلار، ورور، زوی، د کاکا او ماما زوی یې وژل سوی وي. دا دونه مړي څوک ول؟ صاحب منصب وسل او هیڅ یې و نه ویل.

له بلوا ځخه څه باندي پنځه څلوېښت کاله وروسته، د (۲۰۱۶م.) کال د اوړي په موسم کې، د پخواني اولسمشر حامد کرزي په کور کې ماښامنۍ ته مېلمه وم. د اولسمشر کاکا عزیزالله کرزي، چې ډېر خوږ مجلس یې دی او ډېر زیات معلومات لري، نه پوهېږم د کومې موضوع په ارتباط د کندهار د بلوا خبره یاده کړه. اولسمشر کرزي پوښتنه ورځخه وکړه چې په هغه بلوا کې به څومره کسان وژل سوي وي. عزیزالله کرزي وویل د موثقو منابعو په حواله درته ویلای سم چې تر یوزر پنځه سوه تنه زیات وژل سوي دي. ده د خپلو خبرو په ادامه وویل چې موږ د بلوا په سبا سهار ولیدل چې د کندهار له هرات بازار ځخه تر چارسو او خرقې مبارکې پورې د خلکو څپلې، دوپټې، لنګوټې او موچنې پرتې وې او په ښار کې هیڅوک له وېرې بهر ته نه سو وتلای.

البته زه هم د هغو پېښو یو شاهد یم. د بلوا د ختمېدلو ځخه وروسته، په هغه شپه تقریبا تر سهاره دونه ډزې وسوې چې موږ، ریشتیا هم، فکر کاوه چې سهار به ټول ښار مړو پرسر اخیستی وي. سهار، زموږ د انتظار په خلاف،

ټول د وکانونه او ټول ښوونځي خلاص ول. په ښار کي آرامه آرامي وه او معلومه سوه چي دا زې ټولي هوايي وې او حکومت غوښتل چي خلکو ته خپل زور وښيي.

د بلوا له کرار ېدلو سره سم، په کندهار کي د کرز د صالح محمد خان په ملاتړ سندري جوړي سوې، چي په لومړي سر کي په پټه او وروسته په ښکاره ويل کېدلې.

پاچاظالم سو خدايه تې کړې مهربانه
غښتلی زمری سالې ماد خانه

د کندهار د منور قشر څخه پرته، چي د ښار نيم فيصد يې هم نه جوړاوه، ما له هيچا څخه د بلوا د حرکت د غندلو په باب څه نه دي اورېدلي؛ بلکه له اولسي سندرو څخه ښکاري چي له بلوا سره د خلکو عام ملاتړ ملګری وو. له دې څخه دېرش کاله مخکي، د اعليحضرت امان الله خان د مترقي اصلاحاتو د پروګرام په مقابل کي د خلکو د عکس العمل او د هغه نظام د سقوط يو عامل د ښځو لوڅ مخي او بهر ته د تحصيل له پاره د ښځو لېږل وه. د خلقيانو ټول نظام او ايډيالوژي د افغانستان د خلکو د عام ذهنيت سره مخالف وه خو د هغوی په مقابل کي د عام پاڅون يو علت د هغوی اووم لمبر فرمان وو چي د خلکو په کورنيو اړيکو او کورني نظام کي يې څرګنده مداخله کړې وه.

## شاعري او لیکوالي:

شعر او شاعري مي هم په نسبتاً کم عمر، یعني یو ولس کلني کي پیل کړه. د شعر له پاره مي کومه خاصه نوې طرح نه درلوده. څه چي د کندهار شاعرانو لیکل ما هم د هغوی په پیروي سندري لیکلې. سندریز شعرونه مي ځکه لیکل چي شعر مي اصلاً له موسیقۍ سره د لېونۍ علاقې په خاطر پیل کړی وو. نه پوهېږم چي موسیقي مي له څه وخت څخه خوښه او غوږونه مي له څه وخت څخه له سور سره آشناوه. زه نه چا له موسیقۍ سره آشنا کړی او نه بلد کړی وم. زما د پلار په شمول، چي پخپله په هندي کلاسیکه موسیقي پوهېدی او لکه چي په ځوانۍ کي یې یو څه هارمونیه هم زده وه، ټول چاپېریال د موسیقی له زده کړي او سندري ویلو سره مخالف وو. ماته د موسیقۍ سره شوق او مینه د الهام په څېر راغلي وه. یوه شپه، زما د خپلوانو له کورسره نیژدې، د معتبرو خلکو په کور کي واده وو. سندرغاړي او هنرمندان له کابل څخه راغلي ول او ټولي سندري یې په فارسي ویلې. زه یې په یوه ټکي هم نه پوهېدلم خو د نورو لویانو او مشرانو په څېر زه هم تر سهاره ورته ناست وم. او لکه په فارسي او موسیقي چي پوهېدلم په هغه اندازه مي خوند ورڅخه واخیست.

زما یو همصنفي، واحد جان، چي اوس په نیویارک کي ژوند کوي او چي څوک یې پېژني نو ماما واحد یې بولي، ډېر ښه قرآن شریف وایه او زموږ د قراءت معلم قاری عبدالحمید، چي په قاري مصري مشهور وو، تل نهه او لس نمرې ورکولې او ډېر ښایسته آواز یې درلود؛ له موسیقۍ سره یې مینه درلوده او ډېره ښه غزل یې ویل. هغه ماته دبس راګ، چي په کندهار کي یې نیرېز بولي، را وښود. وروسته یې بسنت را وښود او بیا مي نو ځیني نور مقامونه پخپله زده کړل. زما غوږونه په لوی سر کي سور ته جوړ وه خو

ستوني مي سور ته جوړ نه وو. د غزل ويلو له پاره مي آواز او استعداد نه درلود او که مي ستوني سور واى نو ښايي د موسيقي د هنر لاره مي نيولې او نور مي هر څه ورته پرې ايښي واى. خو قسمت داسي فيصله کړې وه چي زه د موسيقۍ پر ځاى د شعر نړۍ ته مخه کړم.

په دې هم اصلاً نه پوهيدم چي ولي شعر ليکم او د شعر ليکلو اهميت په څه کي دى. دونه پوهيدلم چي څه چي زه يې په شعر ليکلاى سم زموږ په ټولګي او شاوخوا کي او زما په همزولو کي يې څوک نه سي ليکلاى. د سيلاب او قافيې په باره کي مي په ژوند کي يوه کلمه نه وه لوستې خو له هغه پلوه مي نږديا هيڅ ستونزه نه درلوده او پوهيدم چي شعر مي خاصه رواني لري. داسي ښکاري چي زه د شعر په اهميت، په هيڅ توګه نه پوهيدم. ځکه چي زما ډېرو نيژدو او د ورکوالي ملګرو او همزولو، معصوم هوتک او انجنير اکبر، چي په وروسته کي د خلقيانو په نظام کي شهيد سو، په هغه وخت کي، زما يو شعر هم ونه ليدى او نه خبر سول چي زه شعر ليکم. د هغه وخت مي يوه بشپړه کتابچه شعرونه ورک سول او زه هيڅ خواشيني نه سوم. دوه کاله وروسته مي، په نهم ټولګي کي، يوه بله بشپړه کتابچه شعرونه وليکل. زه يقين لرم چي دا ځل به يې کيفيت هم يو څه ښه وو؛ ځکه چي په ښوونځي کي د خوشحال خان ختک، رحمن بابا، احمدشاه بابا او نورو شاعرانو له نومونو او نظمونو سره اشنا سوى وم. هغه کتابچه هم په خپله مخه ولاړه او دا ځل هم هيچا زما يو شعر هم ونه ليدى. له ځان سره مي شعرونه ليکل او لوستل او ټول لکه څرنګه چي راغلي وه هغسي ولاړل. که مي خپل شعرونه، لږ تر لږه، د ښوونځي يوه ښوونکي ته ښودلي واى حتماً به يې تشويق کړى واى؛ ما به نظم ليکلو ته دوام ورکړى واى؛ او نن به مي په سل هاوو نور شعرونه درلودلاى؛ او دا هم ويلاى سم چي د اوسنيو شعرونو کيفيت به مي تر دغه اوسني حال څو چنده بهتر واى.

## لیکوالي:

د ښونځي په کلونو کې، د پښتو او فارسي د مضامینو په تحریري امتحانونو کې دوه سوالونه ډېر عام وه. یو سوال به داوو: چې دا لاندې لغتونه معنی او په جملو کې استعمال کړئ او بل سوال به معمولاً د یوې خاصې موضوع په باب یوه لیکنه وه چې تر لسو کرښو به کمه نه وه. ما په دې دواړو سوالونو کې هیڅ وخت هیڅ مشکل نه دی درلودلی. د لسو کرښو لیکنه به معمولاً حتمي سوال وو او ډیرو زیاتو شاګردانو به مشکل ورسره درلود او لږې نمرې به یې اخیستې. ما د دغو دواړو سوالونو له حلولو څخه معمولاً پوره نمرې اخیستلې. د لغاتو په برخه کې پنج کتاب، ګلستان، بوستان او مراسلات ډېره زیاته مرسته راسره کړې وه او د حتمي سوال په برخه کې مې هیڅ وخت د څو محدودو جملو په اوډلو کې ستونزه نه درلوده.

د ښوونځي په اووم ټولګي کې د خیرمحمد خان په نوم یوه ښوونکي دوه ځله موږ هلکان د دوولسم ټولګي له شاګردانو سره په یوه صنف کې کښېنولو او له دواړو ټولګیو څخه یې غوښتي وه چې د خپلې خوښې پر یوه موضوع باندې مقاله ولیکي او په صنف کې یې د ټولو په مخ کې ولولي. ما "د وطن حق او د فرد خدمت" تر عنوان لاندې یو مضمون لیکلی وو او په هغه کې مې د مکتب له کتابونو څخه د خوشحال خان خټک او احمدشاه بابا ځینې بیتونه، د خپل مضمون د ښکلي کولو لپاره، را اخیستي وه. مضمون مې ښه استقبال سو، خو هر یوه پوښتنه کوله چې دا چا راته لیکلی دی. ما به هر چا ته ویل چې پخپله مې لیکلی دی او زه په کور کې داسې څوک نه لرم چې مضمون راته ولیکي. دا یې قواله په چا یې منې. هیچا مې خبره ونه منله او د معلم صاحب له دې خبرې څخه چې ویل یې شاباس مقاله دې ښه ولوستله داسې پوه سوم چې هغه هم دا مضمون زما لیکنه نه بولي. دونه

مایوس او خواشیني سوم چي ژړا راغله. خپل پلار ته مي هم دا مضمون ونه ښود چي یو څه یې تشویق کړی وای.

څو کاله وروسته، په لسم ټولګي کي، د کندهار د مطبوعاتو د مدیریت په ودانۍ کي د مطبوعاتو د مدیر صاحب اغامحمد خان کرزي په مجلس کي ناست وم. هغه موږ ځوانانو ته وویل چي ولي یو څه نه لیکو. ما ورته وویل چي موږ څشي ولیکو؟ زموږ څشي زده دي؟ ده وویل زلمیانو ستاسي د مکتب کتابونه او په هغوی کي اجتماعي، تاریخي، ادبي او ساینسي معلومات ټولو عوامو ته نوي دي. د مکتب له کتابونو څخه معلومات په خپله ژبه ولیکئ بس دا مضمون دی. زه هم په هغه شپه کورته ولاړم او د جیولوجي له مضمون څخه مي د کانټ، لاپلاس او هاربېګر نظریات، چي د مځکي او کایناتو د منځ ته راتللو په باره کي یې ورکړي وه، له خپله یاده ولیکل. دوې درې ورځي وروسته مي مطبوعاتو ته یوووړل او ورپسې مي له همدغي کتابچې څخه د مځکي په داخل کي د موادو په باب یو بل مضمون ولیکئ او اغامحمد خان کرزي ډېر تشویق کړم. پلار مي زما لیکلي مضامین، چي د عبدالباري نصیر په نوم مي لیکلي وه هر چاته ښکاره کول او غاړه به یې جګه نیولې وه. خوند خو یې هغه وخت وکړ چي څو ورځي وروسته یې د دې دوو مضامینو له درکه څه کم اتیا افغانۍ لا هم راکړې. او ما سمدستي دوه کتابونه په واخیستل. د مکتب په کنفرانسونو کي مضامین لیکل او لوستل او له مکتب څخه وروسته مي د پوهنتون په دوره کي یکي یو مضمون هم نه دی لیکلی. منظمه لیکوالي مي، له پوهنتون څخه وروسته، هغه وخت پیل کړه چي په سیمینارونو کي مي نوم د ځوان محقق په نوم یاد سو. زه یقین لرم چي که مي د اووم ټولګي څخه یا مشوق او رهنما درلودلای او یا مي پخپله دوام ورکړی وای نو به مي د پښتو ژبي په هره ساحه کي تر نن

ورځې په څو چنده زیاتې لیکنې درلودلې.

شعرونه او ادبي او تحقیقاتي کار مې، تقریبا په سلو کې پنځه نیوې، د امریکا محصول دی. او چې څه کتابونه مې چاپ کړي دي نو له دغه ځایه مې افغانستان او پاکستان ته لېږلي دي. د شعرونو لومړۍ مجموعه "ورکه مینه" مې په (۱۹۸۸م.) کال کې، چې څه کم څلوېښت کلن وم، چاپ ته وسپارله. هغه مجموعه مې ډېره ښه استقبال سوه او تر اوسه پورې پنځه ځله چاپ سوې ده او ښایي شپږم ځل هم چاپ ته سپارل سوې وي. وروسته مې "پایکوب"، "د سباوون په تمه"، "شپېلۍ"، "کوه طور"، "رازونیاز"، "کوثر"، "معراج"، "فردوس" او "ارغوان" په نوم شعري مجموعې چاپ ته سپارلې دي. په دې ټولو کې کوه طور ډېر ښه استقبال سوی او لس ځله چاپ سوی دی. نورې مجموعې مې هم درې څلور ځله چاپ سوې او استقبال سوې دي. دا ګړی مې د شعرونو یوولسمه مجموعه، چې نوم مې لا ورته ټاکلی نه دی او ښه ډېر کارېې بشپړ سوی دی، تر لاس لاندې ده. که ژوندی پاته سوم، د لوستونکو او علاقه مندانو تر لاسه به یې ور ورسوم.

## پژواک او عطایي:

د (۱۹۸۰م.) یم کال په سر کې له خپلې مرحومې مېرمنې معصومې سره، د هغې د علاج له پاره، ډهلي ته تللی وم. په هغه روغتون کې چې زما مېرمن بستر وه، د افغانستان مشهور ډیپلومات، شاعر او لیکوال عبدالرحمن پژواک هم بستر وو. په دومره ورین تندي یې ستړې مسې راسره وکړه چې ما ته یې د یو څه پاته کېدلو جرأت راکړ. د لومړي ځل له پاره مې خپله د شعرونو نیمګړې مجموعه، چې لا مې نوم نه وو ورته انتخاب کړی او وروسته مې ډېر شعرونه ورڅخه کم او ورباندې زیات کړل، ورکه مینه د کتلو له پاره

وروسپارله. سره له هغه چي ناروغ وو، زما شعرونه یې په ډېره مینه لوستي وه او کله چي یې بل ځل لیدلو ته ورغلم نو په خبرو او صمیمیت کي یې ښېخي تغییر راغلی وو او ښېخي یې د یوه انډیوال په توګه مجلس راسره پیل کړ. له دې وروسته نو، تر هغه وخته چي دی په روغتون کي وو، هره ورځ لیدلو ته ورتللم. زما شعرونه یې لوستي او خوښ سوي وه او د شعرونو پر کتابچه باندي یې څو جملې، چي د ده د اخلاص او صمیمیت ننبه وه لیکلي وې.

"هر شاعر لره ځان ته یو جهان دی، چي یوازي دی یې جهانبان دی. شعر راز دی: په راز باندي خبري کول په زړه باندي تجاوز او په روح باندي تېری دی. زه په شعر باندي تقریظ او انتقاد ګناه بولم.

عبدالباري جهاني یو استعداد دی، چي که چیري زموږ د اسیر محیط د قید او بند څخه آزاد پاتې شي خپل رازونه به د سپېڅلو پیامونو د شعارونو په څېر جهانیانو ته ورسوي؛ چي د نني بازاري شعارونو بازار مات کړي. زه ورته دعا کوم چي خدای او خندا دي ورسره مل وي" عبدالرحمن پژواک نوی ډهلی مارچ (۱۹۸۰ م.) کال.

د (۱۹۷۴م.) یم کال په ژمي کي د پېررو ښان د بین المللي سیمینار څخه وروسته، چي د هغه سیمینار له برکته مي د هیواد له ډېرو پوهانو سره وپېژندل، د مرحوم محمدابراهیم عطایي د لیدلو له پاره، چي دا وخت د ګردېز په ښار کي د پکتیا د مطبوعاتو مدیر وو ولاړم. د خبرو په ترځ کي مي خپل د زُنار په نوم شعر، چي بیا وروسته ډاکټرناشناس، زما د لومړي شعر په حیث، کمپوز کړ، ورته ولووست. عطایي صاحب زما هغه شعر دونه خوښ کړاو دونه ژوره اغېزه یې ورباندي وکړه چي د ده په قول په هغه شپه یې ماته یو نظم لیکلی وو. هر وخت چي زما لومړۍ مجموعه "ورکه مېنه" چاپ سوې ده نو دا شعر یې په سر کي راغلی:

د جهان د جهانیانو جهاني ته
ورلېږم سلام په مینه و باري ته
ستا جهان دی یو جهان د خوشحالیو
د ښکلاوو د شرابو د مستیو
هنګامه د لېونتوب او لېونیو
د شرابو او نڅاوو او ځوانیو
په شرابو بدمست سوی یو آبشار دی
یا یو کیف دی چي تاو سوی په زُنار دی
ستا جهان کي هنګامه د خُم خپره ده
د توپان او د موجونو ننداره ده
په شرابو د بدمست یاغي څپره ده
یا د مستو ګناهونو خاطره ده
دي جهان ته دي جهان ټوله حیران دی
په سجده یې پرستش ته زما جهان دی
اوس نو وګوره دې بل مخ د جهان ته
د محیلو خرقه پوشو و سامان ته
د ریا و د فتنو ودې دوران ته
دې سوځونکي د جفاوو تور زندان ته
ښه خبر سه دا جهان هم ستا جهان دی
هېر یې نه کړې مرور ځني انسان دی
تنکۍ میني برباديږي فنا کیږي
جګر سوزه نابلده نڅا کیږي
په ذلت کي یار له یاره جلا کیږي
زړه توږونکې او بې درده جفا کیږي
نه ساقي سته نه شراب نه خرابات سه

نه پوهیږو نـه مـو لاره د نجات ستـه

.............

تریخ تارج د آرزوګانو را خور سـوی
ستا پر دې جهان لوی غم رانسکور سوی
منـادي زموږ د جهـان جهـاني ځوانـه
دا دوهم جهـان جلا نـه کړې لـه ځـانـه

له دې شعر څخه زما سره، د عطایي صاحب اخلاص او مینه له ورایه څرګندیږي. تر دې وروسته هغه کابل ته تبدیل سو. څه موده وروسته د علومو په اکاډیمي کي سره یو ځای سولو او تقریبا هره ورځ مو سره لیدل او دزړه خواله مو سره کوله.

د طالبانو په وخت کي، چي کابل ته تللی وم، کورته ورغلم. په کور کي نه وو. په سبا یې موږ جلال اباد ته حرکت کاوه او د بیرته ستنېدلو په وخت کي مي بیا هیڅ فرصت پیدا نه کړ. له دې څخه دوه کاله وروسته یې د یوه سړي په لاس، چي ویرجینیا ته یې سفر درلود، زما له پاره یو لیک ورکړی وو. زما له تولي بې نظمۍ سره، سره مي، له نیکه مرغه هغه لیک راسره ساتلی دی. په دې لیک یې د طالبانو له نطاقانو سره زما د مرکو او تبصرو نه کولو ته اشاره کړې ده:

"... کابل ته چي راغلي واست زموږ کره هم راغلی وې خو زه په کور کي نه وم ډېر متاسف سوم.

زه بېله مداهنې درته وایم چي د افغانستان په باب دي ډېره ښه شرافتمندانه خاموشي وکړه او دا البته په محافلو کي ستا د عزت او احترام د زیاتوالي باعث سوه. د نبي مصداق دي کور ګډ سي پر موږ یې خاوري را وارولې او زموږ لویې فرهنګي خواستې چي د افغانستان ژوند پوري اړلی

دی ده پر دوه تاره وېښتانو دعوه خلاصه کړه او دا الزام يې هم ظالمانه منور قشر ته متوجه کړ. زه نه پوهېږم چي انگېزه به يې څه وه چي د غسي يوه سړي منحرفه لار واخيسته؟ زه سخت مشکوک یم! په هر صورت د دې ځای په بې خاصيته تولنه کي داسي څه نسته چي په ويلو او ليکلو دي و ارزي. صرف يو ژور تياره ځاه دی چي موږ يې په ببخ کي پراته يو چي نه څه وينو او نه څه اورو..."

په دوهم ليک کي يې، چي هم يې د يوه سړي په لاس رالېږلی دی او لکه دا چي ويلي وه دا يې وروستی ليک سو. " گران او محترم ورور جهاني صاحب!

هيله لرم چي د کورنۍ او يارانو سره خوشحاله او په صحت اوسې. زه گومان کوم دا به زما اخرين ليک وي تاسي ته. ځکه چي صحت مي سخت خراب دی. د بستر څخه په تکليف ولاړېږم... زه به څه درته وليکم موږ يې پر ځان لمسوو تاسي يې په ډيش کي وينی.

افغانستان نور د نشت په حکم کي دی. دا زموږ اميدونه دي چي د زکندن پر حال هم د صحت اميد لرو. ما په تېر کال کي په درې جلده کي د افغانستان معاصر تاريخ وليکی. ډېر نادر مواد او مسايل پکښې دي. وصيت مي کړی دی چي په يوه وسيله يې تاته درورسوي دا نو بيا ستا خوښه چي څه په کوې. زما سلامونه د هغه ځای دوستانو ته ورسوه "

البته د مرحوم عطايي صاحب وصيت چا پر ځای نه کړ يا به يې پر ځای کولای نه سو. د هغه په قلم ليکلی تاريخ، چي ده ويل په دريو ټوکو کي دی، ماته را ونه رسېدی.

## منظومې، ترجمې او نثرونه:

درې کتابونه مې "غربي ګلونه شرقي لمنې" انګليسي کلاسيک شعرونه، "د پښتو په سور اوتال کې د غربي سندرو شرنګ" انګليسي سندريز شعرونه، "بهګت کبير د پښتو په بڼ کې" د هند د مشهور صوفي بهګت کبير مناجاتونه له انګليسي نظم څخه پښتو نظم ته اړولي دي، چې له ښه استقبال څخه يې راضي يم خو داسې څوک مې، له بده مرغه، ونه ليدی چې زما د دې بې سابقې ادبي زيار او کار ليکلې ستاينه يې کړې او يا يې، که نور هيڅ نه وي، منفي ارزولی وي. که څه هم چې ما د دې دريو انګليسي کتابونو په منظومولو څه باندي دوه کاله خوارۍ کړې دي او فکر نه کوم چې تر اوسه پورې به چا د پښتو ژبې ته دومره کلاسيک انګليسي شعرونه او سندريز نظمونه په پښتو نظم ترجمه کړي وي او فکر نه کوم چې تر ډېره وخته به يې څوک په دغه رواني او ضمناً شعري ښايست تقديم کړای سي. زه پخپله له دې دريو منظومو ترجمو او په خپل شعر کې له کيسه اي نظمونو څخه، چې شمېر يې تر يوسل او پنځوس اوړي او د پښتو په ادب کې، په دغه شمېر او ښايست سابقه نه لري، راضي يم. په پښتو شعر کې دا کار تر اوسه چا نه وو کړی او په راتلونکي نه يم خبر. زما کيسه اي نظمونه زما په ټولو شعري مجموعو کې په لږ او ډېر شمېر وېشل سوي دي؛ او معمولاً د مجموعو په پای کې ځای ورکړه سوی دی. "موږک شعر"، "شيخ نصرالدين"، "درې غوايي"، "د شينوارو د مُلا کيسه" او دغه راز نور نظمونه، چې تقريباً ټول يې د افغانستان د ټولني، په تېره بيا وروستيو بدمرغو پېښو او جرياناتو انعکاس دي، په خلکو، په تېره بيا ځوانو اوريدونکو او لوستونکو کې ډېر زيات علاقه مندان لري. او زه يې هر وخت دې ته هڅولی يم چې نور کيسه اي نظمونه هم وليکم.

دغه راز مي "د خيام سورونه د پښتو په تال کي" د عمر خيام څلورسوه اته لس رباعيات پښتو ته وژباړل. يوازي پروفيسر سيال کاکړ يې ستاينه کړې ده او زه کورودانی ورته وايم. نور مي نو له چا څخه نه چنداني ليکلې ستاينه نه ده ليدلې او نه مي نقد ليدلی دی.

محترم سيال کاکړ په خپل کتاب "گنجينه ادب پارسي" کي د خيام د رباعياتو پر پښتو منظومو ترجمو باندي بحث کړی دی او زما ترجمه يې تر کاکاجي صنوبرحسين، مولوي احسان الله خان خټک او ابوالخير زلاند بهتره بللې او د خپل کتاب په (۱۲۱) مخ کي ليکي: "د خيام د رباعياتو ترجمه چي ښاغلي جهاني په پښتو ژبه کړې ده تر ټولو ترجمو بهتره ده. او په دې ميدان کي يې له مولوي احسان الله خټک او ابوالخير زلاند څخه لوبه گټلې ده. ښاغلي جهاني په خپله ترجمه کي له معياري پښتو څخه کار اخيستی او خالص پښتو لغات او اصطلاحات يې کارولي دي. تر نورو يادو سويو شاعرانو، د ښاغلي جهاني ترجمه ساده او روانه ده. څرنگه چي دی د کندهار او سپدونکی دی نو په ترجمه کي يې هم له کندهارۍ ژبي څخه کار اخيستی دی او په دې توگه يې د خيام رباعيات نور هم ښکلي کړي دي.

دلته بايد ووايو چي د ښاغلي جهاني د شاعرۍ خپل سبک هم د نيشاپوري خيام سبک ته نيژدې دی. ځکه نو سړی چي د خيام د رباعياتو پښتو ترجمه لولي د خوښۍ احساس کوي او په آساني يې په معنی پوهيږي. هغه د خيام د رباعياتو ترجمه د کمال وروستنۍ پولي ته رسولې ده. زه ښاغلي جهاني ته په دې توگه مبارکي وايم چي د دې ترجمې له لاري يې د پښتو د ادب خزانې ته يوه قيمتي پانگه ور اضافه کړه..."

که څه هم چي زما څخه زما علاقه مندان هر وخت د شعر ليکلو انتظار لري؛ ځکه زه چي له لومړۍ ورځي چا پېژندلی يم نو د شاعر په نامه يې پېژندلی يم؛

خو زه له لومړي سره په دې عقیده وم چې شعر د قام د کلتور او فرهنګ یوازې یو اړخ دی. شعر اصلاً د یوه قوم د کلتور زینت، ښایست او لباس دی. ژبه له شعره پرته نیمګړې وي. کلتور له شعره پرته بدرنګه وي. قوم له شعره پرته ګونګی وي او داسې قام به په دنیا کې له سره نه وي چې شعر نه لري. خو د دې خبرو سره، سره، ژبه یوازې په شعر نه غني کیږي. ژبه علمي او تحقیقاتي لیکنو، ادبي لیکنو او داستانونو، سیاسي لیکنو او له نورو، په تېره بیا، ژوندیو ژبو څخه بېحده زیاتو ترجمو ته ضرورت لري. شعر د ژبې زړه او نثر یې ماغزه دي.

ماله لومړي سره له نثر، په تېره بیا تحقیقاتي نثر سره مینه درلوده او دغه علت وو چې د لوړو تحصیلاتو له پاره مې تاریخ او جغرافیه انتخاب کړه او چې کله له پوهنتون څخه فارغ سوم نو خپل ټول وخت مې د تاریخ، په تېره بیا د افغانستان د تاریخ مطالعې ته ورکړ. شعر مې تقریبا یو مخ پرېښود او داسې وختونه راغلي دي چې ما پوره یو کال یکې یو شعر هم نه دی لیکلی. په ډېر لږ وخت کې مې، د خپلو استادانو په مرسته او د روهي صاحب په تشویق، په پنځو لویو بین المللی علمي سیمینارونو کې برخه واخیستله خو لکه چې د قسمت بل ډول خوښه وه. په افغانستان کې وروستیو تحولاتو، چې زما شاعرانه طبیعت یې زغم نه سو کولای، زما لپاره ژوند ناممکن کړ. له وطنه مهاجرت کولو ته مجبور سوم او د تحقیقاتي نثر لړۍ مې وشلېده. البته بیا مې هم ځیني کتابونه ولیکل او د سیاسي او انتقادي مضامینو شمېر مې تر دوو سوو اوړي.

لومړی تاریخي کتاب مې د "هرات پښتانه او ستره لوبه" په نوم ولیکی. خپلو او پردیو چې لوستی دی ؛ که یې خوښ سوی او که یې نه دی، نو دا قضاوت یې کړی دی چې زما کتاب، په دې باره کې، په افغانستان کې، له

نورو ټولو ليکل سويو کتابونو سره توپير درلود.

که څه هم چي ما هيڅ وخت د ناول ليکلو ته خيال نه وو، خو خپل ملګري ظهير صاحب د افغانستان د وروستيو پېښو او سترګو ليدلو حالاتو په باب د يوه ناول ليکلو ته تشويق کړم. د "قوماندان" په نوم يو ناول مي وليکی او په هغه کي مي د لومړي ځل له پاره د خلقي واکدارانو د شکنجو او بېځايه او ظالمانه اعدامونو تر څنګ د مجاهدينو ظلمونو، تېريو، جهالت او د پاکستان نوکرۍ او غلامۍ ته اشاره وکړه. دا ناول، زما له انتظاره سره سم ډېر ښه استقبال سو او ډېر ژر دوهم او دريم ځل چاپ سو. په دغه روحيه که نور هر څه ناولونه او لنډ داستانونه ليکل سوي دي نو هغه زما له ناول څخه وروسته راغلي دي.

د "مشکو کاروان" کتاب مي، چي اصلاح سوی او پراخ سوی شکل يې "د پښتو شعر هينداره" ده د پښتو ژبي د کلاسيکو او منځنيو شاعرانو، د هغوی د شعر او زماني شرايطو او افکارو معرفي ده. دا کتاب هم په خپل قسم کي بې ساري دی او تر دغه وخته پوري په دغه شکل چا دغه ډول تحليلي تذکره نه ده ليکلې.

"د پښتو د فوکلوري نکلونو لنډ تحليل" مي، چي زياتره د ملي هينداري د نکلونو په باب ليکل سوی کتاب دی، هم په دغه برخه کي بې ساري دی او زه په جرأت سره ويلای سم چي دغي برخي ته، چي بايد د ادب او فرهنګ د هري بلي برخي په څېر توجه ورته سوې وای، چنداني چا توجه نه وه کړې او تر اوسه هم، له بده مرغه، چنداني توجه نه ده ورته سوې.

"تاريخي څېړني" کتاب زما د تاريخي مضامينو يوه مجموعه ده. دا پخپله يو لوی مغتنم کتاب دی چي تحليلونه يې د نورو ټولو پخوانيو مورخينو له تحليلونو سره توپير لري. د تاريخي څېړنو دوهم جلد مي هم چاپ ته تيار

دی. ما په دې دوارو کتابونو کي کوښښ کړی دی چي پر داسي موضوعاتو باندي بحث وکړم چي تر دغه وخته پوري یا بل چا بحث نه وي ورباندي کړی او یا یې بشپړ تفصیل نه وي ورکړی. په تاریخي څېړنو کي مي کوښښ کړی دی چي تاریخي پېښي لکه څرنګه چي دي هغسي بیان کړم. دو نه په جرأت سره ویلای سم چي په دغه برخه کي مي د بیان سبک له هر چا سره توپیر لري.

"ادبي پلټني" مي د ادبي موضوعاتو په باره کي لیکلی کتاب دی. د پښتو شعر ځیني توکي او اړخونه مي د شعر د قافیې، سېلاب، ردیف، لنډیو، نارو، مثلثو نظمونو په باره کي لیکلي دي. زه باور لرم چي د پښتو شعر له علاقه مندانو سره ښه مرسته کولای سي. دا کتاب له بده مرغه چي خراب او نیمګړی چاپ سوی دی او بل ځل چاپ ته یې چا ځکه زړه ښه نه کړ چي وایي پیسې نه جوړوي.

"د پښتونخوا د شعر هاروبهار" کتاب، باندي مي، چي جیم دارمستتر تقریباً یوه نیمه صدی پخوا لیکلی دی او زما په عقیده د پښتو ژبي د فوکلوري نظم تر ټولو مهمه خزانه ده، تر دوه کاله زیات کار کړی او تقریبا له سره مي لیکلی دی. خو څرنګه چي چاپېدل یې پیسې نه جوړوي نو، له تقریبا دوو کالو راهیسي، همداسي ناچاپه پاته دی. له وچه ناکامه مي د کوټي او پېښور له پښتو اکاډیمیو سره تماس ونیوی او د چاپېدلو په برخه کي مي مرسته ورڅخه وغوښتله خو چنداني ګټه یې ونه کړه.

"تاریخي څېړني" دوهم جلد مي، چي تر لومړي جلد مهم موضوعات پکښي تشریح سوي دي، هم ښایي د پورتني علت له مخي ناچاپه پاته وي.

د شعر پر ښکلي مخ د خط بد رنګه کرښي، چي په شعر کي د خط د ستایلو او د پښتو په شعر کي د دې بد رنګه مفهوم د رواج په باب داسي نوې څېړنه ده چي په پښتو ژبه کي سابقه نه لري. ځکه ناچاپه پاته ده چي وایي ښایي

پیسې جوړي نه کړي.

لکه څرنګه چې مې شعر له تقریبا څلوېښتو کالو راهیسې، زما له طبیعت، فکر او شخصیت سره سم خپل رنګ اخیستی او سبک مې معلوم دی دغه راز مې په نثر کې هم د شکل او مضمون له مخې خپله لاره نیولې ده. په تحقیقاتي نثر کې مې، چې زیاتره تاریخي څېړني دي، له نورو لیکوالانو څخه توپیر دا دی چې زه وایم لوستونکو ته باید حقایق وویل سي. حقیقت که هر څومره تریخ وي مو ړ یې تر قیامته نه سو پټولای. نو که یو قوم سل کاله وروسته په حقیقت خبرېږي ولې یې نن خبر نه کړو. د سلطان محمود، د سو ما د افسانې، د لنډیو د ماهیت، د پنځه زره کلنو تاریخي خوبونو او هري بلې تاریخي او اجتماعي موضوع په اړه زما نظر دا دی چې له هري لیکني څخه اصلي مطلب باید د واقعیتونو روښانول وي. حتی که د واقعیتونو ویل، د زمان په یوه خاصه مقطع کې، قام ته تاوان هم ورسوي، زه وایم پرېږده چې دا تاوان ورته ورسېږي. پرېږده چې قوم په واقعیتونو د پوهېدلو له امله په زره زخمي سي، پرېږده چې د واقعیتونو د روښانېدلو له امله، حتی دښمنان را پوري وخاندي. خو واقعیت، زما په عقیده، د روښنایي او پټول یې د تیارې حیثیت لري. پرېږده چې قوم په روښنایي کې، په رونو سترګو، هرڅه ووینې. خپل دوست او دښمن ووینې او خپله لاره، د پردیو په ډېوه نه بلکه په خپل څراغ او خپلو سترګو پیدا کړي. زما نثر، له لومړي ځوانۍ تر اوسه پوري دغه لاره نیولې ده. ښه دی که بد، زما نثر دی.

## انجنیر اکبر:

په ژوند کي مي داسي ورځي نه په یادېږي چي انجنیر اکبر مي نه پېژندی. زه او هغه په یوه کوڅه کي د پوال په دېوال ګاونډ کي دنیا ته راغلي وو. هغه به ښایي دوه کاله تر ما مشر وو؛ خو په عقل کي د ډېر زیات وړاندي وو. که مي مبالغه نه وي کړې، نو د عقل له مخي لږ تر لږه لس کاله تر ما مشر وو. اکبر زما یوازینی ملګری وو چي زه یې بارو بللم. په دې نامه به ماته پلار را بږغ کول؛ دا نوم له اکبر څخه مرحوم واحد فراهي، چي زما د ژوند تر ټولو نیژدې او خوږ ملګری وو، هم زده کړ. دا هم باید ووایم چي د خلقیانو په نظام کي زما د ژوندي پاته کېدلو تر ټولو عمده عامل د واحد فراهي مرحوم ملاتړ او ساتنه وه. که له هغه سره زما دونه نیژدې دوستي او ملګرتوب نه وای نو زما د مرګ به هم لسیزي کېدلای.

اکبر سپین پوستی، میانه قده او د خنداني څېرې څښتن وو. مور او پلار یې دواړه سپین پوستي او ښایسته وه؛ خو د ده څېره، یو ډول، هزاره ګانو ته پاتېده. ځکه یې په ښوونځي کي هزاره او قومو اکبر باله. په هغه اندازه چي د مکتب په درسونو کي لایق وو په هغه اندازه شوخ وو. له وړوکوالي څخه یې جنګ عادت ګرځېدلی وو. ده باید هر مازیګر یو جنګ کړی وای. په کندهار کي د جنګ کولو له پاره هیڅ پلمې ته اړتیا نه وه. د بلي هري کوڅې ځوان چي زموږ په کوڅه کي تېرېدی باید چي د جنګ خطر یې پر ځان منلی وای. اکبر جان له وړوکوالي څخه د میدان له ګټلو او د خپلو همزولو او سیالانو د درناوي تر لاسه کولو سره مینه درلوده. یو ډول ناکراره روح یې درلود او کله چي لوی سو یوه ورځ یې ماته وویل داسي به کوم کار وي چي زما ټوله انرژي واخیستلای سي؟ هغه به ماته په خندا کي ویل چي له ستونزي او چیلینج سره مینه لري. ښه مي په یاد دي چي یوه ورځ یې مور،

چې موږ په کوڅه کې شیرین جانه بلله، هم ډېره لایقه خیاطه وه او هم یې ډېره خوندوره اشپزي کوله، تور بانجن پاخه کړي ول. اکبر جان د بانجڼو ښخوند اخیستي او پر هر یوه یې، په سرچپه شکل، اکبرشاه لیکلی وو. وروسته یې د بانجڼو ښخونه په سره رنګ وهلي او موږ د کوڅې پنځو شپږو هلکانو ته یې راکړل. کله چې به د نورو کوڅو هلکان زموږ په کوڅه کې تېرېدل نو موږ به د هغوی پر کالیو باندې د بانجڼ ټاپه لګول او د هغوی پر شا به د اکبرشاه نوم ولیکل سو. موږ ته دا کار په کوڅه کې د نورو شوخیو په څېر یوه بله شوخي او ټوکه ښکارېدله خو زه چې اوس هغه ورځې شپې را یادوم نو داسې فکر کوم چې اکبر، ان په کوچني والي کې، ډېر اوچت ارمانونه درلودل.

اکبر چې په شوروي اتحاد کې د تحصیلاتو تر بشپړولو وروسته افغانستان ته ستون سو نو په علمي لحاظ یې دونه ژور تغییر کړی وو چې زما تر انتظار ډېر لوړ وو. موږ څو تنو انډیوالانو، نعمت الله عزیز، انجنیر محمدصدیق ظهیر، انجنیر عبدالهادي دستیار، محمدنسیم سلیمي به تقریبا د هري پنجشنبې په ماښام کله زموږ او کله د اکبر په کور کې پر سیاسي، اجتماعي او تاریخي موضوعاتو بحثونه کول. بې له مبالغې ویلای سم چې هغه په دغو مجلسونو کې زموږ د ملګري او همزولي نه بلکه د یوه لایق استاد حیثیت درلود. پر ما باندې یې شخصي اغېزه دا وه چې د هغه د مجلسونو او بانډارونو له برکته مې خپله ټوله انرژي او وخت د افغانستان د تاریخ او اولسونو مطالعې ته ورکړ. که مې مهاجرت نه وای کړی ښایي دا درونډ بار مې تر یوه ځایه رسولی وای.

ظهیر صاحب یوه ورځ اکبر جان ته وویل چې د طلوع افغان د مدیر عبدالصمد ویسا لور هوسی ده، چې هم ښایسته او هم د ښې کورنۍ ده، ورته وغواړي. ویسا صاحب منور سړی دی او زامن یې زلمی ویسا او

نورېالي ويسا تحصيلکرده او ښه ځوانان دي. دا مي ښه ياد دي چي اکبرجان په هماغه ورځ او که کومه بله ورځ، د همدغي موضوع په اړه، وويل چي زه له اورسره لوبي کوم او دا لوبي مي تر هر څه خوښېږي. ظالمانو ماته به مو يوه ښکلې نجلۍ را غوښتې وي او هغه به سبا راڅخه پاته وي. دا خبره موږ په ټوکو واخيسته؛ يا لږترلږه جدي مو ونه نيوله، خو لکه څرنګه چي ده ويلي وه بالاخره هغسي وسوه. اکبرجان له اورسره د لوبو کولو قرباني سو. خلقيانو يې ناکراره ژوند ته، ډېر بې وخته، خاتمه ورکړه. قبر يې د نورو زرګونو بېګناه انسانانو په څېر ورک سو. ښايسته هوسۍ، د خپل ښايست او تنکۍ ځوانۍ په برم کي، له ده څخه کونډه پاته سوه.

انجنير اکبر پر ما باندي سخت ګران وو. د همدغه ګرانښت او ده ته د يوه خاص درناوي له کبله مي، چي زما له وړو کوالي څخه پيل سوی وو، يو ډول سياسي اړيکي هم ورسره ساتل. زه دونه خبروم چي دوی د انجنير حبيب الرحمن نيازي، چي اوس په هالينډ کي اوسېږي او سخت ناروغ دی، تر مشرۍ لاندي يو تنظيم لري. په دې تنظيم کي د پولي تخنيک د پوهنتون د استاد شاه محمود، چي خلقيانو، د ده په څېر، په شکنجو کي ووژه، انجنير دادالله رووفي، چي په يوه حادثه کي مړ سو، انجنير شفا او نورو ګڼ شمېر انجنيرانو او د پوهنتون استادانو برخه درلوده. ما ښايي په عمومي توګه پر سياست او په خاصه توګه د دوی د تنظيم پر سياسي لاري باندي د بې باوری له کبله له اکبرجان سره سياسي انډيوالی ته دوام ورنه کړ. يوه ورځ مي، د شهيد داؤد خان د جمهوريت په کلونو کي، په سرای غزني کي په خپل هستوګنځي کي ورته وويل چي اکبرجانه په شخصي انډيوالي کي تر سر درته تېرېم مګر په سياست کي دي نور ملګری نه يم. ماورته وويل چي يو خو نه غواړم چي په سياست کي برخه واخلم او غواړم چي خپلو تاريخي او ادبي

ځېرنو ته، چې نوي مې پیل کړي دي دوام ورکړم او بل دا چې اصلاً پر مارکسیزم او د انقلاب د لاري قدرت نیولو ته عقیده نه لرم. دا هغه لاره ده چې تاسي اخیستې او دوام ورکوئ. زه باید ستا په ځېرېو رېښتوني ملګری ونه غولوم. اکبرجان په هغه ماښام په ډېر خپګان زموږ له کوره ووت. یوه یا دوې ورځې وروسته وختي ماښام دراوزه وټکېدله او کله چې ورووتلم ګورم چې اکبرجان، د تل په څېر، د خپلې خنداني څېرې سره ولاړ دی. کورته ولاړو او تر لږ ګړي خاموشۍ وروسته یې راته وویل چې بارو په هغه شپه مې تر سهاره له خواشینیه ډېر لږ خوب وکړ خو بالاخره متوجه سوم چې انسان تر خپل وس پوري کار کولای سي. زه باید ستا د دې شرافت او زړه ورتوب قدر وکړم چې په زغرده دې راته وویل چې نور په سیاسي مبارزه کي برخه نه راسره اخلې. زما او ستا ملګرتوب او وروري له وړوکوالي څخه پیل کېږي او هلته د سیاست او مبارزې خبره بېخي مطرح نه وه. دا چې په شخصي انډیوالي کي بیا هم راسره ولاړ یې زما هم هغسي، د پخوا په څېر، وروریې.

## دوه ښوونکي:

د ښوونځي په یوولسم ټولګي کي وم چې زموږ مکتب ته د ظاهر افق او مجید سربلند په نوم دوه ښوونکي راغلل. موږ چې تر اوسه پوري څه ښوونکي لیدلي وو له هغوی ټولو سره یې د خبرو طرز او حتی اخلاقو توپیر درلود. سړی یې له خبرو څخه له ورایه پوهیدی چې دا یوازي ښوونکي نه دي بلکه څه نور هدفونه هم لري. ښې او پر زړونو برابري او نسبتاً نوي خبري یې کولې. البته، د دې معنی دا نه ده چې ټولي خبري یې سمي او پر لار وي؛ بلکه زیاتره خبري یې ناسمي او تشي پرپاګندې وې، چې موږ ته وروسته وروسته ثابتي سوې چې، پرته له ګوندي تبلیغ او حتی شخصي غرض څخه

یې بل هیڅ نه درلودل. مجید سربلند یوه ورځ ویل چې سړی په دې وطن له کومو کومو شیانو، خیانتونو او نیمګړتیاوو څخه شکایت وکړي. زه به یوه کیسه درته وکړم چې تاسي یو به هم باور ونه کړی او بېخي به مو زړه ته ونه لوېږي. کله چې شوروي اتحاد د هرات کندهار لویه لار د کانکریټ کولو او پخولو له پاره څېړنه او سروې کوله نو ویې لیدل چې په یوه دښت کي د الوتکو په سلهاوو ټایرونه تېر سوي او حتی تازه نښې یې پاته دي. شوروی انجنیران حیران سول او د افغانستان حکومتي مقاماتو ته یې اطلاع ورکړه. بالاخره معلومه سوه چې د اېران الوتکي، څو کلونه پر له پسې، په پټه، افغانستان ته راغلي او پسونه او غوړي یې په قاچاق وړي دي. معلومه سوه چې دا کار داسي یوه سړي کړی دی چې اوس هم په حکومت کي یو لوی مقام لري (مطلب یې عبدالمجید زابلی وو) څرنګه چې هغه د دولت له ډېرو کسانو سره په ګټه او تاوان شریک دی نو هیچا څه ورته ونه ویل.

موږ ساده ګانو زیاترو په دې کیسه باور وکړ او چې هر څوک مو مخي ته راتلل د طوطیانو په څېر مو ټوله کیسه ورته تکراروله. دا فکر هیچا ونه کړ چې الوتکي خو د کښېنناستلو له پاره میدان ته ضرورت لري؛ دا په دښتونو کي الوتکي څرنګه کښته سوي او پورته سوي دي. که چېرې اېران یا بل کوم چا داسي الوتکي، چې میدان ته اړتیا ونه لري، پیدا کړي وي او په دښتونو کي یې کښته کړي وي نو دا پروازونه که په رسمي ډول سوي وي نو بیا خو دښت ته اړتیا نه وه له هوايي ډګرونو څخه باید کار اخیستل سوی وای او که ریښتیا هم په قاچاقي ډول سوي وي نو د دواړو هیوادونو په منځ کي رادارونه او عسکري ګزمې دي. څرنګه یوه ورځ هیچا هیڅ ونه ویل؛ ځکه چې له قاچاق سره خو باید دواړه حکومتونه مخالف وي او د دواړو اقتصاد ته زیان رسېږي. خو زموږ تر ټو بنیا رېدلو پوري سربلند او د هغه ګوند خپل

کار کړی او خپله پروپاګنده یې زموږ په څېر نورو ساده ګانو تر غوږونو رسولې او زموږ په وسیله تبلیغ کړې وه.

افق صاحب یوه ورځ په ټولګي کي موږ ته ویل چي د افغانستان ټوله شته مني د ظاهرشاه کورنۍ او د کورنۍ نازولو او نیږدې کسانو غلا کړې او په بهر کي یې بنګلې په جوړي کړي او نغدي پیسې یې په بهرنیو بانکونو کي ذخیره کړي دي. د مثال په توګه ملکه د برازیل د تېلو د راایستلو په شرکتونو کي پنځوس میلیونه ډالره پانګه لري. په ایټالیه کي یوه بشپړه جزیره (ټاپو) لري او د نورو بانکونو پټ حسابونه یې چا ته معلوم نه دي. د شاهي کورنۍ ټول غړي او نیږدې کسان هر کال د هیواد څخه په سل هاوو میلیونه ډالر باسي او په بهرنیو بانکونو کي یې ذخیره کوي؛ په داسي حال کي چي په وطن کي اکثریت خلک ډوډۍ نه لري او په شپو شپو وږي ویده پرېږي. موږ هلکان نه په خالص او ناخالص عاید پوهېدلو او نه دا راته معلومه وه چي د افغانستان کلنی عاید څونه دی او څرنګه لګول کېږي. او د افغانستان په څېر یوه نېستمن هیواد په عایداتو کي د سوو میلیونو ډالرو، هغه هم هر کال، غبن او خیانت امکانات سته او که نه.

د ځوانانو مغزونه په دغه شکل پرېولل کېدل او په دغه راز، لس ګونو او سل ګونو پروپاګندو او بې اساسو تبلیغاتو ډکېدل؛ خپلو مشرانو ته بدبین کېدل، له خپل کلتور څخه پردي کېدل، له مذهب سره دښمن کېدل او حتی د مذهب او مقدساتو سپکاوي کولو ته تشویقېدل؛ او یوازي بنایي هوښیار مشران، چي ځوانانو یې، له بده مرغه ډېر لږ پر خبرو غوږ نیوی او یا یې د هغوی په استدلال د سر خلاصېدلو توان نه درلودی، پوهېدل چي څه پېښنه ده او څه روان دي او یا دا پروپاګندونه له کومه ځایه سرچینه اخلي. خلقیانو، د ځوانانو د مغزونو د پرېوللو له پاره، د نړۍ د ټولو انقلابیانو په څېر، ډېر

ساده منطق طرح کړي وه. دوی ځوانانو ته ويل چې په نړۍ کې يوازې دوه ډوله فکرونه دي. مارکس او مارکسيستي عقايد، چې خلقيان يې ريښتوني پيروان دي، مترقي او انقلابي افکار دي؛ نور چې هر څه فيلسوفان او مفکرين پخوا تېر سوي او يا اوس ليکنې او تبليغات کوي، مرتجع او د ترقۍ مخالف دي. د دوی منطق ډېر ساده وه. د بزگرو او کارگرو د حقوقو د اخيستلو له پاره يوازېنۍ لار د هغوی د حقوقو د غاصبينو په مقابل کې پاڅون او انقلاب دی. د دې پاڅون او انقلاب علمي او عملي لار د مارکس او لينين په کتابونو کې ده. خلقيان د مارکس د انقلابي عقايدو تر ټولو ريښتوني پيروان دي. هر څوک چې د دوی په مقابل کې خنډ اچوي هغه د بزگرو او زحمتکښانو دښمنان او مرتجعين دي. او کله چې يې قدرت ونيوی، د همدغه خيالي او غلط منطق په اساس يې عمل وکړ او وچ او لانده يې گډ وسوځول.

لږې ورځې وروسته د کندهار دارالمعلمين ته د صاحب جان صحرايي په نوم يو بل ښوونکی راغی او په خلاصه خوله يې د خلق ډيموکراټيک گوند له پاره فعاليتونه پيل کړل. زموږ له ټولگي څخه ډېر کسان گوند ته ورغلل. زما چې له حکومت څخه، د ميرزا کاکو د خبرو راهيسې، نفرت کېدی او يوازې دونه پوهيدلم چې دا گوند د حکومت چپه کېدل غواړي سمدستي ورغلم او له نسبتاً فعالو غړو څخه سوم. د کندهار د پښتونستان په کافي، ميرويس کافي، سيدمحمد کافي، باباولي رستوران او نورو رستورانونو کې جم او جوش پيل سو. د خلق جريده له چاپه راووته او لا به د يوې جريدې لوستل خلاص سوي نه وه چې موږ به د بلې جريدې راوتلو ته منتظر وو. البته دا جريده شپږ گڼې وروسته بنده سوه خو هغه حرکت چې په کابل، کندهار، هرات، مزار شريف، پکتيا، د کابل پوهنتون او د هيواد د معارف په نورو

زموږ نوښتیو کې پیدا سوی وو، له زوره ونه لوید او لا یې زور واخیست. زموږ دې خوښیو ډېر دوام ونه کړ. څه باندې یو کال وروسته، چې موږ تازه دوولسم ټولګی پای ته رسولی وو، د ګوند له وېشل کېدلو او بې اتفاقۍ څخه خبر سولو. یوه برخه د نور محمد تره کي تر مشرۍ لاندې، چې بیا وروسته خلقیان بلل کېدل او بله برخه د ببرک کارمل تر مشرۍ لاندې، چې بیا وروسته د هغوی د پرچم د جریدې په نوم پرچمیان بلل کېدل جلا سول. زما تقریبا ټول همصنفیان، چې تر اوسه پوري سره ملګري یو، د خلقیانو ملګري سول. د خلقیانو سره زموږ ملګرتوب ډېر دوام ونه کړ او ایله د پوهنتون دوهم ټولګی مو پای ته رسولی وو چې په ډله ورڅخه بیل سولو. زه لکه دې ګوند ته چې د ورتللو په علت نه پوهېدم او تش د پاکو احساساتو په اساس ورغلی وم، د ګوند څخه د یو دم راوتلو په علت هم نه پوهېږم. زه دې ګوند ته په دومره پاکو احساساتو ورغلی وم چې خپل سر او مال مي د دې ګوند ملکیت باله. زما ښه په یاد دي چې له کندهار څخه کابل پوهنتون ته د تللو په وخت کې مي خپل شخصي کتابونه، چې تر ځان رابانديې ګران ول او د بایسکل د خرڅولو، د دوا له پیسو څخه د سپمولو او د خپلي خولې څخه د پیسو له سپمولو په پیسو مي اخیستي ول، ټول په کندهار کې د ګوند مسول رشید آرین ته، چې موږ رشید جان باله، ورتسلیم کړل. د خپلي شخصي مطالعې له پاره مي درې څلور کتابونه راسره وګرځول او ځان مي داسي ملامت احساساوه لکه دا کتابونه چې مي غلا کړي وي.

له داسي پاکو احساساتو سره، چې کله لږ قدر متوجه سولم چې په دې ګوند کې اختلافات زیاتره شخصي دي، کارګر او بزګر نه د چا په یاد او نه دا ګوند د هغوی له حقوقو څخه د دفاع کولو له پاره تاسیس سوی او فعال سوی دی. بس یو څو منورین دي چې له سهاره تر ماښامه یې د یوه بل سپکولو او رټنو

ایستلو ته ملا تړلې ده؛ یوه بل ته خاین وایي او دلیل له یوه سره هم نسته.
سمدستي مي له خولې لاس واخیست او د ګوند له مشرتابه سره مي د جنګ
اعلان ورکړ. زه او د پکتیا ولایت د خوست او سیدونکی تازه خان چي په
پوهنتون کي مي همصنفي وو او د ګوند ډېر تکړه او زړه ور نطاق وو، په یوه
ورځ، د سي آی اې او انټیلیجینټ سرویس د جاسوسانو په نوم، له ګوند څخه
وایستل سولو. د ګوند هغه نامعقوله او د خندا وړ اعلامیه ډېره په زړه پوري
وه؛ ای کاش چي ما ساتلې وای؛ زه یقین لرم چي تازه خان به هم ساتلې نه وي.
له دې پیښي څخه وروسته د خلقیانو له ګوند څخه زموږ د ډلي، چي له ګوند
څخه بهر کسانو انتقادیون بلل، د ډله ایزو وتلو سلسله پیل سوه. موږ په
کندهار او پکتیا کي د خلقیانو ګوند ته دومره صدمه ورسوله چي ظاهرشاه
او داؤد خان به په ګډه نه وي ور رسولې. په کندهار کي چي د خلقیانو سره څه
کدرونه او هوښیار هلکان ول هغوی ځکه زموږ سره یو ځای له ګونده ووتل
چي هغوی تقریبا ټول زموږ پر لاس ګوند ته ورغلي ول. د خلقیانو ګوند
ښایي په خپل تاریخ کي ډېر لږ له دغه راز بحران سره مخامخ سوی وي. زموږ
تر څنګ له ګوند سره د ظاهر افق اختلافات هم پیل سول. موږ که څه هم چي
د ظاهر افق سر یو ګام هم پورته کړی نه دی خو ډېر خلک حتی اوس هم فکر
کوي چي موږ، په اصطلاح انتقادیون، له هغه سره ملګري وو. د دغه تبلیغ
او په ځان پوري زموږ د ملګرو په ناحقه او دروغو تړلو کي پخپله ظاهر افق
ښایي تر هر چا زیات رول درلودلی وي. په حقیقت کي زموږ ډلي له ګوند
څخه د وتلو نه وروسته له سیاست څخه لاس واخیست او بیا هیڅکله په
سیاست کي لټار نه سول. افق تر پایه له سیاست څخه لاس وانه خیست او په
یوه مرحله کي له خپلي وړې ډلي سره د پرچمیانو د رژیم (ډاکټر نجیب الله)
په وخت کي بیرته له ګوند سره یو ځای سو.

د پوهنتون د مظاهرو په جریان کې زما همصنفي او ملګري علي ګل پیوند شعرونه لیکل او په مظاهرو کې به یې لوستل او مظاهره کوونکو به ډېرې چکچکې ورته کولې. ما هم د هغو مظاهرو او پیښو په اړه یو څو نظمونه ولیکل او په مظاهرو کې مې ولوستل. په دې ترڅ کې متوجه سوم چې په نظم لوستلو کې تر هیڅ پاته نه یم. ضمناً مې له یوه او بل څخه اوریدل چې باري پوخ شعر لیکي. زه هیڅ نه پوهیدلم چې زما د شعر کوم ځای پوخ دی. زما د مکتب همصنفي انجنیر محمدصدیق ظهیر، چې په یوولسم ټولګي کې یې زما د سیاسي مطالعې او په وروسته کې د ترجمو د پیل راهیسي زما د استاد حیثیت درلود، د شعر لیکلو اهمیت ته متوجه کولم او ما ته به یې ویل چې زه ښایي یو وخت د پښتو ژبې ښه شاعر سم. ما تر دغه وخته د خپلو شعرونو له پاره کومه کتابچه هم نه درلوده. ظهیر صاحب انجنیر عبدالاحد ته، چې په هغه وخت کې یې همراز تخلص کاوه او ډېر ښه خط یې درلود، وظیفه ورکړه چې زما شعرونه، چې پر کاغذونو به مې لیکل په یوه خاصه کتابچه کې راته ولیکي. لوستونکي له دغه ځایه له شعر سره زما د علاقې اټکل کولای سي.

د پوهنتون په لومړیو دوو دریو کلونو کې مې ډېر شعرونه ولیکل؛ خو څرنګه چې تقریبا ټولو شعرونو مې سیاسي رنګ درلود او ما له خپلې انتخاب کړې لارې څخه د نفرت تر سطحې بد راغلي وه، نو هغه شعرونه مې ټول ورک کړل او چا چې به وروسته را یادول ما به هیله ورڅخه کوله چې مه یې یادوه. په دې توګه مې د شعرونو یو دریم لوی جونګ هم له منځه ولاړ. د خلقیانو لاره مې ډېره وختې، یعني د شهید داؤد خان له راتګ څخه تقریباً درې کاله مخکې پرېښودله. که څه هم چې له سیاست سره مې علاقه په بشپړه توګه ونه شلوله او وخت په وخت مې سیاسي لیکنې کړې دي؛ خو عملي برخه مې پکښې وانه خیستله او زیاتره توجه مې د افغانستان او سیمې د تاریخ مطالعه کولو او

شعر ليکلو ته وکړه.

که مي احساساتو پر عقل باندي غلبه نه درلوده لای نو ښايي شاعر سوی به نه وای. زه د نورو شاعرانو په باره کي دا خبره نه کوم؛ ځکه چي په شاعرانو کي نوابغ تېر سوي دي، چي زه طبعا له هغه کتاره وتلی یم. پرته له دې چي له یوه ملګري سره سلا مشوره وکړم، د فاکولتې په لومړي صنف کي مي د واده کولو تصميم ونيوی. لومړی مي مورته، چي معمولاً زوی ته له واده کولو سره ډېره مينه لري، خپل تصميم ووايه. هغې مي خبره له پلار سره شريکه کړه. پلار مي ورته ويلي وه چي زه بايد تحصيل ختم کړم او بيا واده وکړم. خو زه پر خپله خبره ټينګ ودرېدم او پلار مي مجبور کړ چي ما ته واده وکړي. زما سره يو ځل بيا بخت ياري وکړه. خدای مي داسي ښايسته نجلۍ په نصيب کړه چي ښايي د کندهار په ښار کي به يې ډېرو لږو ښايستو سيالي کولای سوای. په هغه لومړۍ شپه ورباندي مين سوم او نيژدې ملګرو او دوستانو به مي ليلا او مجنون بللو. د مرغلرو امېل، شيش محل، معصومې او ځيني نور شعرونه مي خاص هغې ته ليکلي دي. پنځه دېرش کاله مي، په ډېره خوشالي ژوند ورسره وکړ او له هغه واده څخه خدای څلور زامن راکړل، فريد، جاويد، اجمل او احمدشاه نومېږي؛ چي الحمدلله ټول ژوندي او ټول د اولادونو او کورونو څښتنان دي. درې مېړندي مي د کندهار او يوه د کابل ده.

## ګرداب:

ګرداب د کندهار د ښار د لويو منورينو او، زياتره سياسي پوهانو، علمي او سياسي مجلس وو چي، د ديارلس سوه ديرش د لسيزي د پيل له کلونو څخه، په منظمه توګه تقريبا هره ورځ مازيګر تر تېر ماخوستن پوري د هرات دروازي څخه د باندي په عزت کافي کي جوړېدی. زه ګومان کوم چي په

کندهار ښار له دغه نعمته څخه برخوادار وو؛ افغانستان کي به یوازي د کندهار ښار له دغه نعمته څخه برخوادار وو؛
څکه چي د بل هیڅ ښار په باره کي مي د منورینو او باسوادو مشرانو او سپین ږیرو د داسي آزاد او منظم ورځني علمي مجلس په باره کي څه نه دي اورېدلي. که چیري په نورو ولایاتو کي دغه ته ورته مجلسونه موجود ول نو زه یقین لرم چي په دونه منظمه توګه به یې نه دوام او نه دونه اوږد عمر کړی وي؛ او که وي نو زه اطلاع نه لرم. د عزت کافي په ګرداب کي پر عربي ګرامري مسایلو، احادیثو، د قرآن شریف د آیتونو پر تفسیرونو او اجتماعي مشکلاتو باندي علمي بحثونه کېدل؛ او د ډیموکراسۍ په کلونو کي یې سیاسي رنګ واخیست. د انتخاباتي مبارزې په باب، د اساسي قانون په باب او ځینو جدي سیاسي موضوعاتو په باب مجلسونه او انتقادونه پکښي پیل سول.

د ګرداب د عنعنې په تقلید او پیروی، مورږ ځوانانو، د (۱۳۴۰ش.) د لسیزي په نیمایي کلونو کي، چي نوې مو له کتاب او مطالعې سره مینه پیدا سوې وه او ضمناً لا د سیاست میدان ته هم ورداخل سوي وو، په پښتونستان کافي، سید محمد کافي، بابا ولي رستوران او نورو رستورانونو کي واړه او لوی مجلسونه پیل کړل. د عزت کافي د ګرداب غړي، په هرات دروازه کي د میرویس کافي ته، چي د پښتونستان کافي سره ډېر نیژدې وو انتقال سول. زه او زما همصنفیان، محمدصدیق ظهیر او نعمت الله، هر ماښام د پښتونستان کافي د مجلس یا ګرداب د ختمولو څخه وروسته میرویس کافي ته ورتللو او د خپلو مشرانو له خبرو او علمي بحثونو څخه مو استفاده کوله. په دې ګرداب کي مرحوم عزیزالله واصفي، چي دا وخت د اولسي جرګې په دوو لسمه دوره کي وکیل وو او د ګرداب مؤسس بلل کېږي، مرحوم عبدالرحیم هاتف، د هغه کشر ورور مرحوم عبدالواسع چي په لالا واسع مشهور وو،

مرحوم عبدالمجید سربلند، مرحوم محمد حلیم سلیمي، مرحوم معلم صاحب منان خان، مرحوم معلم صاحب عبدالحي خان، عبدالرشید آرین، چې په هغه وخت کې موږ رشید جان باله، محمد نعیم سعیدي، ډاکټر محمد صدیق، ملا عرب، کله، کله له کابل څخه راغلو محصلینو او ځینو مېلمنو او دغه راز نورو کسانو برخه درلوده.

رشید جان، که څه هم چې زموږ د استاد، نومیالي صاحب په څېر مکتب ته نه وو تللی او رسمي تعلیم یې نه درلود، مګر دومره ښه ځلېدی چې د ګرداب ټولو مشرانو یې درناوی کاوه او خبرو ته یې غوږ نیول کېدی. نه یوازې یې ښې خبرې کولې او د استدلال ډېر ښه قوت یې درلود بلکه ښه لیکوال هم وو، ډېرې ښې ترجمې یې کړې وې او په مطبوعاتي ساحه کې یې، که څه هم چې په لومړي سر کې یې د یوه عادي حروف چین په حیث کار کاوه، خپل استعداد ښودلی او ثابت کړی وو. ده هم، د نومیالي صاحب په څېر، عربي په مسجد او انګرېزي، اُردو او روسي پخپله زده کړې وې.

د ګرداب بل ځلانده ستوری عبدالرحیم هاتف وو، چې د نورو په اصطلاح ګردابیانو په خلاف، هره ورځ نه بلکه ډېر لږ حاضرېدی، د لومړي ځوانۍ څخه ډېر لایق سړی وو او په کندهار کې ځکه له عام احترام څخه برخوادار وو چې هم پوه سړی وو، هم یې چا د غبن او خیانت نه وه اورېدلي او هم یې ډېرې سپینې خبرې کولې. په فارسي کلاسیک ادب او شریعت کې دومره وارد وو او دومره بېتونه، آیتونه او احادیث یې په یاد وه چې سړي به ګوته په غاښ ورته نیوله.

بل مهم غړی چې، کله به په کندهار کې وو، همېشه ګرداب ته حاضرېدی، په اصطلاح فرض لمونځ یې قضا کاوه، ګرداب یې نه قضا کاوه، عزیزالله واصفي وو، چې یو وخت د کندهار خلکو له نازه عزیزالله جان باله. واصفي

صاحب که د کندهار د ګرداب مؤسس ونه بولو نو له لومړیو موسسینو څخه
یې ګڼل کیږي. په فارسي کلاسیک ادب او شریعت کې دومره وارد وو چې
په پښتنو کې یې ساری د ګوتو په شمېر وو. عمومي مطالعه یې ډېره پراخه
او د کندهار تر تعلیمي او علمي سطحې ډېره لوړه وه. داسې حافظه یې وه
چې د نړۍ ډېر قوانین یې په یاد وه. د شمس الدین کاکړ، د پښتو ټولنې د
(۱۳۳۳م.) شمسي کال د چاپ، پر دېوان باندې مقدمه یې ما څو ځله لوستې
ده. له هغې مقدمې څخه یې ښکاري چې هم په پښتو ادب کې وارد سړی وو
او هم یې تصوف ښه لوستي وو. خو له دې ټولو صفتونو سره، سره یې د
غلجیو په مقابل کې د درانیت دونه سخت او څرګند تعصب درلود چې هندو
به یې له مسلمان او مسلمان به یې له هندو سره ونه لري. دې تنګ نظرۍ او
بېځایه قومي تعصب، زما په عقیده، د هغه پر ټول علمي صلاحیت، لیاقت
او فطري استعداد باندې سایه اچوله.

د ګرداب یو بل مهم غړی، چې تقریبا هره ورځ به یې په ګرداب کې هم د
اورېدونکي په حیث برخه اخیستله او هم به یې په سیاسي او اجتماعي
بحثونو کې ګډون کاوه، محمد حلیم سلیمي وو. په کندهار کې یو له تر ټولو
مشهورو کسانو څخه وو او د اتیایمو لسیزو څخه نیولې، بیا په (۲۰۰۵م
کال کې د خپل وفات تر وخته پورې د امریکا د کندهاریانو په ټولنه کې له
خاص شهرت او درناوي څخه برخه من وو. چا چې به یې مجلسونه اورېدل او
د هغه پر آزاد بحث او ټوکو به یې غوږ ونیوی، فکر یې نه کاوه چې دا سړی
په ځواني کې لیکوال او شاعر وو. په کندهار کې له لومړیو کسانو څخه وو
چې د ښځو د لوڅ مخی له تحریک څخه یې عملي ملاتړ وکړ او خپله مېرمن
یې لوڅ مخې کړه. په کندهار کې د بلوا په ورځ، د خلکو د کرارولو له پاره
بازار ته راوتلی وو. په دې وخت کې یوه سړي بوغ کړی وه چې دا هغه اول کافر

دي! مه يې پرېږدي! که يې په هغه ورځ، په وچه تاخته، ځان د سړک پر غاړه د محمدعمر دندان ساز کور ته رسولی نه وای او پټ سوی نه وای نو حتماً د خلکو د احساساتو قرباني کېدی. زما سره يې، د پيررووښان له بين المللي سيمينار څخه وروسته، ډېره علاقه پيدا سوه او څه باندي دېرش کاله، يعني تر مرګه، يې ملګرتوب راسره وپاله. ډېر نادر کتابونه يې راکړي دي تر اوسه په کتابخانه کي راسره دي او وخت په وخت مي کار ور څخه اخيستی دی. ګات های زردشت، حديقته الشيعه، لباب الالباب، فارسي کلاسيک ديوانونه او تاريخي کتابونه يې راسره دي او هر وخت کار ور څخه اخلم او سليمي صاحب يادوم.

د ګرداب يو مهم ستوری د عبدالرحيم هاتف کشر ورور عبدالواسع وو چي نه پوهېږم ولي خلکو لالا واسع باله او په دې نامه دونه مشهور وو چي نور يې هيڅ معرفي ته ضرورت نه درلود. لالا واسع، چي يکي يوه ورځ يې ګرداب نه قضا کاوه او د خپل ورور عبدالرحيم هاتف له قوله يې له سهاره تر ماښامه له کتاب ويلو پرته بل هيڅ کار نه کاوه، د ګرداب ډېر قوي شخصيت او په اصطلاح لويه ګړګه وه. هغه تر ګرداب دباندي چنداني له چا سره کار نه درلود. او کله چي د داؤد خان د جمهوريت په زمانه کي، امريکا ته مهاجر سو نو دلته يې هم يوازي له سليمي صاحب، نعيم سعيدي او کله، کله له قاري سلطان محمد سره ارتباط درلود. سره له هغه چي په امريکا کي يې عالي تحصيلات کړي او ډېره ښه انګليسي يې زده وه، په حکومت کي يې کار ونه کړ او کله چي حکومت، د کار نه کولو د جريمې په توګه، د تحصيل د لګښت غوښتنه ور څخه وکړه نو په ورين تندي يې جريمه تحويل کړه او کار يې پرېښود. لالا واسع د خلکو او ځوانانو د تنويرولو له پاره د يونان د مشهور فيلسوف سقراط له طريقې څخه کار اخيست. ليکنه يې نه کوله او هر ځای

چي یې وس کېدی خبري یې کولې.
په عمومي صورت سره ویلای سم چي ګرداب یوازي سیاسي او اجتماعي مجلس نه بلکه د کندهار د ځوانو منورینو د روزلو له پاره یوه عالي مدرسه وه. نه یوازي ژور علمي او سیاسي بحثونه پکښي کېدل بلکه موږ ته یې د بحث کولو طرز، د چا له نظر سره د مخالفت کولو طرز او د مخالف نظر او انتقاد د اورېدلو حوصله را ښودله. د شهید داؤد خان له کودتا سره د ګردابونو زوریو څه کم سو، خو بیا یې هم دوام پیدا کړ. د ثور د کودتا او بلا د نازلېدلو سره د ګردابونو لمن په بشپړه توګه ټوله سوه؛ زړه ته مي نه لوېږي چي په نیژدې آینده کي به د ګردابونو هغه لړۍ له سره پیل سي؛ ځکه چي نه یې فضا سته او نه به په نیژدې راتلونکي کي هغسي مشران بیا پیدا سي. که یو وخت چي موږ به یقیناً مړه یو، یو ځل بیا د ګردابونو په ډول مجلسونه پیل سول، هم مي ګومان نه کېږي چي هغه پخوانی رنګ او خوند به ولري.

## په وړوکوالي کي زما کورنی ژوند او تربیه:

په وړوکوالي کي مي تقریبا هیڅ ناز، چي د یوه ماشوم سره ښایي او ورته لازم دی، نه دی لیدلی. زما د ټول وړوکوالي په دوران کي نه په یادېږي چي مور او پلار یو ځل هم پر مخ مچ کړی یم. په داسي حال کي چي خپلو انو به مي وروسته هر یوه ویل چي زه د ټولي کوڅې تر ماشومانو ښکلی او خواپاکی وم. تر هغه ځایه چي زما په یادېږي، زه کوټه ذهنه او بې استعداده ماشوم نه وم. مکتب ته تر شاملېدلو، یعني اووه کلنۍ، څخه مخکي مي جمع، تفریق، ضرب او لوی تقسیم زده وه. دغه علت وو چي زه یې له لومړي سره دریم ټولګي ته شامل کړم. په څلور کلنۍ کي مي آمنت بالله په معنی زده وه. د ښوونځي له لومړیو کلونو څخه مي په املاء کي هیڅ ډول ستونزه نه

درلوده. البته پلار مي د ورځي په تجارت او کله، کله د شپې تر ناوخته په ګمرک کي د وچي او لندې ميوې په کاروبار لګيا وو؛ ځکه يې ښايي زما نازولو، په غيږ کي نيولو او مچولو ته توجه نه سوای کولای؛ او لا ښايي په دې نه پوهيدی چي زه د هغه ناز ته څومره ضرورت لرم. پلار مي خپله ټوله توجه زما علمي ترييې ته اړولې وه. د ورځي مي دوه ځله پر ملا محمد نور اخوند باندي شروط الصلوات، خلاصه او وروسته کنز وايه، په خپل دوکان کي ميرزا محمد هاشم پنج کتاب راته وايه او وروسته به مي د مراسلات په نوم کتاب څخه خطونه کاپي کول، چي البته په ښونځي کي يې زما سره د املاء په بهترولو کي ډېره مرسته وکړه. کله، کله به مي لا پلار ګلستان هم راته وايه او د سبق بوج به دونه راباندي زيات سو چي نور به مي نو خوا ورڅخه توره سوه. تر هغه وخته چي مور د نيکه په کور کي، د باميزيو په کوڅه کي ژوند کاوه، د کور مشرتوب زما د مشر ماما په لاس کي وو. ما چي به هر وخت خبرو کولو ته خوله جوړه کړه د هغه له منفي عکس العمل او حتی بې ادبي خبري سره، چي ښځو به يې په خندا استقبال وکړ، مخامخ کېدلم. دغي وضعي مي د عمر تر ډېره وخته پوري پر اخلاقي جراءت منفي اغېزه وکړه. حتي په (۱۹۷۴م.) کال کي د پير روښان په بين المللي سيمينار کي، چي د علمي غونډې تر ټولو ځوان غړی وم او عمر مي ايله پنځه ويشتو کالو ته رسيدی، يوازي د خپل مضمون د لوستلو زړه وکړ او هر ځل به مي چي له چا څخه سوال کولو ته ځان جوړ کړ له سره څخه تر نوکه پوري به خولې را باندي را ماتي سوې او بيرته به په خپله چوکۍ کي کرار سوم. زه خپل مشران نه سم ملامتولای. ښايي په هغه وخت کي به په اکثرو کورنيو کي، چي مشران يې د ښونځي او سواد له نعمت څخه محروم ول، کورنۍ ترييې همدغه بڼه درلوده.

Scanned by CamScanner

د پلار او مور تر منځ مي هم چنداني مینه نه ده لیدلې. پلار مي پر مور باندي څه باندي دېرش کاله مشر وو. ښایي د عمر دونه زیات توپیر د هغوی تر منځ د میني د تار د ټینګېدلو مخه نیولې وي. زما پلار ویل چي زما مور یې په غېږ کي لویه کړې وه. مور مي په وړوکوالي او تر واده کولو مخکي، زما پلار میرزا کاکو باله؛ او تر واده وروسته یې میرزا باله. زما مور به ډېر زیات وختونه زما له پلار سره خبري نه کولې. پلار به مي د ماخستن له لمانځه څخه کور ته له راتللو او له ډوډۍ خوړلو څخه وروسته زیاتره وخت د تمباکو د چلم په څکولو تېراوه. ساړه اسویلي به یې ایستل او مور به مي چنداني د هغه خوا ته نه کتل. زما پر خپل مظلوم او بې آزاره پلار باندي ډېر زړه سوځل کېدی خو هیڅ مي له وسه نه کېدل. زما هغه وختونه ډېر ارمان دي. کشکي مي له پلار سره مجلس کولای او نازولی مي وای؛ خو له بده مرغه چي یو خو له وړوکوالي څخه زما او د پلار اړیکي داسي راغلي نه وې چي له هغه سره مجلس وکړم او بل دا چي ما ښایي له هغه سره د خبرو کولو موضوع هم نه درلوده. ده زه په تجارت روږد کړی نه وم چي د دنیاداری پر کاروبار مي خبري ورسره کړي وای؛ او زما د ښونځي او دباندي خبرو سره، چي دا وخت زیاتره د افق او مجید خان د تبلیغاتو تر اغیزې لاندي وې، هغه نه علاقه درلوده او نه ورته د منلو وړ وې. بلکه زما له خبرو سره، چي تازه مي انقلابي مرچ او مساله ور زیاته کړې وه، تر پایه مخالف پاته سو. زما او د پلار د فکر او عقیدې تر منځ فاصله د عمر د اندازې تر فاصلې زیاته وه او ګواکي د هغه د ژوند تر پایه پوري مو یو بل سره و نه پېژندل.

## محمدصديق روهي:

لکه څرنګه چې مي تقريباً ټول ژوند د تصادفاتو محصول دی، د مرحوم محمدصديق روهي سره مي شناخت او پېژندګلوي هم تصادفي وه. مرحوم روهي، زما په ژوند کې، زما تر کورنۍ، ښوونځي، پوهنتون او ټولني زياته اغېزه درلودلې ده. د (۱۹۷۴م) کال د مارچ يا (۱۳۵۳ش.) کال د حمل په مياشت کې د عسکري خدمت د احتياط له کورس څخه فارغ سوی وم. د احتياط په کورس کې، د عسکري خدمت تر تېرولو وروسته، څرنګه چې له هيڅ رسمي مقام او مامور سره مي نه پېژندل، د کار او ماموريت د پيداکولو مسلې وار خطا کړی وم او فکر مي کاوه چې زه لکه چې بېکاره پاته سوم. په آرين رستورانت کې، چې د کابل د پل باغ عمومي سره نيژدې وو، زما ملګري ځوانان کښېنستل؛ او د هغوی له پاره زما د کار موضوع يو ډول د ټوکو مسله ګرځېدلې وه. هر يوه به هر څه ويل او راز راز پېشنهادونه به يې راته کول. زما همصنفي تازه خان، چې د خوست او سېدونکی وو، راته وويل چې د پښتو ټولني رئيس روهي صاحب ډېر ښه سړی دی؛ هغه ته ورسه چې د پښتو کورسونو د ښوونکي په حيث دي مقرر کړي. ده راته وويل چې روهي صاحب د چا پېژندګلوي ته اړتيا هم نه لري او چې څرنګه ورسې هغه به دي سمدستي مقرر کړي. زړه نازړه مي يوه عريضه ورته وليکله. روهي صاحب د پښتو ټولني د تدريساتو پر مدير صاحب باندي امر راکړ. د پښتو ټولني د تدريساتو مدير زين الله منلي پر يوه ځوان باندي چې ګنډېری يې بالهږغ وکړ چې واګنډېريه! د پښتو ښوونکي له پاره کمبود لرو؟ هغه ويل نه کنه! منلي صاحب هم پر عريضه وليکل چې کمبود نه لرو. روهي صاحب راته وويل چې کمبود نه وي زه به دي څرنګه مقرر کړم. ډېر مايوس او خواشيني کور ته ولاړم. پلار، مور او مېرمن مي هم خواشيني ول. دوې درې ورځې وروسته

بیا هم تازه خان راته وویل چې یو ځل بیا هم روهي صاحب ته ورسم او یو څه خبري ورسره وکړم؛ بنایي وضع تغییر وکړي. دا ځل تر پخوا هم زړه، نا زړه ورغلم. د روهي صاحب سره په دفتر کي یو مېلمه هم ناست وو، چې هغه مې هېر دی. روهي صاحب ماته مخ را واړاوه، ویل یې خیریت دی؟ ما په ډېره عاجزي، ورته وویل چې روهي صاحب زما یو څه انګلیسی هم زده ده، البته خبري چنداني نه سم په کولای خو په لوستلو او ترجمه کولو کي بد نه یم. دا نو داسي وخت وو چې په ټوله پښتو ټولنه کي، د روهي صاحب څخه پرته، چې په بیروت کي یې تحصیل کړی وو، بل د هیچا چنداني انګرېزي نه وه زده.

روهي صاحب د بریټیش ایمبسي د بولیټن یوه ګڼه، چې هر سهار رسمي دفترونو ته استول کېده را واخیسته او ماته یې وویل چې ورته ویې لولم او پښتو یې ورته ترجمه کړم. ته دې تصادف ته وګوره چې پخپله همدغه ګڼه ما، یوه ورځ مخکي، لوستلې وه. لومړی پراګراف مي ورته ترجمه کړ. په دوهم پراګراف کي یې درې لغتونه، چې دوه مي اوس هم په یاد دي، راڅخه وپوښتل. کله چې مي هغه ورته معنی کړل؛ مېلمه ته یې مخ ورواړاوه او ورته وې ویل چې زموږ په ټوله پښتو ټولنه کي، د دغه ځوان په اندازه، د چا انګرېزي نه ده زده. ما ته یې وویل چې د پښتو د ښوونکي په حیث نه بلکه د پښتو ټولني د غړي په حیث د مقررېدلو له پاره عریضه ولیکم. په هغه ګړي یې د پښتو ټولني د لغاتو په مدیریت کي د غړي په حیث مقرر کړم او د انګلیسي پښتو قاموس، چې څه باندي پنځلس کاله یې کارتونه په الماری کي پراته ول او د کلونو دوړي ورباندي لوېدلي وې، د پروف لوستلو وظیفه را وسپارله. تېر ځل چا د پښتو کورسونو د ښوونکي په توګه نه مقررولم او دا ځل د غړي په حیث، چې پنځمه رتبه بست وو، په یوه ورځ، په یوه آن کي

مقرر سوی وم؛ زما له پاره چې قانوناً نهمه رتبه مامور وم، دا خبره بېخي له تصوره وتلی کار وو. خدای بخښلي پلار خو مې درې څلور ورځې بېخي باور نه سو کولای.

نه پوهېږم چې په ژوند کې به بنه عادتونه هم لرم او کنه؛ خو یو ډېر بد عادت مې بې اندازې بې نظمي ده. ډېر زیات مهم یادداشتونه مې، چې اوس به مې په درد خوړلای ورک کړي دي. حتی لکه مخکې چې مې وویل، خپل لومړني، زیات وکم، سل شعرونه مې ورک کړي او غورځولي دي. له نېکه مرغه، د روهي صاحب یو لیک مې، چې په (۱۹۹۴م.) کال کې یې له جرمني څخه امریکې ته رالېږلی دی، راسره ساتلی دی. دا لیک یې ماته زما د یوه لیک په جواب کې، چې د خپل بد عادت له امله مې ورک کړی دی، راته لیکلی دی. له دې لیک څخه د هغه مرحوم د لیک لېږلو او لیکنې خاص سبک او زما سره د هغه شخصي علاقه څرګندېږي.

"راباندې ګران جهاني صیب:

ستا د لیک په لوستلو ډېر خوشحاله شوم. ظاهراً په دې دلیل نه، چې زه دې ستایلی یم او ډېري ګرانبها ملغلري دې ورسره را استولي وې بلکې په دې ساده دلیل چې زما هغه آشنا جهاني پاتې شوی یې. دا ډېره لویه فاجعه وی چې د سړي دوستان بدل شي.

کله، کله سړی خوشبخته وی خو درک کولای یې نه شی. زه چی دوزخ ته ګورم نو په اعراف هم خوشحاله شم. ژوند مو په تدریجي توګه تحول کوی. پخوا ډېر تنها او بې کاره وم اوس لږ، لږ اجتماع ته ور داخلېږم.

رښتیا، زه چی په خط لیکلو پیل وکړم په دې نه پوهېږم چی خط به څنګه راشي ځکه زه که د هر څه د پاره پلان ولرم خپل دوست سره د څه ویلو پلان راته خیانت بنکاری. بالآخره له یو چا سره سړی باید د زړه خواله وکړی.

زما د خط د ځنډېدلو علتونه دوه دي: لومړی دا چی نه غواړم خط و کتابت تر قید لاندې راولم هر وخت چی په مزاج برابر وم خط لیکم. دوهم دا چی تر

یوه حده مصروف پاتې شوی یم. مجبوریم چې جرمني ژبه زده کړم. دا ډېره مشکله ژبه ده. په رښتیا چې د جرمنی خلک نوابغ دي ځکه چې جرمني ژبه یې زده کړې ده. برسېره پر دې، په ځینو غونډو کې مې هم ګډون کړی دی. یوه غونډه د سیمینار په نامه د پښتون سوسیال دموکراټ ګوند له خوا جوړه شوې وه. د سیمینار عنوان وو (سوله او دیموکراسي په افغانستان کې) ما هم یوه مقاله پکې ولوسته. دې غونډې ته سلیمان لایق او د ده ځیني ملګري لکه حمید روغ، کاویان او نور راغلي وو. خلقیانو، شعله یانو او افغان ملتیانو هم پکې ګډون کړی و. زما له مقالې پرته چې له موضوع سره یې اړه درلوده، نورې مقالې اکثر د خلقیانو وې چې په هغو کې د "روس ګوډاګیانو یعنی پرچمیانو" ته ښکنځل پکې شوي وو. د خلقیانو مقالې کارمل ته په ښکنځلو شروع کېدې او هغه ته په کنځلو پای ته رسیدې. د دوی له مقالو داسې ښکارېده چې خلقیانو له روسانو سره هیڅ همکاري نه درلوده. ما له ځان سره وویل چې روسان له امریکایانو سره او عرب له اسراییلو سره جوړ شول خو خلقیان او پرچمیان لا تراوسه نه سره جوړېږي.

بله ورځ یوې بلې غونډې ته ورغلم. بې له دې چې د غونډې د هدف په باره کې په څه وپوهیږم، زه یې د غونډې د مشر په توګه وټاکلم. له ځان سره مې وخندل. خو څرنګه چې اصلي موضوع (سوله) وه نو ځان مې په غولیدلو کسانو کې حساب نکړ.

په همدغه بحبوحه کې له پېښور سره هم مصروف شوم. د معترضه جملې په توګه باید ووایم چې د بحبوحې په معنا، زه پخپله هم نه پوهیږم. د مرحوم استاد حبیبی خبره را په یاد شوه چې ویل یې: یو عالم د وله سړي قصه کوله چې ما به کله د مارشال تیتو نوم واورید نو کوشش مې کاوه چې د (تیتو) په معنا پوه شم. بالآخره ما کشف کړه چې دا کلمه په اصل کې (تیتوع) ده. یو چا له دغه عالم د وله سړي څخه پوښتنه وکړه چې (تیتوع) څه معنا؟ هغه په ځواب کې ورته وویل چې زه پخپله هم د تیتوع په معنا نه پوهیږم.

ما وویل چې په دې بحبوحه کې له پروفیسر عبدالرسول امین نه علاوه، د خلیل ادبي جرګې هم د محمد هوتک د سیمینار د پاره مقاله رانه وغوښته. له ما سره تحقیقي کتابونه او مآخذ نشته خو د هغوی د ډېر اصرار په وجه مې یوه مقاله ور واستوله. دغه سیمینار به ډېر جالب وي ځکه په هغه کې د قلندر مومند د اعتراضونو په مقابل کې د پټې خزانې له صحت او اصالت څخه دفاع کیږي. په دغه سیمینار کې د پوهاند رشاد په شمول د لرې او برې پښتونخوا پوهان او محققان ګډون کوي. د یوه داغ بحث د رامنځ ته کېدو احتمال هم شته.

ګران جهاني صیب: زما په کور کې دوې رادیو ګانې شته خو دواړه خرابې دي ځکه چې ستا او زما د نورو ملګرو غږ نه نیسي. پرون د یوه دوست کره ولاړم هلته مې ستا او تړي صیب آوازونه واورېدل. په زړه کې مې دا هم تېره شوه چې جهاني صیب ته مې ځواب نه دی لیکلی.

قلم بخیل شو. جرمنی خراب شیان هم جوړولی شي. دغه قلم او کاغذ یې مثال دی. زما سلامونه به زما پخواني ډېر ګران دوست تړي صیب او ګران دوست شپون صیب ته وړاندې کړې.

په وطني مینه روهي

له فرانسې نه یو دوست په خط کې دا بیت رالیږلی و، چې زما ډېر خوښ شو:

پای در زنجیر پیش دوستان

به که با بیګانګان در بوستان (سعدی)

ستا شعرونه مې د یادګار په توګه د ځان سره ساتلي دي، زه به یې ستاسو له اجازې پرته چاپ ته ونه لېږم. که مونږ ته یې کور راکړ (وعده یې راسره کړې ده) بیا به د ټلیفون نمره در معرفي کړم. خوشحاله او خوشبخته اوسئ"

له مرحوم عبدالواحد فراهي سره مي چي پخوا مي هم څه ناڅه ورسره

پېژندل، د پښتو ټولنې د ماموریت د پیل په همدغو شپو ورځو کې ملګرتوب پیل سو او د هغه مرحوم ترمرګه پوري مې تر ټولو نیژدې ملګری پاته سو. د خلقیانو د دهشت او وحشت په دوره کې زما د ژوندي پاته کېدلو تر ټولو لوی او اساسي علت همدغه له واحد جان سره، چې د خلقیانو ټینګ ملګری وو، زما نیژدې اندېوالي وه، چې د وروړګلوی سرحد ته رسېده.

په پښتو ټولنه کې د ماموریت له پیل کولو څخه درې میاشتې وروسته د بیروت په امریکایي پوهنتون کې د انګلیسي ژبې د زده کړې، د اوړې د درېو میاشتنیو، کورسونو له پاره د انګلیسي ژبې په آزمېینه کې بریالی سوم او بیروت ته چې بهر ته زما لومړنی سفر وو، ولاړم. له بیروت څخه د راستنېدلو سره سم د کابل مجلې د کتونکي ډلې غړی او لږ وروسته، د مرحوم ډاکټر سیدال شاه پولاد پر ځای، د پښتو ټولنې د مسلکي غونډو د منشي په حیث او یو کال وروسته د کابل مجلې د مسول مدیر په حیث وټاکل سوم. زه، تر دغې نېټې پوري، د کابل مجلې په تاریخ کې تر ټولو ځوان مدیر وم. طبیعي خبره ده چې د پښتو ټولنې اکثرو غړو باید رقابت څه چې دښمني راسره پیل کړې وای. روهي صاحب مې لکه غر شاته ولاړ وو او ما هم په چا کې رې نه واهه. په کابل مجله کې تر یوه کال کار کولو وروسته د ښوونې او روزنې په وزارت کې د پلان د ریاست د خارجي مرستو د عمومي مدیر په حیث مقرر سوم. البته پر دې چوکۍ باندې هم تر دغه وخته پوري زما په عمر او رتبه چا کار نه وو کړی. دلته مې، په بشپړه علاقه، چې د وزارت د استخدام د رئیس محمدولي مندوزي ښه همکاري راسره وه، تقریبا دوه کاله کار وکړ. زما مستقیم آمر د پوهنې د وزارت د پلان رئیس محمدطاهر پرجوش وو. پرجوش صاحب، چې پر انګرېزي او فرانسوي ژبو یې تسلط درلود او ډنمارکي یې هم بده نه وه، د پوهنې وزارت له تر ټولو لایقو کسانو څخه وو.

پېژندل، د پښتو ټولنې د ماموریت د پیل په همدغو شپو ورځو کې ملګرتوب پیل سو او د هغه مرحوم ترمرګه پورې مې تر ټولو نیژدې ملګری پاته سو. د خلقیانو د دهشت او وحشت په دوره کې زما د ژوندي پاته کېدلو تر ټولو لوی او اساسي علت همدغه له واحد جان سره، چې د خلقیانو ټینګ ملګری وو، زما نیژدې اندیوالي وه، چې د ورور ګلوی سرحد ته رسېده.

په پښتو ټولنه کې د ماموریت له پیل کولو څخه درې میاشتې وروسته د بیروت په امریکایي پوهنتون کې د انګلیسي ژبې د زده کړې، د اوړې د درېو میاشتنیو، کورسونو له پاره د انګلیسي ژبې په آزمېینه کې بریالی سوم او بیروت ته چې بهر ته زما لومړنی سفر وو، ولاړم. له بیروت څخه د راستنېدلو سره سم د کابل مجلې د کتونکي ډلې غړی او لږ وروسته، د مرحوم ډاکټر سید ال شاه پولاد پر ځای، د پښتو ټولنې د مسلکي غوندو د منشي په حیث او یو کال وروسته د کابل مجلې د مسول مدیر په حیث وټاکل سوم. زه، تر دغې نېټې پورې، د کابل مجلې په تاریخ کې تر ټولو ځوان مدیر وم. طبیعي خبره ده چې د پښتو ټولنې اکثرو غړو باید رقابت څه چې دښمني راسره پیل کړې وای. روهي صاحب مې لکه غر شاته ولاړ وو او ما هم په چا کې ری نه واهه. په کابل مجله کې تر یوه کال کار کولو وروسته د ښوونې او روزنې په وزارت کې د پلان د ریاست د خارجي مرستو د عمومي مدیر په حیث مقرر سوم. البته پر دې چوکۍ باندې هم تر دغه وخته پورې زما په عمر او رتبه چا کار نه وو کړی. دلته مې، په بشپړه علاقه، چې د وزارت د استخدام د رئیس محمدولي مندوزي ښه همکاري راسره وه، تقریبا دوه کاله کار وکړ. زما مستقیم آمر د پوهنې د وزارت د پلان رئیس محمدطاهر پرجوش وو. پرجوش صاحب، چې پر انګرېزي او فرانسوي ژبو یې تسلط درلود او ډنمارکي یې هم بده نه وه، د پوهنې وزارت له تر ټولو لایقو کسانو څخه وو.



که زما په وس وي، سره له هغه چې اوس ډېر زوړ دی او پنځلس کاله به تر ما مشر وي، زه به یې د پوهنې وزیر مقرر کړم. زما د کار د پیل په لومړیو څو میاشتو کې یې زما سره ځکه اړیکې ترخه وه چې زه د ده سره له سلا کولو پرته په ډېر مهم پوسټ کې مقررسوی وم، چې که له ده سره سلا سوې وای ښایي یو بل نسبتاً تجربه کار او تر ما لایق سړی یې معرفي کړی وای. خو په وروسته کې مو اړیکې دونه سم او خواږه سول چې تر اوسه مې ملګری دی؛ او د یوه بل کور ته تګ راتګ لرو.

دلته باید د هغو کسانو نومونه یاد کړم چې د کابل د مجلې د یو کلن مدیریت او بیا د پوهنې په وزارت کې د دوه کلن عمومي مدیریت په وخت کې مې په منظمه توګه ورسره لیدل. دا کسان په ریشتیا هم د هغه وخت ډېر ښه او رسېدلي منورین او ضمنا ډېر پاک خلک ول چې زما د شخصیت په جوړښت او اجتماعي تربیه کې یې ډېره لویه اغېزه درلوده. موږ څو تنو: د پښتو ټولنې رئیس محمدصدیق روهي، د پوهنې په وزارت کې د استخدام رئیس محمدولي مندوزي، د پوهنې په وزارت کې د بېسوادۍ سره د مبارزې رئیس محمدهاشم رحیمي، د پوهنې په وزارت کې د تالیف او ترجمې رئیس محمد صدیق سیلاني، په پښتو ټولنه کې د لغاتو د څانګې عمومي مدیر او په وروسته کې د پښتو څېړنو د نړیوال مرکز رئیس ډاکټر عبدالحکیم هلالي، د پوهنې په وزرات کې د څارندوی د ریاست مرستیال سید کمال باختري، د کابل دارالمعلمین عمومي مدیر عتیق الله نیازي، د پوهنې وزارت د تالیف او ترجمې د ریاست غړي او په وروسته کې د خلقیانو او پرچمیانو په نظام کې د هوټلونو عمومي رئیس عبدالواحد فراهي هره د جمعې ورځ او کله، کله د پنجشنبې په ماښام په نوبت د یوه او بل په کورونو کې سره غونډېدلو. کله، کله به عبدالرووف بېنوا، محمد ولي ځلمي،

ډاکټرحبیب الله تږی، ډاکټر ګل محمد نورزي او ډاکټر سید ال شاه پولاد هم راسره ملګري سول. په خواشیني سره باید ووایم چې د دې کسانو ډېر لوی اکثریت اوس زموږ سره نسته. وفات سوي دي او زموږ هم پسي لار ده.

په همدغه دوره کي مي د بیروت له پاره په یوه آزمېینه کي برخه واخیستله. په آزمېینه کي بریالی سوم. لږ وروسته خلقیان راغلل او زه تقریبا یوه یا یوه نیمه میاشت وروسته د اوو تنو نورو کسانو سره بېروت ته روان سوم. یو کال وروسته چې له بیروت څخه وطن ته راستون سوم نو د خلقیانو تر منځ خپل منځي اختلافاتو دونه زور اخیستی وو چې د ګور د چینجیو په څېر یې سره خوړل. د امین ملګرو د تره کي ملګري په یوه او بل نامه له منځه وړل. د خوست د اوسېدونکي ډاکټر زرغون ډله، چې د ظاهرشاه په زمانه کي، د امین پر ضد را ولاړ سوي او د دغه اختلاف په اثر له ګوند څخه بېل سوي ول، د زرغونیانو په نوم تر تعقیب لاندي ول. په دې منځ کي لا د ګوند په دننه کي یوه بله ډله، چې ډاکټرصالح زېري یې مشري کوله، د کونجکیانو په نامه وهل کېدل. په دې توګه نو، امین له ګوند څخه بهر مخالفینو برسېره په ګوند کي دننه، لږ ترلږه د دریو لویو ډلو د مخالفت سره مخامخ وو؛ او پر هیچا یې اعتماد نه درلود. ماته واحد فراهي وویل چې خلقیان د ګوند په دننه کي د یوه بل پر ضد دونه سخت لګیا دي چې تا غوندي خلکو ته یې ښځي پام نسته. په زوره یې توجه مه دراړوه. فراهي، چې په دغه وخت کي د هوټلونو رئیس وو، د خپل اخلاص له مخي، کوښښ وکړ چې ماته په حکومت کي یوه ښه وظیفه راپیدا کړي. لکه چې زما په غیاب کي یې د خلق د جریدې له رئیس عبدالقیوم نورزي سره، چې په پښتو ټولنه کي مو ښه سابقه درلودلې وه، خبري کړي وې. زه یې د هغه دفتر ته بوتلم او هغه تر لږو خبرو وروسته وویل چې ماته به د خلق په جریده کي د ترجمې ریاست راکړي. ده وویل چې



د دې کار څو ګټې دي. یو خو دا چې تر هرڅه مخکي به د بېعقلو خلقیانو (دا د هغه خپل الفاظ دي) له توجه او آزار څخه بېغمه سي. بل دا چې هم موټر، هم ښه تنخوا او هم ښې اضافه کاری لري او دریم دا چې د خارج سفرونه لا هم پکښې سته. ما سمدستي ورسره ومنله. البته د نورزي صاحب له دفتر څخه د باندي مي پر واحد فراهي باندي خوله را خلاصه کړه او ښه مي سپک کړ (البته زما او د واحد جان ملګرتوب د ورورۍ په سرحد کي وو او سپکو سپورو تاوان نه ورته کاوه) ما ورته وویل چې ما تا ته ویلي وه چې زه له دې خلکو سره (دلته مي د زړې انډیوالی په اساس یو څه پوچ هم ورته وویل) کار نه کوم. ما فیصله کړې ده چې د علومو په اکاډیمي کي کار پیدا کړم او خپلو علمي څېړنو ته دوام ورکړم. واحد جان به څه ویلي وای. وایي چې نه ځې وا به دي خلم چې نه خورې څه در وکم؟

## د علومو اکاډیمي:

د علومو په اکاډیمي کي پوهاند عبدالحي حبیبي، پوهاند عبدالشکور رشاد او عبدالرووف بېنوا په یوه نسبتاً لوی دفتر کي کارکاوه چې د راډیو او ټلوېزیون نطاقه نفیسه محمود غوروال هم پر یوه جلا مېز باندي کښېنستله. مرحوم محمد ابراهیم عطایي او روهي صاحب به هم کله، کله په دغه دفتر کي حاضرول. ما به هم خپل د فترپرې ایښی وو او له سهاره تر ماز یګره به له دوی سره په دفتر کي کښېناستلم. زما د پاره دې دفتر د یوه مکتب حیثیت درلود او په بهر کي به مي ملګرو ته، په ډېر افتخار، ویل چې زه لکه په دایرت المعارف کي چې ناست یم. هر سوال چې را پیښېږي په هغه ګړي راته حل سي او یا یې د حل لاره را وښودله سي. د بېنوا صاحب ظرافتونه به مي تر مرګه هېر نه سي. کله، کله خو به خبره دې اندازې ته ورسېده چې رشاد صاحب به

غبرګ لاسونه پر سترګو ونيول او زما د ځوانۍ د عمر خندا به تر ما زيګره نه ختمېده. سره له هغه چي حبيبي صاحب ته يې ډېر زيات درناوی درلود او د يوه ريښتوني استاد په سترګه يې ورته کتل؛ مګر په ټوکو کي يې چنداني لحاظ نه کاوه.

د مرحوم حبيبي صاحب نوم مي ډېر زيات اورېدلی وو؛ او له هغه سره هره ورځ ليدل او مجلس کول زما له پاره يوه لويه خوشبختي او افتخار وو. هغه تر خپل نامه او خپل شهرت څو چنده درونږ وو. ما هيڅ وخت بېکاره نه دی ليدلی. کرۍ ورځ به يې کتاب کوت، ياد داښتونه يې اخيستل او ليکنه به يې کوله. مګر کله چي به مو پوښتنه ورڅخه وکړه تر هغه وخته پوري به يې خبري کولې چي زموږ بشپړ قناعت به نه وو حاصل سوی. له نور چا سره يې چنداني ټوکي نه کولې خو په بېنوا صاحب به هر وخت غرضي کېدی. يوه ورځ يې موږ ته مخ را واړاوه او ويل يې تاسي وګوری خر زموږ په ژبه کي معمولاً د بې عقل له پاره استعمالېږي. که څوک چا ته خر ووايي ښه نه ورباندي لګېږي حتی ښکنځل يې ګڼي. مګر خر په فارسي ژبه کي د غټ او ستر له پاره استعمال سوی دی. لکه خرګوش، خرمګس، خرميل، خروار او داسي نور. مثلا موږ ويلای سو چي بېنوا خر شاعر دی. بېنوا صاحب سر له کتابه پورته نه کړ او په ډېره آرامي يې ورته وويل ستاسو شاګردان يو صاحب. ټولو ډېر زيات وخندل؛ خو بېنوا صاحب لکه هيڅ چي نه وي ويلي او حبيبي صاحب لکه هيڅ چي نه وي اورېدلي، مخي ته د پرتو کتابونو لوستلو او ياد داښتونو اخيستلو ته دوام ورکړ. رشاد صاحب له چا سره ټوکي نه کولې او بل چا هم غرض نه ورسره درلود. هغه يوازي د نورو پر ټوکو باندي خندل او په جدي او علمي بحثونو کي يې برخه اخيستله. دا چي مرحوم حبيبي صاحب هر څه ټوکي کولې هغه د هغوی خپل کار دی خو بېنوا صاحب، په ريشتيا هم، د



پښتو ادب يو ستوری وو. ما په شخصي مجلسونو کي هم ډېر زيات ليدلی دی. زه ويلای سم چي په خپل ټول ژوند کي مي د هيڅ انسان دومره خوږ مجلس نه دی ليدلی. د هغه يو لوی کمال، چي ډېر لږ خلک به يې لري، دا وو چي هم يې له حبيبي او ګل پاچا الفت سره بحثونه کول او هم يې له نهه کلن ماشوم سره مجلس کولای سوای. د بېنوا صاحب "غلی شانته انقلاب" په نوم شعر، چي څه باندي پنځوس کاله مخکي يې ليکلی دی، نن هغه شرنګ لري لکه پرون چي ليکل سوی وي.

نسيم ووې د ګل په غوږ کي بدل شو د ياراني رنګ
غلی شانته انقلاب دی بدلوي د زماني رنګ
ورسره نوي رنګونه
رنګارنګ تحولونه
کړي سمسور به راغ رغونه
موسم بل دی هم بل شوی د بلبل د تراني رنګ
غلی شانته انقلاب دی بدلوي د زماني رنګ
دړي وړي زوړ رباب دی
زوړ مطرب خانه خراب دی
زوړ آهنګ د روح عذاب دی
نوی ساز نوی آواز دی هم شو نوی د نغمې رنګ
غلی شانته انقلاب دی بدلوي د زماني رنګ
نوم دام نوی صياد دی
نوی چل نوی بېداد دی
نوی آه نوی فرياد دی

هوښياري صيد لره بويه بدل شوی د داني رنګ
غلی شانته انقلاب دی بدلوي د زمانې رنګ
لري لوی لوی محبسونه
نه يو سرای نه يوه خونه
حبسوي لوی هيوادونه
چې بندي پرې نه پوهيږي داسي شو د زولانې رنګ
غلی شانته انقلاب دی بدلوي د زمانې رنګ
طلايي جام کي د دور
شراب زهر دي په دور
نوشول يې غواړي غور
اې سرمست زلميه پام کړه بل راز شو د ميخانې رنګ
غلی شانته انقلاب دی بدلوي د زمانې رنګ
سره واوښتل قومونه
ويش خبر شول له ژوندونه
د ويدو شول وران کورنه
ګوره کله به شي نوی د پښتون د کاشانې رنګ
غلی شانته انقلاب دی بدلوي د زمانې رنګ.



## ميرغلام محمد غبار:

د ميرغلام محمد غبار له نامه سره، د ښوونځي له لومړيو کلونو څخه آشنا وم. هغه ان د اعليحضرت امان الله خان د زمانې د مترقي او انقلابي اصلاحاتو د پروګرام له طرفدارو ځوانانو څخه وو. د اعليحضرت ظاهرشاه په وخت کي يې بنديخانې او تبعيدونه ګاللي وه. د افغانستان له مشهورو مورخينو او ليکوالانو څخه وو. "افغانستان در مسير تاريخ" کتاب يې، چي د وخت مطبوعاتي سانسور يې خپرېدل منع کړي او په دولتي مطبعه کي يې قيد کړی وو، دونه شهرت پيدا کړی وو چي خلکو به په هره بيه ترلاسه کاوه. ما پخپله، د ماموريت په لومړي کال، يوه نسخه، له پښتون کتاب پلورنځي څخه، چي کتاب يې په پټه خرڅاوه، په (۳۵۰۰) افغانۍ ترلاسه کړه؛ او هغه کتاب تراوسه راسره لرم. په داسي حال کي چي زما مياشتنۍ تنخوا فقط څوارلس سوه افغانۍ وه. ميرغلام محمد غبار د وطن د ګوند او اخبار مؤسس او د (۱۹۴۹م.) کال څخه تر (۱۹۵۱م.) پوري د اولسي جرګې د مشهوري اوومي انقلابي دورې په وکيلانو کي وو. په هغه مشهوره اولسي جرګه کي د افغانستان ډېرو مشهورو انقلابي او وطن پالو عناصرو، ډاکټر عبدالرحمن محمودي، علي اصغرشعاع، محمدسرور ګويا اعتمادي، محمد سرور جويا، ګل پاچا الفت، عبدالهادي خان داوي، عبدالحي حبيبي او ځينو نورو منورينو برخه درلوده چي ډېر يې وروسته د بنديخانو شومه سول او پخپله ميرصاحب غبار هم له اوږده بند ګاللو څخه وروسته، له کابل څخه، فراه او کندهار ته تبعيد سو.

يوه ورځ له خپل ملګري نعمت سره، د معمول سره سم، په کابل کي پياده ګرځېدم، چي نعمت، د چارراهي صدارت سره نيژدې، د سړک پر غاړه، يوې دروازې ته اشاره وکړه او ويل يې دا د غبارصاحب کور دی. په زړه کي مي د

هغه د لیدلو لمبه بله سوه او نعمت ته مي وویل چي راسه کورته یې ورسو. دروازه مو ور وټکوله او کشر زوی یې، حشمت خلیل غبار، دروازه پرانیستله. ویل یې خیریت دی؟ موږ ورته وویل چي غواړو غبارصاحب ووینو. کورته یې رهنمایي کړو او د غبارصاحب د کار خوني ته، چي ډېره وړه کوټه وه، ورغلو. د هغه په تندي کي یو ډول سپېڅلتیا، صمیمیت او اخلاص له ورایه څرګند وو. زما په ذهن کي د هغه شخصیت دومره درونده وو او دومره یې تر تاثیر لاندي راغلم چي ډېري لږي خبري مي یې واورېدلې.

دومره مي په یاد دي چي خبري یې ټولي انقلابي وې او موږ ته یې ویل چي آزادي وړیا نه ترلاسه کیږي؛ بل څوک یې هم نه سي درته اخیستلای او دا ستاسي په څېر زلمیانو د هر یوه جلاجلا وظیفه ده چي دې وطن ته به کار کوی. ځکه چي دا وطن د ټولو کور دی. نه پوهېږم چي په هغه شپه او که وروسته مي د پیرمُغان په نوم شعر ولیکی؛ خو الهام یې د میرصاحب د هغې ورځي له مجلس څخه وو:

پیرمُغان د میخانې په کونج کي
پرون میخورو ته ورو ورو ویله
د مستۍ جام یې و ګرېوان ته توی سو
پاس یې د سترګو تر کونجو کتله
جام د جمشید خُم د سوما که نه وي
نو دا ویجاړه میکده خو لرو
سپیني سینې بنګ او نڅا که نه وي
خواږه یاران توده نغمه خو لرو
که دا زړې نغمې مو نوي کړې
که دا ویجاړې مو آبادي نه کړې



که د غوټیو د سپرلو په نوم
خزانې تندي مو بربادي نه کړې
نو دا ویجاړه میکده به نه وي
خواږه یاران توده نغمه به نه وي

## نورمحمد تره کی:

نورمحمد تره کی، که د خلقیانو له نظام، بې عدالتیو او په عمومي ډول له سیاست څخه جلا وڅېړو، د پښتو په ادب کي خاص مقام لري. د بنګ مسافري، څره، سپین یې داسي ناولونه دي چي هم په لوستلو او هم په ستایلو ارزي؛ او سړی ویلای سي چي په افغانستان کي په پښتو ژبه کي د ناول لیکني له بنسټ ایښودونکو څخه دی. سنګسار یې داسي ناول دی چي که تر اوسه په انګلیسي ژبه ترجمه سوی نه وي نو د پښتو ناول د معرفي کولو له پاره باید چي په انګلیسي ژبه وژباړل سي. د بنګ مسافري ناول مي د ښوونځي په لومړیو کلونو کي لوستی او سپین او څره مي په وروستیو کلونو کي ولوستل. په خپله کتابخانه کي، د نورمحمد تره کي ټول ناولونه او لنډي کیسې لرم.

نورمحمد تره کی مي د پوهنتون په لومړیو دوو کلونو کي، چي لا مي د خلقیانو سره اړیکي درلودل، څو څو ځله لیدلی دی. د یوه سپېڅلي او ساده پښتون مجلس یې وو؛ چا دا ګومان نه سو کولای چي دا ناولونه او لنډي کیسې به ده لیکلي وي او د انګار په جریده کي به فارسي لیکني او سیاسي مضامین په ده اړه لري.

سنګسار، چي ښایي د ده وروستی ادبي اثر او شهکار وي، داسي ناول دی چي، د پښتني ټولني او د وخت د اجتماعي بې عدالتیو د پېژندلو له پاره، په

دوه درې ځله لوستلو ارزي. سنګسار مې په امریکا کې لاسته راغی او د لته مې ولووست. د یوه ساده اطرافي پښتون زلمي، چې په ژوند کې یې په مړه ګېډه په لنده ډوډۍ ارمان نه دی ختلی، د ژوند یو طبیعي جریان دی؛ چې په پای کې په یوه داسي تراژیدي پای ته رسیږي چې سړي ته چنداني د منلو نه ښکاري. ما هم د داستان د دونه طبیعي سیر په پای کې چنداني دانه سوه منلای چې د کابل او شاوخوا خلک دې د یوه حضرت په فتوا پر یوه بېګناه ځوان باندې د کفر حکم وکړي. حکومت دې په سپینو سترګو ورته ګوري او خلک دې یو مظلوم بېګناه انسان په غازي ستهوډیوم کې، د کافر په نوم، سنګسار کړي. خو ډېر ژوند ښه شی دی. د (۲۰۱۵م.) کال د مارچ په میاشت کې مې، چې د اطلاعاتو او کلتور د وزارت له پاره کابل ته تللی وم، د سر په سترګو ولیدل چې د شاه دوشمشېره د جومات د یوه کوډګر مُلا په حکم، د فرخندې په نوم، یوه ځوانه بېګناه ښځه څرنګه، د ټولو خلکو، حتی امنیتي کسانو په مخ کې په وهلو وهلو وژل کیږي. یوه وحشي یې په نس کې ګونډې وروهلې، یوه بل وحشي لویه ډبره ورباندي ایله کړه، یوه بل وحشي موټر وربانديي تېرکړ او لا یوه بل وحشي د هغې بېګناه مظلومې پر مړي باندي تېل وشیندل او اور یې ورواچاوه. مسوول کسان ونیول سول. د اشرف غني د حکومت مقامات ، له قاضي څخه تر اولسمشر پوري، ټول تاوده وه. څو ورځي وروسته، د افغانستان د نورو ویرژلو پېښو او ناخوالو په څېر، هر څه هېر سول. دا پېښه د سنګسار د لیکل کېدلو څخه زیات و کم نیمه صدۍ وروسته منځته راغله او موږ هر څه د سر په سترګو ولیده. د فرانسې مشهور لیکوال ویکټورهوګو د خپل مشهور کتاب بېنوایان په باره کې ویلي وه چې تر څو پوري د ځمکي پر مخ بې عدالتي وي د دې کتاب لوستل به بې ګټې نه وي. زه وایم چې تر څو پوري په افغانستان کې د ظلم او وحشت کمبله هواره



وي او لا ورځ په ورځ پسي خرابیږي نو د سنګسار ناول لوستل به حتمي وي. که په یوویشتمه پېړۍ کې، د امریکایانو د ډیموکراټیک نظام په پنځلسم کال، د کابل په ښار کې، د یوه کوډګر احمق مُلا په تشه خبره او ادعا، یوه بېګناه پېغله په دغسي وحشت وژل کېدلای سي نو د شوربازار د حضرت په فتوا خو یو بشپړ قوم سنګسارېدلای سي. کشکي مې د مظلومي فرخندې ویرژلې پېښه په سترګو نه وای لیدلې او کشکي مې د سنګسار د ناول د وروستۍ صحنې په باب سوال په دغه ډول حل سوی نه وای.

## ګل پاچا الفت:

د (۱۹۷۴م.) کال د اپرېل په میاشت کې ، ډاکټرعبدالحیکم هلالي، ډاکټر پولاد، عبدالله بختانی او زه ، د روهي صاحب په رسمي موټر کې جلال اباد ته په لاره کې، په کڅ کې د ګل پاچا الفت کورته ور وګرځېدلو. زه نه یم خبر چې مخکي به چا خبر ورکړی وو کنه، خو پاچا صاحب لکه زموږ راتلو ته چې منتظر وو، په ډېر ورین تندي زموږ هرکلی وکړ. د کور په باغ کې یې چې د نارنجو او مالټو وني پکښې ولاړي وې کښېنولو. نور یې ټول پېژندل؛ یوازي زه روهي صاحب ورته معرفي کړم. ورته وې ویل چې جهاني ځوان لیکوال او شاعر دی ښه شعر لیکي خو ډېر لږ شعر لیکي. پاچا صاحب وویل چې ښه شی خو تل لږ وي. د پاچا صاحب له نامه سره ان په شپږم ټولګي کي اشناوم او د هغه شعرونه مې د لېسې په لومړیو صنفونو کي لوستي وه. د هغه د لیدلو آرزو راسره وه. ګل پاچا الفت له خپلو هغو عکسونو سره چې ما لیدلي وه ډېر توپیر درلود. هم بوډا سوی وو او هم یې د زړه تکلیف درلود، خو مجلس یې لکه ما چې اورېدلي وه هغسي خوږ او له ظرافتونو ډک وو. ناروغۍ او بوډاتوب ډېر زهیر کړی وو او سړي بېخي فکر نه کاوه چې دا به

هغه د غوره اشعار سرکښ شاعر وي. دا به هغه سړی وي چې نوم یې په ټوله پښتونخوا کې هر سړي ته اشنا دی. څو ځله یې د بېنوا صاحب پوښتنه وکړه او له هر ځل پوښتني سره به موسکی سو. ما اورېدلي دي چې بېنوا به همېشه په پاچا صاحب غرضي کېدی. د دوی ترمنځ د ټوکو او ظرافتونو کیسې خو ډېری دي. نه پوهېږم چې دا کیسه چا راته وکړه چې یو وخت بېنوا صاحب او ځیني نور لیکوالان او د الفت صاحب مخلصان د هغه په همدغه کور کې، په همدغه باغ کې مېلمانه ول. کله چې رخصتېدل او پاچا صاحب د مخه ښې له پاره تر دروازې پوري ورسره تللی وو؛ که یې کتل چې د کوڅې له سره څخه یوه هلک پر خره باندي وابښه بار کړي او د دوی خواته را روان دی. بېنوا صاحب ږغ کړل چې پاچا صاحب وابښه یې درته راوړه. پاچا صاحب سمدستي هلک ته ورږغ کړل چې هلکه دا وابښه بیرته یوسه؛ مېلمانه رخصتیږي.

د غرمې ډوډۍ مو د پاچا صاحب د کور په باغ کې وخوړه. خوږه خاطره به مي تر مرګه هېره نه سي. درې څلور ساعته د څو دقیقو په څېر تېر سول. د حاضرینو د هریوه په څېره کي پاچا صاحب ته درناوی او اخلاص لیده کېدی او احساسېدی. ګل پاچا الفت له خپل ټول لوی والي سره دومره ملنګ شخصیت درلود چې هر څوک یې احترام ته مجبوراوه. د ګل پاچا الفت له کلام او د کلام له زور سره هر څوک بلد دي خو دلته به یې د درناوي په خاطر یو څو څلوریزي راوړو.

د جـنـت حـورو زړه وړی د زاهـد دی
پـه هـمـدې فـکـر ولاړ خـدای تـه عـابـد دی
د ښـایسـتـه حورو پـه لاس جـامونـه ویني
ځکـه تېـر لـه خـپـلـه سـره مـجـاهـد دی



د ښـایسـتـه حورو پیغـام دی دین راوړی
د صـوفي لـه سترګو حورو دی خوب وړی
نیـمـه شـپـه د جنت حوري ورنـه غـواړي
خدای تـه خوشـي عبـادت نـه کړي وګړی

***

نـه دي بـد تـمـام غـلـجي او درانـي
یـا اوزبـک یـا هـزاره یـا تـرکـمـنـي
نـه ټول بـد دي نـه ټول ښـه دي اولسـونـه
دې قـانـون نـه مسـتـثنی دي لـغـمـاني

***

پـه پـولیس او پـه عسـکر پـه پـهره دار
خزانې خپلي سـاتلای شـي سـرکـار
خولـه عـام نفرت نـه ځان ژغورلای نـه شـي
پـه تـوپـونـو پـه ټـانـکـونـو زرهـدار

***

زما او د ګل پاچا الفت دا لومړۍ او وروستۍ لیدنه سوه. څلور کاله وروسته هغه وفات سو او د پښتو شعر او نثر د خپل تاریخ د یوه ستر انسان څخه محروم سو.

## محمد انور نومیالی:

محمد انور نومیالی د میرویس لیسې په دوولسم ټولګي کې زموږ د منطق معلم وو او د فاکولتې تر ختمولو او عسکري خدمت وروسته مې ملګری هم سو. د لومړۍ ځوانۍ کلونه یې د دیني علومو او په جوماتو کې د عربي ژبې په زده کړه تېر سول؛ ځکه نو د مکتب له رسمي زده کړو څخه بې برخې پاته سو. نومیالي صاحب ماته کیسه کوله چې عبدالغفار، چې په وروسته کې مولوي عبدالغفار بریالی او د پښتو ژبې مشهور شاعر سو له ده سره هم سبقه وو او ښه ډېر وخت د یوه استاد یا مولوي شاګردان ول. نومیالي صاحب ویل چې موږ څو تنه ملګري، چې ټولو دیني زده کړې کولې، د یوه مشترک انډیوال پر دوکان باندې کښېنستلو. یوه ورځ د هغه دوکان ته ورغلو، دوکان یې تړلی وو. څو ورځې وروسته بیا ورغلو هم یې دوکان تړلی وو. نو بریالي، چې په هغه لومړۍ ځوانۍ کې یې د شعر لیکلو ډېره روانه طبع درلوده، په هغه ګړۍ یو نظم ولیکی او د انډیوال د تړلې دروازې تر کولپ لاندې یې ورته کښېښود.

پـه راتـلـلـو دي را وایسـتـل نـوکـان
مـوږ چې راسـو سـتـا تـړلـی وي دوکـان
تـه بـه کـومـه ورځ راځې دوکـانـدارۍ تـه
د حـلالـي نـفـقـې و مـزدورۍ تـه

پر دغه ډول یې شپږ اووه بیته ورته ولیکل. تصادفاً زموږ دوکاندار انډیوال ډېر ګرانفروش وو او د حلالي نفقې پر کلمې باندې موږ ټولو وخندل. د دوکاندار انډیوال مو هغه نظم دونه خوښ سوی وو چې ټول یې په یاد کړی وو.

د قسمت لکه چې داسې خوښه وه چې د نومیالي صاحب او مولوي



عبدالغفار بریالي لارې بېلې سې. محمد انور نومیالي لږ وروسته ډېره لنډه او وړیسې وخړیل. نصوار یې پرېښودل. د ملایانو پر ځای یې له مطبوعاتیانو او لیکوالانو سره ملګرتوب پیل کړ. څرنګه چې په عربي ګرامر کې ډېر ښه وو نو د انګلیسي ژبې په زده کولو کې یې ډېر زیات مشکل ونه لیدی. خو دا باید ووایو چې انګلیسي ژبه یې ښېله استاده داسې زده کړه چې دارالترجمه یې درلوده او د مکتب شاګردانو ته یې د انګلیسي درس ورکاوه. له انګلیسي ژبې څخه یې کتابونه ترجمه کړل او د علمي او خیالي سوشلیزم په نوم یو کتاب یې په هغه وخت کې د کندهار په مجله کې، چې محمد علم بڅرکی یې مدیر وو، خپور کړ. د ډاکټر والټر بیلیو د پښتنو اتنوګرافیک جوړښت کتاب یې پښتو ته ترجمه کړ او یوازې په ترجمو بسیا نه سو بلکه علمي او ادبي آثار یې ولیکل.

نومیالي صاحب د نظم لیکلو ډېر ښه استعداد درلود. د نظم ژبه یې ډېره تېره وه او عقیده یې هم دا وه چې شاعر باید کله، کله داسې څه ولیکي چې کلتوري او عنعنوي سرحدونه مات کړي. په دې سلسله کې یې د روسي ژبې د چستوښکو یا طنزونو یو ډول معادل طنزیه څلوریځې لیکلو ته مخه کړه. دا طنزیه څلوریځې دغه ګړی لا د چاپ له پاره ذرنې دي او یوازې د ده له نیژدې ملګرو سره په کورونو کې پاته دي. ماته یې څو ځله ویل چې زه هم د ده پر طرز باندې طنزیه څلوریځې ولیکم خو ما به هر وخت ورته ویل چې هر شاعر خپل سبک لري. که مې هغه خوند، چې تاسې په کړی دی، په کولای سوای نو حتماً مې لیکل. دې څلوریځو د نومیالي صاحب له خولې خاص خوند درلود. ماته یې هم په ټیلیفون کې لوستلي او هم یې په ډنمارک کې را ته لوستلي دي. نومیالي صاحب په نسبتاً پرمخ تللي عمر کې روسیې ته مهاجرت وکړ او له هغه ځایه ډنمارک ته ولاړ. څو کاله وروسته په ډنمارک

کي وفات سو. په روسیه کي د هستوګنې په موده کي یې ډېره ښه روسي ژبه زده کړه او په داسي حال کي چي عمر یې تر پنځه شپېتو کلونو اوښتی وو ډنمارکي ژبي ته یې ملا وتړله او ډنمارکي یې داسي زده کړه چي د پښتو څخه یې د ماشومانو کیسې هغې ژبي ته ترجمه کړې.

## ډاکټر بهاءالدین مجروح:

د جهاد په دوران کي به په پاکستان کي ډېر جنایتونه سوي وي؛ خو د بهاءالدین مجروح قتل ځکه په ډېرو لویو جنایتونو کي راځي چي د هغه ځای بیا په پېړیو نه ډکېږي. بهاءالدین مجروح د فلسفې استاد وو؛ په پښتو، فارسي، عربي، اردو، فرانسوي، انګلیسي او جرمني یې رواني خبري او لیکني کولې. یوازي لیکوال او عالم نه بلکه د دې تر څنګ په ښو شاعرانو کي هم راځي. پوهاندصاحب د پوهنتون په څلورم ټولګي کي زموږ د فلسفې استاد وو. د لیاقت او پوهي په باب تبصره به یې زما تر صلاحیت لوړه وي خو دا چي د ده درسونه او لیکچرونه مي اورېدلي او په صنف کي ورته کښېنستلی یم، ځان نېکمرغه بولم. له پوهنتون څخه تر فارغېدلو وروسته، په (۱۹۷۷م.) کال کي، د یوه سیمینار په ترڅ کي، یو ماښام زه، روهي صاحب، شپون صاحب، مجروح صاحب او اشرف غني، چي هغه وخت لا امریکا ته نه وو تللی، د بېنوا صاحب کورته ولاړو. هلته ما، بېنوا صاحب او شپون صاحب شعرونه ولوستل. زما شعرونه او ډیکلمه یې د ونه خوښه سوه چي له هغې ورځي وروسته ملګري هم سولو او زه ویلای سم چي د ملګرتوب افتخار یې لرم. په افغانستان کي به کتابونه ډېر لیکل سوي او نور به هم ډېر ولیکل سي خو د مجروح صاحب " اژدهای خودي " داسي فلسفي، وحیاتي، سیاسي او ادبي اثر دی چي بیا لیکل کېدل مي بېخي زړه ته نه لوېږي.



اژدهای خودي لومړی دفتر په کابل کي چاپ سو او د فاکولتې څخه تر فارغېدلو وروسته مي لوستی وو؛ خو دوهم دفتر یې، چي په (۱۹۷۶م.) کال کي یې بشپړ کړی وو؛ او لا یې د نورو دفترونو د لیکل کېدلو زېری ورکاوه، د افغانستان د مطبوعاتي سانسور تر حوصلې ډېر لوړ وو. ښه مي په یاد دي چي د ژمي په یوه سړه شپه کي یې په تقریبا پنځو یا شپږو ساعتونو کي له سره تر پایه، له خپلي جادوګري ډیکلیمې سره راته ولوست. زه خوشبخته یم چي دا دفتر مي د ده په کور کي پخپله د ده له خولې اورېدلی دی. ځکه چي هغه دفتر، چي یوازي یوه نسخه یې د ده په قلم لیکل سوې وه، پېښور ته د مهاجر کېدلو په وخت کي له منځه ولاړ او د داسي شاعرانه اثر له سره لیکل حتي پخپله د مجروح صاحب له پاره هم ممکن نه وو. شاعران پوهېږي چي د یوه هنري او شاعرانه اثر بیرته تولیدول او د کاغذ پر مخ راوړل څومره ګران کار دی. په پاکستان کي مي د مهاجرت په ترڅ کي، په پېښور کي د یوه کال اوسېدلو په وخت کي که هره ورځ نه وي لیدلی نو په هفته کي خو مي دوه دري ځله حتماً لیدی. د مجروح له ناکراره زړه، اورني قلم، پوهي او استعداد څخه، د پاکستان د مجاهدینو مزدورو امیرانو ، چي لا اوس هم په خپلو سرولاسونو فخر کوي، افغانان محروم کړل؛ او د هغه ناقراره له اوره ډک زړه یې د تل له پاره د تل لپاره سوړ او کرار کړ. دلته به د خپل استاد او ملګري هغه شعر را واخلم چي په اروپا کي د عالي تحصیلاتو له بشپړولو څخه وروسته یې د کنړ سیند ته لیکلی او ماته یې په پېښور کي لوستی دی:

اې زمـا د زړه دریـابـه نـا آرامـه
د ابـد پـه لـوري درومـې بـې انـجـامـه

هی روان يې ته چپې چپې داستان يې
هم د نن هم د پرون د هر زمان يې
ستا ساحل کي کړي ما ډيري خاپوړي
قلاګۍ د شګو ماکړې ډيري جوړي
ستا په غاړه ما وهلي ډېر دانګونه
ما په خوب همېش ليدلي ستا موجونه
ستا بهير ته ما کتلي په وار واري
ستا ګودر ځای د ديدار وو د دلداري
څه موده وم ستا نه لري پرېوتلی
طالبۍ پسي دورې دورې وتلی
د سيندونو دريابونو پوري غاړه
ما ملکونه هيوادونه وليد واړه
شاګردي مي ډېره وکړه د پوهانو
د فرنګ د استادانو عالمانو
اوس له ډېري مودې وروسته خپل ديار ته
يم راغلی ستا ساحل ته ستا ديدار ته
خو ګومان مي هرګز نه شي چي به تېر وي
دا مودې مودې کلونه دومره ډېر وي
ځکه ستا جهان ثابت هر څه ثابت دي
ځنګل غرونه هم په هغه شان ساکت دي
ته هماغه شان روان يې په بې لاري
کله کوږ ځې کله سم کله په قاري يې
کله چپ شې غلی غلی خپل ځان خپور کړې
کله کاږ باندي ورخېژې شور ماشور کړې
دايمي سندره وايې پروا نه کړې



که څوک غوږ ږدي که يې نه ږدې سودا نه کړې
هر طرف ته يې روان بې التفاته
نه نظر کوې و خواته نه دي شاته
هی روان يې درومې تل تر تله
ابدي سندره وايې خوږه خپله.

## اجمل خټک:

د اجمل خټک له نامه سره د مکتب په کلونو کي اشنا سوی وم او د هغه د غيرت چيغه په نوم کتاب مي په يوولسم ټولګي کي لوستی وو. هر شعر يې جلا اغېزه راباندي کړې وه او د جنت په نوم شعر مي تر اوسه په ياد دی. زه ګومان کوم چي، د پوهنتون په کلونو کي، زما لومړني شعرونه به، چي له بده مرغه ډېری يې له منځه تللي دي، د شکل او مضمون له مخي، د اجمل خټک تر اغېزې لاندي ول. د شلمي ميلادي پېړۍ د پنځوسمي، شپېتمي او اويايمي په لسيزو کي به د پښتو په ژبه کي بل شاعر دونه لويه هنګامه نه وي جوړه کړې. د استعمار، استثمار، استبداد او اجتماعي بې عدالتيو پر ضد ډېرو پښتنو شاعرانو ږغ اوچت کړی او قلمونه يې ځغلولي دي خو د اجمل خټک شاعرۍ بېل رنګ او جادو درلود. په هغه زمانه کي د پښتو په ژبه کي ډېر لوی شاعران هم موجود او هم تېر سوي وه او دا نه سو ويلای چي د اجمل خټک شاعري به، د شکل يا مضمون له مخي، تر ټولو غني وه؛ بلکه د زمانې شرايط داسي راغلل چي اجمل خټک يې تر ټولو وځلاوه. د پنځوس او شپېتو په لسيزو کي د دريمي نړۍ او حتی د اروپا او امريکا پر شعر او شاعري باندي چپي او انقلابي افکارو سيوری غوړولی وو. چا چي غوښتل شعر يې ولوستل سي او هرکلی يې وسي نو بايد چي څه انقلابي مرچ او

مساله یې وراچولې وای.

په نړۍ کې د انقلابي ادبیاتو او انقلابي رهبرانو انګازې خپرې وې. د انګولا پاتریس لومومبا، د الجزایر احمد بن بلا، د کیوبا فیدل کاسټرو، د لاتیني امریکا ارنیسټو چیګیوارا د نړۍ د لویو او جبارو قدرتونو پرضد د مقاومت سمبولونه وه او نومونه یې په ادبیاتو کې د تقدس پولې ته رسېدلي وه. د کوریا په جنګ کې امریکا ماته کړې وه او کیم ایل سونګ د نړۍ د قهرمانانو په کتار کې ولاړ وو. په ویټنام کې هوچي مین له امریکا سره ډغري وهلې او هرآن د امریکا د جبار قوت د ماتېدلو انتظار ایستل کېدی او د نړۍ ټولو انقلابیانو ته یې د بري زېری او امید ورکاوه. په دریمه نړۍ، په تېره بیا منځني ختیځ کې، پرله پسې چپي کودتاوي رواني وې؛ او د شوروي او کمونیستانو خولې په غوړو کې وه.

اجمل خټک، چې د پنجابیانو بندیخانې یې تېري کړي وې او د شعر او ادب په دنیا کې داسي ځلېدلی وو چې نوم یې د پښتونخوا د هر پښتون غوږ ته رسېدلی وو، په دغو شرایطو او فضا کې، د پاکستان د پوځ له تعقیب څخه، افغانستان ته وتښتېدی او د اعلیحضرت محمدظاهرشاه حکومت هم، په ډېر عزت ومانه. لږ وخت وروسته مو د خوشحال خان د ښوونځی له لیلیې سره، چې اوس شیخ آصف محسني د شیعه مذهب د تبلیغاتو مرکز او جومات پکښې جوړ کړی دی او ویل کېږي پیسې یې د ایران حکومت ورکوي، د اجمل خټک د کور څرک وایستی. د اجمل خټک له نیژدې لیدل او له هغه سره مجلس کول زما د ژوند له لویو آرزوګانو څخه وه. زه او زما ملګری نعمت یې کورته ورغلو او په ډېره پرانیستې غېږه او ورین تندي یې ومنلو. کله چې مي ورته وویل چې زه هم کله، کله شعر لیکم او د خپل شعر یوه نمونه مي ورته ولوستله نو دونه مینه یې راکړه چې وروسته بیا په ډېره



زړه ورتیا کورته ورتللم. جمعه خان صوفي، چې په هغه وخت کې به یې ښایي زما عمر درلود او د دوه ویشتو دیرویشتو کالو به وو او له اجمل خټک سره یو ځای کابل ته راغلی وو او د اجمل خټک محافظ تورلالی مو په همدغه ورځ ولیدل او چې هر وخت به د اجمل خټک کورته ورتللو نو له دوی دواړو سره مخامخ کېدلو.

دا وخت زموږ ملګرو له خلقیانو او پرچمیانو سره دښمني پیل کړې وه او د ټولو سره مو جنګ اعلان کړی وو؛ اجمل خټک په دې باره کې څه ونه ویل خو وروسته څرګنده سوه چې هغه د پرچمیانو سره ډېر نیژدې اړیکي لري. موږ ته یې د پرچم په ګوند کې د شاملېدلو بلنه راکړه او کله چې موږ د خلقیانو او پرچمیانو سره پر خپلو اختلافاتو باندي خبري ورته وکړې نو ده په جواب کې راته وویل چې که غواړی داسي څوک پیدا کړی چې ستاسي له نظر سره بشپړ توافق ولری نو هغه سړی یوازې په هینداره کې پیدا کولای سی. یعني هغه به تاسي هر یو پخپله یاست. ده موږ ته وویل چې د پاکستان د نیشنل عوامي ګوند د مشرانو ترمنځ ډېر ژور فکري اختلافات موجود دي مګر ټول په یوه ګوند کې فعالیت کوي. ده وویل چې د ګوند له مشر خان عبدالولي خان، لطیف افریدي، افضل خان لالا او نورو سره د نظر ډېر ژور اختلاف لري مګر دا دی په یوه ګوند کې ورسره ملګری دی. خو موږ ویل خدای یو مالګي تروې دي که موږ له خلقیانو یا پرچمیانو سره یو ګام هم واخلو. له دې سره، سره مي د اجمل خټک کورته تګ پرې نه ښود او د شهید داؤد خان د حکومت په وخت کې یې هم کورته ورتللم. د داؤد خان د حکومت په دوهم کال مي دریم زوی پیدا سو او خاص د ده په احترام مي نوم اجمل وربانديکښېښود. د اجمل خټک د شعر یوه ښېګڼه دا وه چې د عمر ترپایه پوري یې هر نظم د اولس له پاره او د اولس په ژبه ولیکی. دا دوه شعرونه یې د ژوند چیغه په نوم کتاب څخه را اخلم.

## دا مونږ څه شو؟

یا به په تاریخ ویاړو یا به شهیدان ژاړو
ځان ته به مو شاوي یه خلقه! دا څه شو؟
خپل ته به زمري وایو بل ته به مریي یو
ژوند به مو تباه وي یه روڼو! دا څه شو؟
منډي به زمونږه وي ښکار به د غټانو وي
نوم به د لالا وي یه روڼو! دا څه شو؟
بر به مو بمونه وي لر به سازشونه وي
کور به مو تالا وي یه روڼو! دا څه شو؟
یو خوا د خوارۍ مزدور بلخوا د خانۍ غرور
وران به بې صلا وي یه روڼو! دا څه شو؟
خوار ختېک لګیا دی هسي سرهوا دی
دغه که سودا وي یه روڼو! دا څه شو؟

## کچکول روان دی

کچکول روان دی رباب ټنګیږي
وروڼه جنګیږي کور یې ورانیږي
لاري تیارې دي قام یې اوده دی
دنیا په څه ده پښتون په څه دی
غټ غرضي شو خوار نا خبره
قاضي بې توله حاکم بې سره
منډه د ده ده ښکار د هغه دی
دنیا په څه ده پښتون په څه دی
دنیا د خان شوه دین د مُلا شو
ژوند نه دستا شو او نه زما شو



قلم څه نه شو علم څه نه دی
دنیا په څه ده پښتون په څه دی
کور بې مالکه کوڅه کښي سپي شو
موسم بې وخته پټې پردي شو
د ګونګي چیغه کار د ړانده دی
دنیا په څه ده پښتون په څه دی

## علمي او تاریخي سیمینارونه:

په پښتو ټولنه کي زما د مقررۍ په لومړي کال، د (۱۳۵۳ش.) د مرغومي میاشتي پر پنځلسمه، د پیر روښان د علمي سیمینار د جوړېدلو له پاره نیاری پیل سو؛ او مرحوم روهي صاحب یې عمومي مسولیت پر غاړه واخیست. زه یې په هغه سیمینار کي برخي اخیستلو ته تشویق کړم. ما څو ځله ورته وویل چي په دې سیمینار کي ډېر لوی خارجي او داخلي عالمان او پوهان برخه لري، زه به هلته څه وایم. روهي صاحب دا یوه خبره کوله چي هیڅوک تر تا بهتر نه دي، صرف برخه واخله. تقریبا شپږ میاشتي مي پر مضمون باندي چي، د روښاني نهضت د پرمختګ او ماتي علتونه یې عنوان وو، شپه او ورځ کار وکړ. د پښتو ټولني په کتابخانه کي مو ډېر لږ کتابونه درلودل او د تاریخي او علمي موضوعاتو په باب د څېړنو له پاره یې کفایت نه کاوه. د کابل عامه کتابخانه، چي پښتو ټولني ته ډېره نیژدې او لس دقیقې پیاده فاصله یې ورڅخه درلوده، د ریسرچ له پاره ښه او ضمنا آرام ځای وو. کله چي مي د عامه کتابخانې د کار د ساعتونو پوښتنه وکړه نو موظف مامور یې راته وویل چي کتابخانه پر څلور بجې بندیږي. زه د کتابخانې رئیس غلام حضرت کوشان ته ورغلم او هغه ته مي خپله ستونزه وویله. ما

ویل زه رسمي مامور یم؛ زه به څرنګه او په څه وخت کي په دې کتابخانه کي ریسرچ وکړای سم. هغه په ډېره بې پروایي راته وویل چي زما له پاره بهتره لار استعفی ده. بیا به نو په بېغمه زړه کتابخاني ته ورځم. ما په سبا سهار روهي صاحب ته د غلام حضرت کوشان د هغه ستغ او تریخ جواب کیسه وکړه. روهي صاحب راته وویل چي د غلام خضرت کوشان خبري پرېږده ته هره ورځ، له سهاره تر ماښامه د کابل عامه کتابخانې او د پوهنتون کتابخانې ته، د مطالعې او څېړني له پاره تللای سي. خو باید فکر مي وي چي بلي خواته ولاړ نه سم او که چیري تفتیش ټلیفون راته وکړي زه باید په کتابخانه کي حاضر یم.

په هغه زمانه کي چي د پیر روښان بین المللی سیمینار جوړېدی، د مارکسیزم فلسفې او کینې اړخو افکارو پر عمومي اذهانو، حتي زموږ د ځینو سپین ږیرو لیکوالانو او پوهانو پر ذهنیتونو، باندي یو ډول تسلط درلودی. دا وختلا د داؤد خان نظام له انقلابي جوش څخه نه وو لوېدلی او د سیمینار فضا، یو ډول د چپي او انقلابي افکارو تر تاثیر لاندي وه. د چپي او انقلابي افکارو د څرګندولو او په دې میدان کي د نیلي ځغلولو له پاره ځکه زمینه برابره وه چي د پیرو روښان حرکت د مغولو د استبداد پر پاڅون وو؛ او له بلي خوا شوروي پوهانو، له ډېري پخوا، دا نهضت چپي او انقلابي معرفي کړی وو او د استناد له پاره یې تیار مأخذونه په لاس راکول. د پیر روښان په سیمینار کي ډېرو منورینو، چي د هغه د سیاسي ماحول، د هغه د مبارزو، سیاسي شخصیت او جګړو په باب یې لیکني کړي وې، عقاید او لیکني د شوروي لیکوالانو، اسلانوف، ګیرس، رامدین او مسون او نورو تر مستقیمي اغېزې لاندي وې. په هغو شرایطو کي، چي لا چپي عناصرو، په تېره بیا پرچمیانو، په حکومت کي زیات نفوذ درلود، د سیمینار وضع داسي



راغلې وه چي د پیرروښان تحریک ته چپي، ضد فیوډالي، ضد استعماري او ضد استبدادي، حتی طبقاتي رنګ ورکړي. پیروښان، یا بایزید انصاري، د مغولو د دربار او ظالمو خانانو په مقابل کي، د پښتنو اولسونو، په تېره بیا مظلومو خلکو استازی او لارښود او په مقابل کي یې اخوند درویزه، چي د پیر روښان د عقایدو مخالف اسلامي عالم وو، د مغول جلال الدین اکبر استازی او د پښتنو سیمو ته لېږل سوی سړی معرفي کېدی. په سیمینار کي هیچا د دې پوښتني جرأت نه سو کولای چي پر اخوند درویزه باندي د دومره لوی تور د اثبات له پاره کوم دلیل او سند هم موجود دی او که. حتی په کابل کي د اېران د سفارت کلتوري آتشه حسین خدیو جم، چي د فارسي ژبي ښه شاعر وو، د پیر روښان په ستاینه او اخوند درویزه په غندنه کي یوه لویه قصیده ولیکله او موږ د سیمینار غړو ته یې په جلال آباد کي د مېلمستیا په ترڅ کي واوروله. د سیمینار ټول جریان او خبرو انقلابي رنګ درلود.

زما ښه په یاد دي چي د سیمینار په جریان کي، چي پوره یوه هفته یې دوام درلود، د کابل په پوهنتون کي د یوې ماښامنۍ مېلمستیا په ترڅ کي، د ادبیاتو پوهنځي د دري څانګي استاد، پوهاند محمدرحیم الهام، پوهاند عبدالحي حبیبي ته مخ را واړاوه او ورته وې ویل چي تاسي تاریخ لیکونکو د افغانستان له پاره، په تېره بیا د ریښتوني تاریخ د روښانولو په لاره کي هیڅ خدمت نه دی کړی. تاسو یوازي د پاچاهانو او قهرمانانو تاریخونه لیکلي دي په داسي حال کي چي تاسي باید د خلکو او زحمتکښانو تاریخ لیکلی وای. البته د هغه مرحوم د دې احساساتي خبرو علت دا وو چي زموږ سره پر مېز باندي د شوري اتحاد د علومو د اکاډیمۍ غړی عبدالقادر مانیازوف او د سفارت استازی انور علی یوف ناست وو. په داسي حال کي چي پخپله

پوهاند الهام، څه موده مخکي، د مساوات د اخبار، چي زياتره يې د چپي ورځپاڼو په مقابل کي د ښي اړخ فکر نمايندګي کوله، مسول مدير وو. زما خپل مضمون د شوروي پوهانو اسلانوف، ګيرس، پالياک او نورو د نظرياتو، چي زما نيژدې ملګري شهيد انجنير اکبر راته ترجمه کړي ول، تر اغېزې لاندي وو. زما په عقيده، چي زياتره استناد مي په شوروي او مارکسيستي آثارو کړی وو. زما د مضمون د متن په اساس، د پير روښان تحريک د مذهبي، قومي، طبقاتي او ملي تضادونو د ټکر په نتيجه کي انکشاف کړی وو او د پير روښان له تحريک سره، بيرته د همدغو تضادونو د ټکر په نتيجه کي، هغه تحريک ناکام سوی وو. زه چي اوس خپل هغه مضمون لولم نو خپل استدلال او د پير روښان د عمده اثر خيرالبيان څخه خپل درک او د هغه متن ارزيابي کولو ته حيران سم. البته په هغه سيمينار کي ډېرو سپين ږيرو او مشهورو ليکوالانو داسي اپلاتي وويلې چي زما مضمون اوس هم ډېر علمي او استدلال مي ډېر پر ځای ورته ښکاري. په دغه سيمينار کي له پوهاند عبدالحي حبيبي، پوهاند رشادصاحب، بېنوا صاحب، ډاکټرعبدالغفورروان فرهادي، اسمعيل بلخي، معصومې وردګ او نورو پوهانو سره آشنا سوم.

په دوهم سيمينار کي، چي په کال (۱۳۵۶ش.) کي جوړ سو او په هغه کي مي هم د مرحوم روهي صاحب د مستقيم فشار په وجه برخه واخيستله، زما نظر بشپړ تغيير کړی وو. دا ځل مي د مرحوم محمدابراهيم عطايي د نظر په خلاف، چي فوکلوري نکلونو ته، په تېره بيا د موسی جان او ولي جان نکل ته، يې طبقاتي رنګ ورکړی وو، څرګند مخالف دريځ نيولی وو. مرحوم عطايي تر پايه پوري زما نظريات په ورين تندي اورېدل او حتی تشويقولم يې. کشکي د هغو پوهانو علمي سطح، پوهه او علمي حوصله اوس موجوده



په همدغه سيمينار کي مي مشهور ډنمارکی انتروپولوجيست کلاوس فرديناند، چي د بهرنيو مېلمنو په جمله کي راغلی وو، وپېژاند. د قسمت خبري دي چي زما د مهاجرت په سختو شپو ورځو کي همدغه سړي زما د ژغورونکي رول ولوباوه.

د خوشحال خان ختک په سيمينار کي مي، چي د حفيظ الله امين په وخت کي جوړ سوی وو، نظر داوو چي پښتنو نه يوازي د غلامۍ دوره تېره کړې نه ده بلکه د غلامۍ د نظام په مسير کي واقع سوي نه دي. دا خبره د خلقيانو، چي قدرت د حفيظ الله امين په لاس کي وو، له نظر او په اصطلاح تاريخي ماټرياليزم سره، چي په هره ټولنه کي د پنځو تاريخي دورو، لومړي کمون، د غلامۍ دوره، فيوډاليزم، کاپيټاليزم او سوشليزم حتمي تېرېدلو ته عقيده لري، په ښکاره تضاد کي وه. مرحوم روهي صاحب، د يوه مهربان دوست او خواخوږي مشر په حيث، راته وويل چي که په سيمينار کي دا نظر حتماً وړاندي کوې نو لږترلږه په دې باب له عامو بحثونو څخه ځان وژغوره. هسي نه چي تاوان درته ونه رسيږي. دې سيمينار ته اجمل ختک، پرېشان ختک او د پېښور د پښتو اکېډيمي دوه تنه نور غړي هم راغلي ول. يوه عجيبه فضا وه. د اجمل ختک او پرېشان ختک په شمول، ډېرو لويو لويو پوهانو استدلال کاوه چي خوشحال خان ختک له لويه سره د مغولو د نظام او واکدارۍ سره مخالف وو. ګواکي د هغه په باره کي تاريخونو او متونو دروغ ويلي دي. زما استدلال دا وو چي د ډهلي او اګرې سلطنت په سيمه کي يوه مشروع او قانوني واکمني وه. د دې سلطنت نوکري هيڅ عيب نه وو؛ ځکه چي له مغولو څخه مخکي ډهلي او اګره د پښتنو په لاس کي وه. له هغه څخه مخکي د سيدانو او له هغه څخه مخکي د ترکانو په لاس کي وه. پښتنو جنرالانو او خانانو د هغو سلطنتونو خدمتونه کړي او وروسته پخپله قدرت ته رسېدلي

دي. دغه راز ترکانو، هندوانو او ایرانیانو د پښتنو د څه کم سل کلني واکداری په وخت کي د پښتني سلطنت نوکري کړي دي. دا خبري پخپله د خوشحال خان په شعرونو کي راغلي دي.

پـرورده کـه د مـغـولـو پـه نـمـک یـم
د اورنـګ لـه جـوره هـم لـه غـرېـوه ډک یـم
یـا داچي: د مغـول لـه پـاره مـا توري وهلې
پښـتـو بـه راتـه کـړې ډېـري ښـکـنځـلـي
پښـتـانـه مـي پـه زرګـونـو دي وژلـي
پـه سـرونـو بـه یې خره غـوایـي وه لښـلـي

دا خبري د خوشحال خان له ادبي مقام او پښتو ژبي او ادب د هغه د خدمتونو له ارزښت څخه هیڅ شی نه کموي. موږ باید د خوشحال خان عصر ته د شلمي پېړۍ په عینکو کي ونه ګورو. دا د هغه وخت یو ضرورت وو. خو دا باید ووایم چي ما هیڅا ته قناعت ورنه کړای سو او یا چا په لوی لاس قناعت راسره ونه کړ. د حفیظ الله امین پاچهي ریشتیا هم له داسي لویو ستونزو سره مخامخ وه چي زموږ غریبانو علمي او تاریخي بحثونو ته یې د توجه کولو وخت نه درلود.

د خوشحال خان سیمینار ته د تیاري په شپو ورځو کي مي یوه ورځ د روسي محقق اسلانوف د "روښانیانو ملي نهضت" په نوم رساله، چي محمد اکبر معتمد شینواري ترجمه کړې وه او ما د پیر روښان په سیمینار کي کار ور څخه اخیستی وو، سره اړوله. په دې رساله کي یې یو ځای د راورټي د پښتو شعر څخه منتخبات په نوم کتاب د (۱۸۴) یم مخ په حواله لیکلي وه چي" د خوشحال خان د مشرتابه تر زمانې پوري، د خټکو د مځکو پولي معلومي نه وې. ګواکي د خټکو د قبیلې د کورنیو د پاره د ټاکلو مځکو حدود معلوم نه



وه، خوشحال خان ټولي مځکي سروې کړې، د خټکو د قبیلې د هري کورنۍ د مځکو اندازه یې ورته معلومه کړه او په خپل کتاب کي یې درج کړې. بیا نو هري کورنۍ ته معلومه سوه چي څومره مځکه کرلای سي. دا وېش تر اوسه هم پر خپل حال پاته دی او تر هغه ځایه چي زه خبر یم کوم تغییر نه دی پکښي راغلی. او ډېر هغه کوچني ډبرین څلي چي د دې مځکو د پولو د ټاکلو له پاره درول سوي ول او س هم ولاړ دي"

زما له پاره، چي د خوشحال خان د وخت پر طبقاتي سستم او تولیدي اړیکو پر موضوع مي کار کاوه دا خبره ډېره مهمه وه. له استادانو څخه مي پوښتنه وکړه چي که چا د راورټي دا متن لیدلی او په یاد کي یې پاته وي. ټولو منفي جواب راکړ. د راورټي هغه کتاب، چي په پښتو ترجمه سوی نه وو، د اکاډیمي په کتابخانه کي موجود نه وو. زه د پوهنتون کتابخانې ته ورپسي ولاړم. کتاب مي پیدا کړ، ومي کوت؛ د یادي سوي حوالې څخه مخکي او وروسته مخونه مي وکتل مګر هغه د خوشحال خان شعرونه وه او مطلوب بیان مي پیدا نه کړ. تر پوهنتون پوري تللو او بیرته اکاډیمۍ ته ستنېدلو زما څه باندي درې ساعته وخت ونیوی. استادانو ته مي وویل چي ما په کتاب کي هغه متن پیدا نه کړ. رشاد صاحب راته وویل چي ته وګوره ښایي د کتاب د مخ لمبر سره اوښتی وي مثلاً د کتاب مخ (۱۸۴) نه بلکه (۱۴۸) وي. وخت ناوخته وو. بله ورځ بیا پوهنتون ته ولاړم. کتاب مي را واخیست. د رشاد صاحب خبره سمه وه. هغه متن په (۱۴۸) مخ کي وو. البته راورټي د خپل دغه نظر له پاره هیڅ ماخذ نه وو ښودلی. ما له همدغه امله په خپل مضمون کي د راورټي له متن څخه استفاده ونه کړه.

کله چي د خوشحال خان سیمینار پیل سو؛ د اکاډیمي یوه علمي غړي ډاکټر محمد اکبر مددي، چي ډاکټري یې، په فارسي ادبیاتو کي، له ایران

څخه ترلاسه کړې وه، همدغه د راوړتي متن یې د اسلانوف له هماغې تېروتني سره اخیستی وو؛ مګر د اسلانوف نوم یې نه وو یادکړی او مستقیما یې پر راوړتي حواله ورکړې وه. زه پوهېدم چې ډاکټرمددي په انګرېزي نه پوهېږي او د راوړتي متن لوستلای نه سي. لاس مې پورته کړ او د حوالې په باب مې توضیحات ورکړل. پر ډاکټر مددي خولې راماتې سوې، هغه صحنه مي تراوسه په یاد ده. ما باید حوصله کړې او له ډاکټرمددي سره مي پټې خبري کړې وای.

دغه راز مي د ابن سینا په سیمینار کي، چي د ببرک کارمل په زمانه کي جوړ سوی وو، نظر داوو چي غلامانو په افغانستان، مرکزي اسیا، هند او اسلامي نړۍ، په تېره بیا غزنویانو په دوره کي، د طبقې نه بلکه د یوه خاص اجتماعي قشر حیثیت درلود. ځکه چي غلامانو د کورونو د عادي مزدوریو څخه نیولې بیا تر (سپه سالارۍ) او وزارتونو پوري مقامونه درلودل او ځینو غلامانو، چي شمېر یې ډېر زیات وو، پخپله کله، کله په سل ګونو غلامان درلودل. د غلامانو ترمنځ یوازي یوه مشترکه وجه موجوده او هغه دا چي غلامان د یوې عادي متاع او مال په حیث په بازارونو کي خرڅول کېدل او را نیول کېدل او د خپلي ارادې څښتنان نه ول. مګر په عربي نړۍ، افغانستان او هند کي په سل ګونو او زرګونو غلامان د سپه سالارۍ او حتی پاچهی مقام ته رسېدلي دي. پخپله د غزنوي سلسلې مؤسس سبکتګین د الپتګین غلام او د هغه بادار الپتګین د ساماني پاچاهانو غلام وو. دغه راز په هند کي د غلامانو یوه سلسله پاچاهان مثالونه لرو. په دې توګه مونږ ګورو چي غلامان کله، کله حتی مظلوم او محکوم قشر نه بلکه حاکم او ظالم قشر وو.

ګواکي، په اسلامي نړۍ په تېره بیا مرکزي اسیا او هند کي، د غلام طبقې



یا اجتماعي قشر، په ټولنه کي، افقي شکل نه بلکه عمودي شکل درلود. یعني په ټولنه کي هره طبقه، لکه سوداګر، بزګر، کسبګر، حکومتي مامورین او په هغوی کي د کښتني رتبې او بیا د لوړې رتبې مامورین، هر یو د ژوند خاص شرایط او مادي وسایل لري. او د همدغو شرایطو او وسایلو په وسیله پېژندل کېږي او طبقه بندي کېږي. خو د غلام طبقه، د دې په خلاف، د یوه عادي سړي په کور کي له مزدورۍ، په مځکو او باغونو کي له کرکیلي او له کسبګرو سره له سهاره ترماښامه په سختو کارونو کي له برخي اخیستلو څخه نیولې بیا د پاچا د دربار تر ناز او نعمت، ساقي ګریو، کله، کله حتی د لویو پاچاهانو او سپه سالارانو د ښایستو معشوقو او وروسته پخپله د سپه سالاریو مقام ته تر رسېدلو او په سل ګونو او حتی زرګونو غلامانو درلودلو پوري رسېږي. دا نظر پخپله د تاریخي ماټریالیزم او یا لږترلږه د خلقیانو او پرچمیانو له نظر سره، چي په ټولنه کي یې یوازي د حاکمي او محکومي طبقې وجود ته عقیده درلوده، په ښکاره تضاد کي وو.

د میا فقیرالله په سیمینار کي مي، چي د (۱۹۸۰م.) کال د مارچ په میاشت کي، د کابل په انټرکانټیننټل هوټل کي د یوې هفتې له پاره جوړ سوی وو، د روحانیونو او پاچاهانو او په خاصه توګه له احمدشاه بابا او د هغه له زوی شهزاده سلیمان سره د میافقیرالله د روحاني اړیکو او د احمدشاه بابا په دربار او د هغه وخت په سیاسي پېښو کي د روحانیونو او په تېره بیا میافقیرالله د اغېزې او نفوذ په باب یو مضمون لیکلی او دفاع کړی وو.

زما د علمي تحقیقاتو دوران، چي ښایي له برکته یې یو وخت د سپین ږیرو پوهانو په کتار کي درېدلی وای، ډېر لنډ وو. د (۱۹۸۱م.) کال د اوړي په شپږ ورځو کي، چي د تقریبا شپږو میاشتو راهیسي د افغانستان د ټلوېزیون د ریاست د نشراتو مرستیال وم، د یو دېرشو کالو په عمر، له افغانستان څخه پاکستان ته مهاجر سوم او د علمي تحقیقاتو لړۍ مي نیمګړې پاته سوه.

## بدي ورځي:

د ۱۳۵۷ کال د ثور د میاشتي پر اوومه، له معمول سره سم، د پنجشنبې په مازیګر، له خپل کشر ورور سره د کابل په ښار کي قدم وهلو ته وتلی وم. په ښار کي وضع غیر عادي وه. ټانکونه مي ولیدل او یو ګړی وروسته ډزي هم پیل سوې. د پښتو ټولنې د ودانۍ ته نژدې، چي په عمر پوخ معلومیدی، ولیدی چي ټول مخ یې په وینو ککړ وو. له ارګ سره نیژدې ډزي دومره زیاتي سوې چي نور نو په پښتو ټولنې کي معطله کېدل هسي له خپل سر سره لوبې وې. د داخله وزارت خواته ولاړو. د وزارت په انګړ کي مو مامورین ولیدل چي ټول یې راغونډ کړي ول او دوه درې تنه عسکر ورته ولاړ وه. په دغه وخت کي بمباري او پر الوتکو باندي ډزي پیل سوې.

وضع خطرناکه وه. د کابل ښاریان ټول هک حیران ول. خلکو راز راز خبري او تبصرې کولې. پر هر ډول احتمال باندي خبري کېدلې خو هیچا هم تصور نه کاوه چي دا به د خلقیانو کار وي. شپې ته اعلان وسو چي جمهور رییس داوود خان له خپلي ټولي کورنۍ سره وژل سوی او سهار ته معلومه سوه چي قدرت خلقیانو اخیستی دی.

د خلقیانو نظام د وینو په تویولو او سمدستي اعدامونو پیل سو او تر پایه پوري یې د وینو په تویولو دوام وکړ.

د خلقیانو ټوله دوره، په تېره بیا د حفیظ الله امین د حکومت زمانه، چي پوره سل ورځي یې دوام وکړ، د وېري او وحشت دوره وه. هغه پر هیچا، حتی خپلو ملګرو رحم نه کاوه؛ حتی په سل هاوو هغه خلقیان یې ووژل چي له ده سره یې یا مخالفت درلود او یا د ده ملګرو فکر کاوه چي ورسره مخالف به وي او سبا



ښایي خطر پېښ کړي. د بکتسا د زازیو او سپدونکي حنیف یرغل، چي زموږ د پوهنتون په دوره کي یو له ډېرو فعالو خلقیانو او مهمو نطاقانو څخه وو، د اعدام د حکم له اورېدلو سره ناري وهلې چي ما خو د انقلاب لپاره تر سلو زیات خپل زازي عزیزان او خپلوان وژلي دي ما څرنګه اعداموی. خلقیانو، په تېره بیا امین او د هغه ملګرو پر هغو کسانو چي په یو ډول نه یو ډول یې منظم سیاسي فعالیت کاوه هیڅ ډول زړه سوی نه درلود او بې پوښتني یې وژل. د خلقیانو د پراخي استخباراتي شبکې له امله چي هر چا هر مخالف د هر هدف لپاره د انقلاب ضد عنصر او اشرار په نوم معرفي کاوه او هغه به د بندیخانې، شکنجو او اعدام شومه کېدی، په ملک کي عمومي بې اعتمادي وه. ورور په ورور باور او اعتماد نه درلود.

یوه کیسه او د سترګو لیدلی حال مي هیڅ وخت نه هېرېږي چي د انسانیت او عاطفې په باره کي یې زما عقیدې او نظر ته تغییر ورکړ؛ او تر ډېره وخته مي انسان ته د لېوه او وحشي په سترګه کتل. یوه ورځ د علومو د اکاډیمۍ څخه د اریانا هوټل ته، د هوټلونو د رئیس واحد فراهي دفتر ته ولاړم. کله چي دفتر ته ورننوتلم نو ګورم چي زموږ یو مشترک دوست، چي په امریکا کي یې تحصیل کړی وو، له واحد جان سره ناست دی او یو کاغذ یې ورته راوړی دی. زه چي دفتر ته ورننوتلم نو هغه سړي خپل مجلس ختم کړ او واحد جان ته یې وویل چي " رئیس صاحب فراموشت نشود که نه تنها مه بلکه تمام اعضای فامیل ما به تشویش هستیم، هر چه زود تر توجه کنید خوش میشویم" له دې خبرو سره سړی رخصت سو او واحد فراهي ما ته هېښ هېښ کتله. وروسته یې هغه کاغذ چي زموږ مشترک دوست ورته راوړی وو ما ته راښکاره کړ او چي ومي لوست نو د وجود وېښتان مي ټول شخ شخ ودرېدل. ما اورېدلي وه چي ورونو له ورونو سره خیانت کړی او د مرګ په خوله کي

یې ورکړي دي. دا مي هم اورېدلي وه چي زامنو د پلرونو رپوټونه ورکړي دي؛ مګر دا مي هيڅ نه وه اورېدلي چي يو پلار دي دونه ظالم سي چي د خپل زوی رپوټ دي خلقيانو ته ورکړي او بیا دي له هغه څخه د ډېر ژر اجرآتو غوښتنه لا هم وکړي. زموږ مشترک دوست په دې رپوټ کي د خلقيانو د ناحيې منشي ته ليکلي وه چي زوی يې له نا مطلوبو کسانو سره ګرځي. دوه ځله يې له کوره پيسې غلا کړي او هرات او مزار شريف ته يې سفرونه کړي دي؛ که سبا کوم څه پېښېږي نو دی او کورنۍ يې مسووليت نه لري. د دې ليک له ليدلو او لوستلو سره مي هم مغز داسي ټکان وخوړ چي ګنګس او ګيچ يې کړم او هم مي څو شپې له ويري خوب وتښتېدی؛ ځکه چي په اکاډيمۍ کي مي په خپل دفتر کي داسي خبري کړي وې چي که يې خلقيانو ته رپوټ ورکړه سوی وای نو حتماً يې تاوان راته پېښاوه.

ريشتيا هم چي انقلاب هغه ځناور دی چي د خپلو بچو په وينو پايي. ځکه نو خلقيانو تر هر څه لومړی د خپلو رقيبو کمونيستانو، پرچميانو او په وروسته کي د لس هاوو او سل هاوو خلقيانو ککرۍ وخوړلې. د وحشت، لېونتوب او بربريت په هغو شپو کي، په کابل کي، يوه کيسه ډېره مشهوره وه چي ويل يې حفيظ الله امين، ګلبدين حکمتيار ته پيغام لېږلی وو او ورته ويلي يې وه چي زه او ته دواړه په قام خروټي او عزيزان يو. راسه چي همکاري سره وکړو. ګلبدين ورته ويلي وه چي ته خلقي کمونيست يې او زه مسلمان مجاهد يم؛ زما او ستا لاري سره بېلي دي. امين په جواب کي پيغام ورلېږلی او ورته ويلي يې وه چي راسه حساب به سره وکړو چي تا ډېر خلقيان وژلي دي که ما؟

شپې شپې، نه يوازي ما بلکه په زرهاوو انسانانو، د رژيم د پوليسو له وېري تر سهاره شپې روڼې کړې. البته دا يوازي خلقيان نه ول چي پر



افغانستان باندي يې داسي بدي ورځي راوستلې چي په خپل تاريخ کي يې نه وې ليدلي. په نړۍ کي هر انقلاب د وينو په تويولو او وحشت پيل کېږي او تر نامعلومي مودې پوري، يا تر هغه وخته پوري چي د انقلابيونو په عقيده د هغوی ريښتوني او خيالي دښمنان له منځه ځي، د وينو په سيند کي لاره وهي. د فرانسې ستر انقلاب، پوره يوه لسيزه، له (۱۷۸۹م.) څخه تر (۱۷۹۹م.) پوري، چي د دهشت او وحشت لسيزه بلله کېږي، ټول د مظلومو او بېګناه انسانانو او ډېرو لويو منورينو او فلاسفه وو د قتلونو او وينو تويېدلو داستان دی. د روسيې انقلاب د لينين له زمانې څخه د (۱۹۹۰م.) تر لسيزي پوري د وينو تويېدلو، شکنجو او بندي کېدلو نه ختمېدونکې کيسه ده. ويل کېږي چي يوازې جوزف ستالين د خپل قدرت په اوږده، دېرش کلنه، دوره کي د تقريبا شلو ميليونو انسانانو د قتلولو، شکنجه کولو، بندي کولو او تبعيدولو مسوول دی. د چين د کمونيستې ګوند د مشر ماووتسه تونګ د کلتوري انقلاب په زمانه کي د وژل سويو کسانو شمېر ميليونونو انسانانو ته رسېږي. د ايران په اسلامي انقلاب کي تر دې کم جنايتونه نه دي سوي.

د خلقيانو د رژيم څخه مخکي، خلقيان زياتره ښه خلک ول. ښايي د نړۍ ټول انقلابيان له قدرت څخه مخکي ښه خلک وي. خو کله چي خلقيان قدرت ته ورسېدل لېوني سول. د خلقيانو د استخباراتو د وېروونکي ادارې اګسا مرستيال او په وروسته کي رئيس، نواب زما د پوهنتون د زمانې اشنای وو. په ليليه کي مو ډېري خوږې شپې سره تېري کړي وې. هغه د تحصيل په وخت کي ډېر خوږ سړی وو او ډېري ښې اطرافي کيسې به يې کولې؛ خو کله چي قدرت ته ورسېدی نو لېونی لېوه ورڅخه جوړ سو. اورېدلي مي دي چي يو وخت يې د پولي تخنيک د پوهنځي يو محصل په خپل دفتر کي په ماشيندار غلبيل کړ. نواب، نورمحمد تره کي ته، د امين د کودتا په جريان کي ووژل

یو وخت یې د تره کي په نامه کلمه ویله. زما ښه په یاد دي چي د تره کي د تلیدلو په سبا، حفیظ الله امین، د نوي اساسي قانون د تصویبېدلو په پلمه، په ټول هیواد کي جشنونه او اتڼونه جوړ کړل. دا مي هم ښه په یاد دي چي د تره کي مخلصانو، په اتڼونو کي، د امین تر طرفدارانو ډېر په تاو او اخلاص ځني او لستوني غورځول. امین نه یوازي خپل استاد په ډېره سړه سینه وواژه بلکه پسله مرګه یې ریشخند لا هم کړ.

امین پوره سل ورځي په قدرت کي پاته سو او خپلو شوروي بادارانو، چي ده یې په نوم او ایډیالوژي قسم یاد اوه او ښایي هیڅ وخت به یې په خوب کي هم د هغوی د نامردۍ تصور نه وو کړی، کودتا ورته وکړه او د ژمي په یوه سړه شپه کي یې د کابل له ښار څخه دباندي د تپه تاج بیګ په نوي جوړ کړي قصر کي وواژه او د پرچمیانو مشر ببرک کارمل یې، چي خلکو ډېر ژر د دوهم شاه شجاع لقب ورکړ، قدرت ته ورساوه. ببرک کارمل سمدستي عمومي عفو اعلان کړه او په څو ورځو کي یې ټولي بندیخانې تشي کړې. البته، ایله دوې میاشتي به تېري سوي وې چي ټولي بندیخانې یې له خلقیانو او نورو سیاسي دښمنانو او مخالفینو څخه ډکي کړې. ډاکټر نجیب له خپل مشر سره چنداني وفا ونه کړه او د خپلو ملګرو او شوروي سلاکارانو په مرسته یې کودتا ورته وکړه او ببرک یې څه موده وروسته د شوروي د خیرات مېلمه کړ. کله چي د (۱۹۹۲م.) کال د اپرېل په وروستیو شپو ورځو کي د شمال ایتلاف چي بي بي سي د شمالي ټلوالي نوم ورکړ، ډاکټر نجیب، په کابل کي د ملګرو ملتونو په دفتر کي په پناه اخیستلو مجبور کړ نو بیا هم د ده هغه پیر او مرشد چي ده یې تر انقلاب د مخه او وروسته، په وړو او لویو، خصوصي او عامو محفلونو کي په شعرونو استنادونه کول او د اسماني الهام په سترګه یې ورته کتل، د ګوندي رهبرۍ د کودتا چیانو په سر کي ورته ولاړ وو او له



سو او څرنګه چي د امین ډېر ټینګ طرفدار او فعال ملګری وو نو د خپل قدرت په شپو کي یې د لښکرګاه تاریخي او ښکلی ښار د هغه په نامه کړ او نواب ښار یې وباله. البته دې نوم هسي هم عمومیت پیدا نه کړ او د ببرک کارمل له راتلو سره هغه ښار بیرته په پخواني نوم وبلل سو.

سلیمان لایق د ثور له کودتا څخه څه باندي لس کاله مخکي یو نظم لیکلی وو، چي ډاکټر نجیب به، د تحصیل په وخت کي د پوهنتون په مظاهرو کي، تل په ډېر لوړ آواز وایه. داسي ښکاري چي دا نظم یې ډېر خوښېدی او له طبیعت سره یې جوړ وو؛ ځکه چي ما ډېر زیات ورڅخه اورېدلی دی.

هومره به یاغي شم چي ته تنګ شې په فریاد زما
خلاص به کړم له بنده ځنځیر شوی استعداد زما
وګوره بیا ځغاستی او وحشت او استبداد زما
زما دي وي قسم زما په خاوره او اجداد زما
ستا دا نازولي به د خلکو غلامان کړمه
ستا دا تړل شوي بندګان به حاکمان کړمه

خلقیانو او پرچمیانو خپلي ټولي وعدې پرځای کړې. وحشت او استبداد یې وکړ، پر هر څه یې تېری وکړ، نازولي یې له خاورو سره برابر او د زندانونو او شکنجو شومه کړل. البته تړل شوي بندګان نه بلکه یوازي خپل ګوندي ملګري یې حاکمان کړل او هغوی ته یې د خپل انقلابي شاعر د کړو ژمنو د پوره کولو او لیدلو خوبونو د ریشتیا کولو وظیفه وسپارله.

انقلاب هم عجیبي کانې کوي. د خلقیانو ستر مشر نور محمد تره کي ته خپل وفادار شاګرد، حفیظ الله امین د (۱۹۷۹م.) کال د سپټمبر په میاشت کي کودتا وکړه او څو ورځي وروسته د هغه په امر داسي کسانو وواژه چي

ده څخه یې د قدرت د تسلیمولو، چې یوازې د قدرت نوم ورته پاته وو، غوښتنه وکړه.

دیکتاتوري رژیمونه او سیاستونه، په تېره بیا انقلابي سیاستونه، د نړۍ په هر ګوټ او هره زمانه کې همدا شکل لري او لا ښایي یو تر بل بدتر او له عبرت څخه ډک داستانونه ولري.

## د سرو پوځونومستقیمه مداخله:

د(۱۳۵۸م.) کال د جدي د میاشتې له لومړۍ نېټې څخه، د بګرام هوایي میدان ته، د روسیې څخه د ډېرو لویو الوتکو پروازونه پیل سول. پروازونه کرۍ ورځ او ټوله شپه چالان ول او د کابل پر ډېرو خلکو یې خوبونه حرام کوي وه. له هرچا سره سوالونه وه. دا الوتکې څه کوي؟ د څه له پاره او د چا له پاره راځي؟ هیڅوک په جواب نه پوهېدل. خو دونه هر څوک پوهېدل چې یو څه لکه چې پېښېدونکي دي. حفیظ الله امین، چې هر ماښام به یې تلوېزیون اجاره کړی وو او په خپلو سترګو کونکو او پوچو ویناوو به یې د ټلویزیوني خپرونو ساعتونه وخت نیولی وو، د څه باندې لسو ورځو راهیسې د ټلویزیون پر پرده نه ښکارېدی. امین د ارګ څخه په دارلامان کې د تپه تاج بېګ قصر ته انتقال سوی وو. زه د علومو د اکاډیمۍ د رئیس ګل محمد نورزي دفتر ته، چې پر خلقي توب برسېره، د حفیظ الله امین شخصي دوست هم وو، د کوم رسمي کار له پاره، ورغلم. مرحوم روهي صاحب هم ناست وو. ګل محمد نورزي د ټلیفون ګوشکه په دومره زور او قار سره پر ټلیفون کښېښوده چې نیژدې یې ټلیفون مات کړی وو. په ډېر قهر یې وویل" پیر د دې جمهوري ریاست!! په ټول تپه تاج بېګ کې یو ټلیفون نسته؛ د سهار راهیسې مې دا پنځم شپږم ټلیفون دی؛ څوک جواب نه وایي"



مرموز حالت وو. امین د تقریباً دوو هفتو راهیسې له سترګو پناه سوی وو. له تپه تاج بېګ څخه بهر یې له هر چا سره ارتباط شلېدلی وو او یا به خپلو نیژدې ملګرو، د کې جې بي د اداري په اشاره تجرید کړی وو. د حفیظ الله امین زوی عبدالرحمن امین د جدي پر شپږمه ماپښین، واحد فراهي ته، چې داوخت د هوټلونو رئیس وو، ویلي وه چې که چا د روسي الوتکو په باره کې پوښتنه کوله او یا یې اندېښنه وښودله ورته ووایه چې که زموږ زړه وغواړي د شوروي د دفاع وزیر ته هم بلنه ورکوو. البته دا د امین او کورنۍ د ظالمانه او خونړي قدرت وروستنی ماپښین وو. د جدي پر شپږمه ماښام ډزې پیل سوې او لږ ساعت وروسته مو د دوشنبې له راډیو څخه د ببرک کارمل آواز واورېدی چې د حفیظ الله امین د رژیم خاتمه یې اعلانوله. تر سهاره مې له خوشالیه خوب ونه کړ. د حفیظ الله امین د رژیم وحشت د زغملو نه وو. سهار وختي له کوره ووتلم. پر سړکونو مې ټانکونه ولیدل چې روسي عسکر پکښې سپاره ول. بې اختیاره مې له سترګو اوښکې رواني سوې. افغانستان یوازې د استقلال نعمت درلود او هغه څومره وړیا له لاسه وتلی وو. د ماشوم په څېر مې ژړل او په همدې اوښکو کې بیرته کورته ستون سوم. په هغه شپه مې فیصله وکړه چې که مې له روسانو سره هیڅ دښمني له وسه نه کېږي نو وطن خو به پرېږدم.

## مارکسیزم:

د مارکسیزم د مفکورې، چې د نړۍ ټولو کمونیستانو او سو شلیستانو یې د پیروۍ ادعا کوله، مؤسس کارل مارکس وو؛ چې په(۱۸۱۸م.) کال کې په جرمني کې زېږېدلی او په خټه یهود وو. مارکس په دې عقیده وو چې د نړۍ د ټولو شته منیو او نعمتونو تولیدونکي کارګران او کښته یا محروم

طبقات دي، چي د ټولني اکثریت جوړوی؛ او لوړ او حاکم طبقات، چي یو لږ اقلیت دی، د هغوی د لاسونو پر نعمتونو چړچې کوي. مارکس په دې عقیده وو چي د نړی ټول تاریخ د طبقاتو ترمنځ د مبارزې تاریخ او داستان دی. هغه ویل چي کارګران باید بالاخره د سرمایه دارانو یا کاپیټالسټانو څخه قدرت واخلي؛ خو د کارګرانو او زیارایستونکو د حکومت د قایمولو او ټینګولو او د زیارایستونکو د حقوقو د اخیستلو له پاره، د خپلي غلیمي حاکمي طبقې او د هغوی د طرفدارانو د مقاومت او احتمالي دسیسو د شنډولو له پاره دیکتاتورۍ ته ضرورت لري. مارکس دغه دیکتاتوري نظام د پرولتاریا دیکتاتوري وبلله. د مارکس او د هغه د نیژدې ملګري فریدریک انګلس عقاید په نولسمه او شلمه پېړیو کي د ټولو کمونیستي او سوشلیستي تحریکونو د لارو مشال وګرځېدی. روسي ولادمیر ایلیچ لینین د مارکس د عقایدو په اساس په روسیه کي قدرت ونیوی او په اصطلاح د کارګرو د دیکتاتورۍ لومړی نظام یې، چي تر هر چا یې کارګرو او زیارایستونکو ته زیاته صدمه ورسوله، تشکیل کړ. د لینین د عقایدو په اساس مارکسیزم لینینیزم منځته راغی؛ او په وروسته کي ټولو کمونیستانو یوازي مارکسیزم نه بلکه مارکسیزم لینینیزم خپله سیاسي فلسفه بلله. د لینین د اووه کلن قدرت په وروستیو دریو کلونو کي، چي لینین په روغتون کي بستري وو، د هغه د دوو نیژدې ملګرو ستالین او لي یون ټروټسکي ترمنځ د اختلاف په نتیجه کي ټروټسکي د شوروي اتحاد څخه وتلو ته مجبور سو او مکسیکو ته ولاړ. په مکسیکو کي، د ستالین د جاسوسانو له خوا، د خپل کار په دفتر کي، ووژل سو؛ او د ده له وژل کېدلو څخه وروسته د لاتین امریکا زیاترو کیڼ اړخو عناصرو د هغه لاره، چي وروسته ټروټسکیزم بلل کېده، واخیستله. دغه راز د چین کمونیستانو، په (۱۹۵۳م.) کال کي، د



ستالین د مړګ څخه وروسته، له شوروي اتحاد څخه لاره جلا کړه او د چین د انقلاب او کمونیزم لاره د هغه هیواد د کمونیستي انقلاب د مشر ماووتسه تونګ (ماوزې دون) په نوم ماوویېزم وبلله سوه. د نړی، په تېره بیا اسیایي هیوادونو، اکثر کمونیستې ګوندونه پر شوروي او چینایي ټرینډونو ووېشل سول؛ او افغانستان هم له دې ویش څخه بې برخي نه سو. د خلق ډیمکراټیک ګوند، چي په وروسته کي پر خلقیانو او پرچمیانو وویشل سو، شوروي یا ماسکو ټرینډ او ډاکټر هادي محمودي، صادق علي یاري او انجنییر عثمان او پیروانو یې، چي وروسته د خپل اخبار شعله جاوید په نوم شعله یان بلل کېدل، چینایي ټرینډ غوره کړ. د خلقیانو د حکومت په زمانه کي د شعله یانو ټول مشران او وتلي غړي ووژل سول.

د مارکس په عقیده، د بشر ټول تاریخ د طبقاتي مبارزو او طبقاتي ګټو تر منځ د ټکرونو داستان وو. دې خبري ښایي په اروپایي ټولنو کي حقیقت درلودلی وي؛ خو په افغانستان کي یې واقعیت نه سو پیدا کولای. لومړی نو، د تاریخي ماټریالیزم د عقیدې او فلسفې په خلاف، په افغانستان کي د غلامۍ دوره له سره تېره سوې نه وه او د مالدارۍ او دهقانۍ په نظام کي یې خلک پر شته من او نېستمن وېشل کېدلای سوای، خو په خپل ټول تاریخ کي یې د طبقاتي تضاد او طبقاتي ټکریو مثال هم نه درلودی. د مارکس او لینین عقایدو د افغانستان له هیواد او په تېره بیا پښتني ټولني، سره له مالي، قومي، مذهبي، کلتوري او خلاصه له هیڅ پلوه اړخ نه لګاوه. دغه علت وو چي په افغانستان کي د چپي ګوندونو د ظهور او فعال کېدلو سره سم د ځوان او زاړه نسل، باسوادو او بې سوادو (چي اوس هم د افغانستان مطلق اکثریت جوړوي) ښاریانو او کلیوالو، منورینو او ملایانو او هر قشر او طبقې ترمنځ دومره ژور اختلافات پیل سول چي د افغانستان په تاریخ کي

يې ساری نه وو لیده سوی؛ او ان ترنن ورځي پوري يې دوام کړی دی. په هیڅ ډول خیانت، قتل، جنایت، غلا او حتی وطن پلورلو څوک دو نه نه شرمیږي لکه د خلقي او پرچمي په نوم؛ او خلک هم له خلقي پرچمي څخه تر هر ډول قاتل، غله او جنایت کاربد وړي. قدرت ته د خلقیانو او پرچمیانو له رسېدلو سره سم، چي د روسانو مستقیم او غیر مستقیم ملاتړ ورسره ملګری وو، د ټولني تول تضادونه داسي را وینښ سول چي په اصطلاح اوريې واخیست. د خلقیانو او پرچمیانو ټول علم پنځه تاریخي دورې وي؛ او د ټولني د ټولو بدمرغیو اساس يې طبقاتي او نه پخلا کیدونکی تضاد باله. د هغوی د منطق په اساس د حاکم او محکوم ترمنځ د عادلانه فیصلې له پاره انقلاب او انقلابي عملیات لازم ول. حاکمي طبقې د خلکوویني زبېښلي وې او د هغوی ویني باید تویي سوي وای. د افراط په مقابل کي افراط پیل سو او همدا افراطي سلسله تر نني ورځي پوري دوام لري. اوس حالت داسي راغلی دی چي له هر چا څخه د اینده په باب پوښتنه وسي جواب نه لري.

## مهاجرت:

خلقیانو، قدرت ته د رسېدلو سره سم، د خلکو په نیولو، آزارولو او اعدامولو، چي د هر انقلاب سره تړلي کارونه دي، پیل وکړ. که څه هم چي د خلقیانو او پرچمیانو د قدرت په وختونو او ورځو شپو کي ماته چا کوم آزار نه دی رسولی؛ حتی په دواړو وختونو کي د ښو وظیفو او لوړو چوکیو تر لاسه کولو زمینه راته برابره وه، خو ما له لومړۍ ورځي فیصله کړې وه چي له دوی سره به کار نه کوم. ما د خلقیانو او پرچمیانو په زمانه کي په هیڅ دولتي مظاهره او غونډه کي برخه وانه خیستله، هیڅ وخت مي د خپلي خوښي په کار کي، چي ټول مامورین ورته حاضرېدل، ونډه نه ده اخیستې؛ یکي یوه د خلق



جریده مي، چي هر دولتي مامور باید رانیولې وای، نه ده رانیولې؛ حتی د مامورینو په صندوق کي مي غړیتوب نه درلود. زه د پرچمیانو په دوره کي، د سلیمان لایق په پیشنهاد، په غیاب کي د لیکوالو د اتحادیې د عالي شورا د غړي په حیث انتخاب سوی وم، خو ما يې په یکي یوه غونډه کي برخه وانه خیستله. حتی د لیکوالو د اتحادیې د ودانی ادرس راته معلوم نه وو.

دا ټول هغه کارونه وه چي ماته يې خلقیان او پرچمیان بدبینه کول. زه د وجدان ډېر او خپل پاک زړه او احساساتو له هغوی سره، چي زما په څېر په زرهاوو انسانان يې له هیڅ دلیله پرته وژلي وه، همکاري کولو ته نه پرېښودلم. ما فیصله کړې وه چي له وطن څخه به وزم او په پاکستان کي به د مجاهدینو له تنظیمونو سره، چي زما په ګومان يې زما قلمي همکاری ته ضرورت درلود، همکاري وکړم. زه حتی په وطن کي دننه، د مجاهدینو په جبهو کي هم، قلمي همکارۍ ته حاضر وم او کله، کله به مي فکر کاوه چي خپل واړه زامن به هم جهاد ته باسم. جهاد د څه له پاره؟ او جهاد د چا تر څنګ او د چا په مشري؟ دا مهم سوالونه ما ته حل ښکارېدل. خو افسوس چي یو هم حل نه وو.

جهاد د څه له پاره؟ دا سوال ماته حل وو. جهاد د شوروي د سرو لښکرو د منګولو څخه د افغانستان د استقلال له پاره. خو د چا تر څنګ او د چا په مشري؟ دا هغه سوالونه ول چي ما باید د مهاجرت کولو څخه مخکي حل کړي وای. انجنیر اکبر لا خلقیانو بندي کړی نه وو چي ما یوه ورځ ورته وویل چي خلقیان او خصوصا امین، منظم دښمنان او په تېره بیا هغه کسان چي په ګوند کي دننه خطر ورڅخه احساسېږي او یا چپي ایډیالوژي ولري، تر هر چا مخکي او په منظمه توګه له منځه وړي. که چیري په ریشتیا هم د خلقیانو څخه ناراضي يې نو باید چي پاکستان ته واوړې. انجنیر اکبر راته وویل چي

بارو ! په پاکستان کي د افغاني منورينو له پاره تر افغانستان سخت شرايط دی. په پاکستان کي د اسلام په نامه جوړ سوي ګوندونه، په تېره بيا د ګلبدين حکمتيار حزب اسلامي، د ورسک او سپيني شګي په نوم کمپونو کي منورين په رازراز شکنجو کي وژني او د پاکستان د پوځ او حکومت په اجازه او ملاتړ قتلونه کوي. هلته زموږ له پاره ځای نسته. انجنير اکبر ډېر ژر خلقيانو ونيوی او په لږه موده کي يې په شکنجو کي وواژه او ما د افغانستان څخه د وتلو په باب د سلا مشورې له پاره نور څوک نه درلودل. پر افغانستان باندي د شوروي د سرو لښکرو د يرغل څخه ايله يو نيم کال وروسته مي له کابل څخه خپل ماشومان کندهار ته ولېږل او وروسته له مشرزوی فريد سره چي دا وخت به لس کلن وو له کابل څخه په بس موټر کي د کندهار پر لور وخوځېدلم. ما د انجنير اکبر يوه خبره او يوه توصيه هم په نظر کي ونه نيوله او په پاکو احساساتو مي پاکستان ته هجرت وکړ.

پاکستان ته له هجرت کولو څخه مخکي، په کندهار کي د پنځو شپو د تېرولو په ترځ کي، يو ځل د عثماني بس ټرانسپورټ د مالک حاجي قاسم سره، چي له کابل څخه کندهار ته يې زما په سالم رسولو کي مرسته کړې وه، د مجاهدينو مرکز ماله جات ته ولاړم. لومړی د حاجي مغاش اڅکزي جبهې ته، چي مجاهدينو يې د حاجي قاسم يو بس موټر راګرځولی وو ورغلو، بيا د عصمت مسلم د يوه لوی قوماندان موسی جان نورزي اطاق ته ورغلو. موسي جان نورزی مي، چي په کابل کي مي د هغه د جنګونو او پهلوانيو کيسې اورېدلي وې، وليدی. بې نهايته ښايسته ځوان وو. څه موده وروسته د کندهار د يوه بل مشهور قوماندان ګوډ غازي سره په يوه ورځ ووژل سو. وروسته نو د سيد احمد ګيلاني د اسلامي محاذ د يوه قوماندان حميد آغا اطاق ته ورغلو او له هغه سره مو غرمنۍ چي شلومبې، پياز او ډوډۍ وه



وخوړل. دا مي ښايي د ژوند تر ټولو لويه بې احتياطي او ماجراجويي وي. څو ورځي وروسته، په پاکستان کي، خبر سوم چي مُلا ملنګ جبهه په جبهه راپسي ګرځېدلی او زما پوښتني يې کړي وې. که ژوندی په لاس ورغلی وای خدای خبر څه شکنجې يې راکړي او په کوم ځاه کي يې غورځولی وای او اوس به مي نو ګواکي د مرګ څه کم څلوېښت کاله کېدلای.

کلونه وروسته چي مي په امريکا کي د قوماندان په نوم يو ناول وليکی؛ په هغه کي مي ملاملنګ د ملا درويش په نوم ښودلی او د هغه ظلمونو ته مي اشاره کړې ده. ملا ملنګ په دې ارزي چي يو ځوان د هغه پر جناياتو باندي يو بشپړ کتاب وليکي. هغه د لوګر د مولوي قصاب او ملا کوپک، په ننګرهار کي د ګلبدين د حزب اسلامي د مشهور ظالم قوماندان زرداد، د غزني د قاري بابا او د نورو قوماندانانو په څېر يو ظالم سړی وو او د هغوی په څېر يې په سل ګونو بې ګناه انسانان د ژوند له حقه محروم کړي، شکنجه کړي او لوټ کړي وه. ما د مجاهدينو د قوماندانانو د جنايتونو په باره کي ډېري زياتي کيسې اورېدلي وې مګر څرنګه چي پخپله مي د زړه هينداره صافه وه فکر مي نه کاوه چي ښېله کوم دليله دي ما ته څوک تاوان پېښ کړي.

زه نه وم خبر چي مجاهدينو يوازي د مکتب او سواد سره، چي د هر وطن سترګي او ماغزه دي، جهاد نه وو اعلان کړی بلکه پر خپلو مجاهدينو يې هم رحم نه کاوه. په دې سلسله کي د هلمند په ولايت کي د حزب اسلامي او حرکت اسلامي تر منځ خونړي جنګونه ډېر مشهور ول. دا جنګونه په اصل او واقعيت کي د کوکنارو د کښت او کروندې د مځکو د ملکيت او د مخدره موادو د ناورا قاچاق د منافعو پر سر وه خو دوی تنظيمي رنګ ورکړی وو. يو ځل خو د حرکت اسلامي عمومي قوماندان ملانسيم ته د حزب اسلامي يوه ډله مجاهدين په لاس ورغلل. ټول يې مړه کړل او د هغوی پر مړو يې

کمبله هواره کړه. ملا محمد نسیم اخوند پر هغه کمبله باندي دوه رکعته نفل وکړل او بیا یې نو د خدای شکر ادا کړ. ده ویل له خدای تعالی سره مي وعده کړې وه چي زه به د حزب اسلامي د مجاهدینو پر مړو باندي نفل کوم. څه موده وروسته د حزب اسلامي غړو ملا نسیم اخوند په پېښور کي وویشت او وواژه. د ملا نسیم ورور محمد رسول اخوند د هغه پر ځای باندي د حرکت اسلامي عمومي قوماندان سو. هغه د حزب اسلامي یوه لویه ډله مجاهدین ونیول او د خپل ورور ملا نسیم اخوند له قبر سره یې لکه پسونه حلال کړل او ده هم وویل چي ما وعده کړې وه چي د خپل ورور له قبر سره به د حزب اسلامي د غړوویني بهوم.

په دې باره کي د لویو قوماندانانو او د مجاهدینو د امیرانو او رهبرانو د جنایتونو کیسې دومره ډېري دي چي د یوه بشپړ لوی کتاب کار دی.

د مجاهدینو د جنایاتو کیسې به بېحده ډېري وي خو دا یوه کیسه چي ما په خپلو غوږونو اورېدلې او نکل کوونکی مي په سترګو لیدلی دی، په راوړلو ارزي. په امریکا کي به مي له امریکا د ږغ راډیو سره دوه درې کاله کار کړی وو چي یوه ورځ د غزني مشهور قوماندان قاري بابا، چي تور ګردی سړی وو او له ډېري چاغی څخه چنداني پر لاري نه سو تللای. له ډېر لږ پیاده تګ څخه وروسته به یې ساه په اوږو شړله او په اصطلاح نفسک به یې واهه، د مرکو لپاره راډیو ته راغی. له هغه سره مرکه کول یو خاص امتیاز وو او جلالي صاحب، چي اوس هم ځان مجاهد بولي او په هغو شپو کي تازه زموږ د پښتو څانګي آمر سوی وو، دا امتیاز په هیڅ توګه له لاسه نه ورکاوه. نور نو د دفتر زیات غړي له دې نعمت او امتیاز څخه محروم سول.

قاري بابا په پښتو سرویس کي د چایو چښلو په وخت کي د جهاد او مجاهدینو په باب خپلو نورو کیسو په سلسله کي یو ځل وخندل او وې ویل



چي د مجاهدینو هم عجیب کارونه وي. څه وخت مخکي په غزني کي زموږ مرکز ته خبر را ورسېدی چي د غزني له ښار څخه بهر پر یوه دوکان باندي هره ورځ یو خلقي کښېني. ما خپلو مجاهدینو ته وویل چي دا سړی پیدا کړي. دوې درې ورځي وروسته یوه مجاهد درې سرونه راوړل ویل یې په دغو کوم یو دی. موږ چي تحقیق وکړ په هغوی کي یو هم زموږ د مطلب سړی نه وو او مجاهد هسي چټي کسان وژلي او سرونه یې راوړي وه. چا چي په سینه کي د انسان زړه درلود د دې غیر انساني کیسې د اورېدلو توان یې نه درلود مګر قاري بابا دا کیسه په ډېره بې پروایي او په خندا تېروله.

چي بیرته خپلي کیسې ته را وګرځم؛ ما حتی دومره سادګي وکړه چي له کابل څخه تر کندهار پوري په عادي بس موټر کي ولاړم. دا نو هغه شپې ورځي وې چي عادي خلک، چي ډېري به یې هم درلودلې، په بسونو کي، له یوه ښاره تر بل ښاره پوري، تللای نه سوای. مجاهدینو او عسکرو ځای پر ځای د تلاښی پوستې اچولي وې او موټرونه یې تلاښي کول. ما هم ږیره نه درلوده او هم د دولت مامور وم. په کندهار کي مي دوستانو، پاکستان ته په اړولو کي، هیڅ مرسته راسره ونه کړه او حتی را پوري حیران ول چي زما سره څه وکړي. بالاخره مي داسي فیصله وکړه چي د خپل ژوند سره لوبي وې او چي نن ورته ګورم نو سم لېونتوب وو. په ده خواجه کي له دوو نورو انډیوالانو سره په ټکسي موټر کي، د مخ په سیټ کي، سپور سوم او مخ پر پاکستان روان سولو. په لاره کي دوه ځایه عسکري ګزمو ودرولو او چي زما څخه یې پوښتنه وکړه ما ورته وویل چي په سپین بولدک کي مي پر حاجي باران باندي پیسې باندي دي په هغه پسي ځم. ښایي زما قوي روحیاتو او زړه ورتوب مرسته راسره کړې وي چي خلقي صاحب منصبانو هیڅ راته ونه ویل او له ډېري عادي تلاښی څخه وروسته یې رخصت کړو.

په زړه پوري خبره خو لا داده چې د موټر د مخ په سیټ کي مي، په سوچبوړو کي، زما د شعرونو یوه کتابچه، چي اوس هم راته پرته ده، راسره ایښې وه او تر هر شعر لاندي زما نوم لیکلی وو. د تلاشۍ په دوران پوستو کي چا سوچبوړو خلاص نه کړ چي دا کتابچه یې لیدلې او زه یې له موټره لاس تړلی کښته کړی وای.

پاکستان ته د هجرت له پیل څخه سمدستي راته څرګنده سوه چي زما په ښېرېیوه پاک او معصوم افغان او د تنظیمونو د مشرانو، چي ټول د پاکستان د حکومت په لاس جوړ سوي او ټول مشران او لوی قوماندانان یې د پاکستان غلامان ول، څونه لوی واټن موجود وو. د مهاجرت په لومړۍ هفته پر خپل اقدام پښېمانه سوم. پښېمانی ګټه نه کوله؛ زه پاکستان ته اوښتی وم. زما خپل خوږ هیواد نور زما له پاره نه وو. که بیرته هیواد ته ستون سوی وای ښایي داسي څه راته پېښ سوي وای چي ما به یې پېش بیني هم نه سوای کولای. زما هیواد نور زما څخه پردی سوی وو.

## پاکستان:

د مهاجرت خو هم یوه عجیبه دنیا وه. لکه څرنګه چي په افغانستان کي ډېرو زیاتو کسانو د شخصي غچ اخیستلو په منظور خپل دښمنان او یا هغه کسان چي په یوه ډول نه یو ډول یې حسادت ورسره درلود د خلقیانو د زندانونو او شکنجو شومه کړل او حتی له ژونده یې محروم کړل؛ په پاکستان کي تر دې په لس چنده زیات بې ګناه انسانان، په یوه او بل نامه، د پاکستاني بندیخانو شومه سول او یا د مجاهدینو په زندانونو کي شکنجه او قتل سول. په دې کي تر ټولو لوی قهرمان او د سخت زړه خاوند ګلبدین حکمتیار وو. د حکمتیار د ورسک او سپیني شګي د کمپ نوم چي به دي چاته ورياد کړل له



ډېري به یې اندامونه په ربړ سول او له سترګو به یې خوب وتښتېدی. د سیاف د پېی کمپ هم تر دې بهتر نه وو. مولوي محمد نبي، مولوي خالص او حتی حضرت صاحب مجددي هر یوه خپلي بندیخانې او د شکنجه کولو طریقې درلودلې. د پاکستان حکومت، چي زموږ جهادي مشرانو او قوماندانانو به یې عادي صاحب منصب او مامور ته مقامات ویل او لاس پر نامه به ورته ولاړ ول، ښایي وظیفه درلوده چي د افغان مهاجرینو مېنه له مړو خالي کړي او د خبرو او پوهي داسی کسان پکښې پرې نه ږدي چي سبا د پاکستان د حکومت له اوامرو او هدایتونو څخه سرغړوني ته زړونه ښه کړي. یوازي هغه تعلیم یافته کسان چي د مجاهدینو له مشرانو او تنظیمونو سره یې له پخوا اړېکي درلودل او یا یې په پاکستان کي رابطه ورسره ټینګه کړې وه، پاکستاني مقاماتو ته د منلو وړ ول او په وروسته کي د پاکستان د استخباراتو له خوا استخدامېدل او د افغاني منورینو، چي د خلقیانو له نظام څخه مهاجرت کولو ته مجبور سوي ول، په دام کي اچولو او په ناحقه رټوټ ورکولو کي کار ور څخه اخیستل کېدی. مهاجرو صاحب منصبانو، ښوونکیو او مامورینو، د مجاهدینو د تنظیمونو له ویري، خپلو هویتونو او نومونو ته تغییر ورکړی او د غریب کار، دوکاندار، موټروان او کروندګر په نوم پټ ګرځېدل. د صاحب منصبانو له منځه وړل د پاکستان د حکومت او د مجاهدینو د مشرانو لومړنی هدف وو او ژوند یې هره شیبه په خطر کي وو. حتی هغه صاحب منصبان یې چي د جهادي تنظیمونو سره یو ځای سوي او په جهادي جنګونو کي یې نومونه ایستلي ول، لکه تورن عبدالحي، تورن عبدالرحمن، ضابط حلیم او ... یو یو له منځه یوړل. د ښوونکو له پاره، چي د مهاجرینو په کمپونو کي بې اندازې زیاته اړتیا ورته لیده کېده، ځکه ژوند کول ډېر ګران او حتی نا ممکن وو چي د مجاهدینو جاهلو او د پاکستان له

خوا رهنمايي سويو مشرانو په افغانستان کي دننه او د مهاجرينو په کمپونو کي تبليغ کړی وو چي د ثور د کودتا او ټولو بدمرغيو او کفري عقايدو د تبليغولو اصلي عاملين معلمان دي او بايد چي په خپله سزا ورسېږي.

د پاکستان حکومت د خپل پلار، انګرېزي استعمار، څخه د زده کړي سياست (تفرقه واچوه او حکومت وکړه) په اساس، د افغانانو ترمنځ، چي دا وخت يې د دوی خاوري ته د وچ مجبوريت له مخي پناه ور وړې وه، د بې اتفاقۍ د اچولو له پاره ډېره مساعده زمينه ترلاسه کړې وه او تر وروستۍ اندازې يې کار ور څخه واخيست.

لومړی خو يې اووه مختلف جهادي تنظيمونه جوړ کړل؛ او افغانان يې پر پښتنو، تاجيکو، شيعه او اخوانيانو او اعتدال خوښونکو ووېشل. په حقيقت کي د جهادي تنظيمونو ټول مشران، چي ځينو يې ان د داؤد خان له زمانې او لا حتی له هغه څخه مخکي د پاکستان نوکري کړې وه، د پاکستان د حکومت، يا د مجاهدينو په اصطلاح، مقاماتو تر مستقيمي قوماندې لاندي ول. اخوانيانو ته يې، چي د پاکستان له اخواني تنظيمونو او د پاکستان له پوځي استخباراتو، آی ايس آی سره يې ډېر زاړه اړيکي درلودل او د پاکستان حکومت ډېر اعتماد په کولای سو، له لومړي سره، ډېره زياته توجه وکړه او چي له امريکا، غربي نړۍ او عربي هيوادونو څخه هر څه مرستي راتللې ډېره زياته برخه يې اخواني تنظيمونو، په تېره بيا ګلبدين، ته ورکول. په دې باره کي دونه زيات مضامين او رپوټونه خپاره سوي او کتابونه ليکل سوي دي چي په دې لنډ مضمون کي يې تکرار ته ځای نسته.

په زړه پوري خبره دا ده چي د کندهار له ټولي کلتوري حوزې يا لوی کندهار څخه يې نه يو رهبر وټاکی او نه يې د کوم رهبر مرستيال او نه يې په جهادي تنظيمونو کي، د کندهار له سيمي څخه، د نفوذ او ژبي خاوند سړي ته ځای



ورکړ. دا سيمه د جهاد تر پايه پوري بې رهبره پاته سوه او د پرچميانو د رژيم له سقوط څخه وروسته يې ټول واک ايله جاريانو، بدماشانو، چرسيانو او د کندهار د ولايت تر ټولو بدنامو او بې پرنسيپو کسانو ته وسپارل سو. دې کسانو د قدرت په خپله دوه کلنه دوره کي هغه جنايات او فجايع وکړل چي د کندهار په تاريخ کي يې سابقه نه درلوده.

پاکستان د افغانستان څخه ورته راغلي مهاجرين د پېښور، کوټې، ايبټ آباد او دغه راز ليري سرحدي سيمو کي په کمپونو کي واچول. په کمپونو کي دننه يې کمپ کمانډران او سربراهان وټاکل چي هر يوه له سلو څخه تر پنځوسو پوري د کورونو نمايندګي کوله. سربراهان د فساد يوه لويه منبع وه چي د مهاجرينو تر نيمايي زيات حقوق يې په خپلو جېبونو کي اچول او د پاکستان د استخباراتو سره يې مستقيم ارتباط درلود. دوی هم په کمپونو کي د غيرمطلوبو عناصرو په باره کي مقاماتو ته رپوټ ورکاوه او هم يې په دغه نامه خپل دښمنان او هغه کسان له منځه وړل چي دوی يې له نفوذ څخه ډېرېدل. پاکستاني مقاماتو په کمپونو کي دننه مهاجرين پر قومونو او ډلګيو ووېشل او په دې توګه يې قومي دښمنۍ، چي په نيژدې وختونو کي د ښووني او روزني له برکته يو څه له منځه تللې وې، له سره پيل کړې. دغه راز يې له کمپونو څخه بهر د سيمو او ولايتونو په نومونو اتحاديې جوړې کړې. د کونړ اتحاديه، د نورستان اتحاديه، د لويي پکتيا اتحاديه او... په دې توګه يې هم په کمپونو کي دننه او هم له کمپونو څخه دباندي هر ځای د بې اتفاقۍ تخم وشيندی. دا بې اتفاقي ډېر ژر افغانستان ته انتقال سوه او تر اوسه پوري دوام لري او هره ورځ زور اخلي.

افغاني مهاجرينو په پاکستان کي مصوونيت په مطلقه توګه له لاسه ورکړی وو. هر ګړی د هر راز بدي پېښي احتمال موجود وو. مهاجرينو، په

تېره بیا منورینو، له سهاره تر ماښامه په ډار کي ژوند کاوه. له کمپ کمانډر او سربراه څخه نیولې، د مجاهدینو ترتنظیمونو او د پاکستان له عادي پولیسو څخه هر ګړی ډار موجود وو. پر له پسې ډار او دهشت له انسان څخه، چي د تېښتي او نجات ټولي لاري ورته بندي سي، هر ډول شی جوړولای سي. زمونږ د ډېرو زیاتو منورینو د فاسدېدلو او د پاکستان مقاماتو او یا د جهادي تنظیمونو فاسدو مشرانو ته د تسلیمېدلو یو علت په دغه دایمي ډار کي د ژوند تېرول دي.

زه په تقریبا تش لاس پاکستان ته مهاجر سوم. لومړی نهه لس میاشتي مي په کوټه او کراچی کي، په ډېر فلاکت تېري کړې؛ د خپلي کورنۍ مشرانو او کشرانو او حتی خپلي انا مي د سرې په سترګه نه راته کتل؛ ځکه دوی ټولو فکر کاوه چي جهاني ختم سو او د بیا ژوندي کېدلو احتمال یې نسته. په کوټه کي د څو تنو مهاجرو افغانانو سره په یوه کوټه کي دېره سوم. په دې کوټه کي تر دوه درې تنه زیات نه ځایېدل او موږ کله، کله تقریبا لس تنه پکښې پرېوتلو. دوی به هر وخت ویل چي زړه تنګ نه وي ځای نه تنګېږي. دوی ته خدای پراخ او لوی زړونه ورکړي وه او زه یې هیڅ وخت په تندي پوه نه سوم. ګواکي خوب نه وو هسي د سر لګېده وه. کله چي په هغو شپو کي د خپلو خپلوانو او نیژدې اشنایانو بې غوري را په زړه کړم نو ددغو مهاجرو کندهاریانو د نېکۍ او احسان یادولو ته مجبور یم. دې کندهاري مهاجرینو، چي اکثر مي د لومړي ځل له پاره ولیدل او وپېژندل، زما څخه د یوې روپۍ اندېوالۍ غوښتنه هم ونه کړه او تر قیامته به یې پوروړی یم.

په کوټه کي د اوسېدلو په شپو ورځو کي څو ځله د چمن سرحدي ښارته ولاړم. د دې سفرونو هدف مي د اخترګل نورزي په نوم یوه دروهلي سړي څخه د خپلو پیسو اخیستل وه، چي تر پایه پوري یې رانه کړې. اخترګل ته ما



په کندهار کي خپل کاروانسرای د میاشتي په لس زره افغانیو اجاره ورکړی وو او له هغه درکه مي تقریبا یو نیم لک افغانی پوروړی وو چي که یې راکړي وای نو زما به آب او پرده په خوندي سوې وای. په هر صورت د همدغو لنډو سفرونو په جریان کي یوه ورځ د حاجي پاچاخان، چي اوس په چمن کي اوسېږي، پلار مرحوم حاجي برات اشېزي په خپل کور کي مېلمه کړم. زما یې بې اندازې زیات قدر وکړ. سهار وختي یې د خپل یوه اعتمادي سړي په ملګرتوب د کوټې ښارته د عصمت مسلم کورته واستولم او پر هغه باندي یې زما سپارښتنه وکړه. البته عصمت زما په څېر خلکو ته اړتیا نه درلوده او زما له پاره له هغه سره کار کول چنداني ممکن نه وه. په همدغو شپو ورځو کي زما یوه نیژدې دوست، چي په هغه وخت کي په امریکا کي اوسېدی او ما یې پر دوستي حساب هم کړی وو، د عصمت مسلم د کور په شمول، چي په هغه وخت کي د مجاهدینو یو لوی قوماندان وو ، او په کوټه کي یې دفتر او ماله جات کي یې جبهې درلودلې، په دوو دریو ځایونو کي، چي یوه یې له حزب اسلامي سره نیژدې اړیکي درلودل، ویلي وه چي جهاني یو خطرناکه خلقی دی او ښایي پاکستان ته د مهاجر کېدلو څخه کوم بل هدف لري. نه پوهېږم چي زما په څېر یوه بې آزاره سړي وژل کېدلو به ده ته څه ګټه رسوله. ځکه په هغو شپو ورځو کي په چاپسي دغه راز تبلیغ پر ته له مرګه بله هیڅ معنی نه درلوده.

په کوټه کي د ژمي موسم پر پیل کېدلو وو؛ او زما له پاره، چي هم مي تازه څلور ماشومان او ناروغه مېرمن را رسېدلې وه او تقریبا هیڅ کالي مو نه درلودل، ګوزاره ګرانه وه. له هیڅ نقشې پرته، کراچي ته ولاړم. په کراچي کي د بولټن مارکیټ په نوم یو ځای ته ورغلم چي د کندهاري مهاجرینو څو مسافرخانې پکښې وې. په دې مسافرخانو کي معمولاً هغه مجرد ځوانان

اوسېدل چي امريکا يا جرمني ته يې د قاچاقي تللو خيال درلود او تر هغه وخته پوري يې د هندوستان د بمبيي ښارته ډېر لږ قاچاقي مالونه وړل. په دې مسافرخانو کي جعلي پاسپورتونه، تذکرې نکاح نامې او هر څه جوړېدل.

په بولټن مارکيټ کي مي د پښتون په نوم مسافرخانه کي ځای ونيوی. او زيات و کم شل ورځي وروسته مي له کوټې څخه ماشومان هم را ورسېدل. په هغه ښار کي مي د ډريګ کالوني په نوم يوې سيمي کي چي د کندهار د سرپوزې محمدزي پکښي اوسېدل يو ځای ونيوی. دا نو يوه کوټه او يو دهلېز وو چي زما څلور ماشومان، ناروغه مېرمن او سپين سرې مور مي ټول پکښي اوسېدلو. د ځای تنګ والی ډېره لويه ستونزه نه وه ځکه چي ټول د يوې کورنۍ غړي وو په هره توګه مو ګوزاره کولای سوه خو د کوټې په پای کي له دراوزې څخه بهر تشناب وو، چي موږ د کور د اوسېدونکو په تناسب ډېر زيات ضرورت ورته پيدا کاوه. د کور دغه دروازه په يوه داسي چټله تنګه کوڅه کي خلاصېدله چي له دوارو خواوو څخه د ګاونډيانو سپاره بيت الخلا باندي راسپاره وه او له سهاره ترماښامه له تعفن او بد بوی څخه طاقت نه کېدی. د دروازې له هر ځل خلاصېدلو سره، چي ماشومانو به ډېره زياته پرانيستله، په مرداريو لړلو مچانو يو لښکر خوني ته راننووت، چي د سړي به له خپلو کاليو او خپل ځان څخه نفرت کېدی. کرۍ شپه او ورځ مو له بدبويي، مچانو او داسي خوړو غوماشو سره ګوزاره وه چي نه يې د شپې او نه يې د ورځي آرام ته پرېښودلو. پخلی مو هم په دغه يوه خونه کي، چي کړکۍ يې نه درلوده او يوازې د کوڅې له لاري هوا يا بهتره ده ووايم بدبويي ورته راتله، کاوه. دا چي څه مو پخول او خوړل، چندانې مي په ياد نه دي؛ ځکه چي د خوړو مزه چاته ياده نه وه او ايله د لوږې چاره مو کوله.

په هغو شپو ورځو کي، په کراچی کي آوازه سوه چي د امريکا د سفارت



هيات، امريکا ته د افغاني مهاجرينو د لېږلو له پاره، د مرکو په منظور راغلی دی. حقيقت دا دی چي زه له افغانستان څخه پاکستان ته يوازې او يوازې د شوروي اشغالګرانو سره د جهاد کولو په نيت مهاجر سوی وم او دا مي په هيڅ توګه په زړه کي نه راګرځېدله چي يو وخت به امريکا يا لوېديځ ته پناه وړمه. ريشتيا ريشتيا دروغ دروغ، د کوټې او کراچی د ژوند شرايطو، د خپل ځان، ناروغي مېرمني او اولادونو نامعلوم راتلونکي او د نيژدې ترينو دوستانو بې غورۍ دونه زړه ماتی کړی وم چي پر هري خوا مخ نيولو ته تيار وم.

يوه ورځ سهار وختي، د امريکا له هيئت سره د مرکې کولو په منظور، د نورو افغانانو په څېر، زه هم ورغلم. يو جګ لوړ امريکايي، چي په خندا يې زما هرکلی وکړ، د مېز يوه سر ته او هغه ته مخامخ د حاجي مهتاب الدين په نوم يو افغان، چي ګڼې توري ږيري يې تقريبا ټول مخ پوښلی وو او يو عمر يې په افغانستان کي له امريکايانو سره نوکري کړې وه، د ترجمان په حيث ناست وو. کله چي هغه زما د خبرو په ترجمه کولو پيل وکړ نو ما ورته وويل چي پرېږده زه پخپله په انګليسي خبري وکړم. د امريکايي لومړی پوښتنه دا وه چي ما انګليسي چېرته زده کړې وه. ما ورته وويل چي دوه ځله بيروت ته تللی يم او په امريکايي پوهنتون يا اې يو بې کي مي يو څه درس ويلی دی. دا پخپله يو مثبت ټکی وو. امريکايي زما له خبرو سره علاقه وښودله او پوښتني يې پيل کړې.

دافغانستان د حاکم ګوند غړی يې او يا وې؟

نه!

په افغانستان کي بندي سوی يا شکنجه سوی يې؟

نه!

پرله پسې یا کوم وخت تعقیب سوی یې؟

نه!

چا د اوسني حاکم ګوند غړیتوب منلو ته مجبور کړی او تهدید کړی یې؟

نه!

که اوس بیرته وطن ته ستون سې نو له خطر سره مخامخ یې کنه؟

په دې کي شک نسته چي که وطن ته ستون سم د هر ډول خطر امکان سته او علت یې دا دی چي لومړی خو له وطنه تښتېدلی او بیا مي په اسلام آباد کي له بي بي سي راډیو سره د کابل د حاکم ګوند او شوروي اتحاد پر ضد مرکه کړې ده.

کله چي یې په امریکا کي د دوستانو او خپلوانو په باب پوښتنه راڅخه وکړه نو ما د هغه دوست نوم ورته یاد کړ چي په کوټه کي یې نیژدې په خلکو وژلی وم. ځکه زه تر دغه وخته لا خبر نه وم چي هغه ناځوانه هسې چټي تبلیغ راپسي کړی وو؛ او خوشي په خوشي یې د حتمي وژل کېدلو لاري ته برابر کړی وم.

په هر صورت، څو ورځي وروسته حاجي مهتاب الدین راته وویل چي د مصاحبې نتیجه منفي ده او ګواکي زه رد سوی یم. زما د ردېدلو اساسي علت دا وو چي ما په مرکه کي هیڅ دروغ نه وه ویلي او نور چي هر څوک منل سوي وه نو د امریکا د سفارت ټولو پوښتنو ته یې په دروغو داسي جوابونه ورکړي وه چي امریکا ته په تللو کي یې مرسته ورسره کوله . که ما هم امریکایي ته ویلي وای چي زه بندي سوی، وهل سوی او تهدید سوی یم، ښایي امریکا ته د مهاجرت په پروګرام کي منل سوی وای ، ځکه چي د امریکایي له تندي څخه پوهېدلم چي زما سره خواخوږي ښیي. کله چي زه رد سوم او کندهاریان خبر سول نو هر یوه به راته ویل چي تا باید دروغ ویلي



وای په ریښتیا خو هیڅوک قبولېدلای نه سي. البته هغوی خپل دا ښه نیت هغه وخت وښود چي خبره له خبري تېره وه. په افغانانو، په تېره بیا کندهاریانو کي، بدنیتي او تنګ نظري دومره عامه وه چي هیچا نه غوښتل حتی د یوې ښې مشورې قدر مرسته هم له چا سره وکړي.

په کراچی کي زما د سختو او مایوسونکو شپو کیسې دومره ډېري او دومره اوږدې دي چي زه یې په لیکلو او لوستونکی یې په لوستلو ستړی کېږي. زما د ناهیلي توب او خواشینی اندازه له هغو شعرونو څخه لګول کېدلای سي چي ما په کراچي کي د (۱۹۸۱م.) کال په پای کي لیکلي دي.

زما یوه دوست نسیم سلیمي له امریکا څخه راته لیکلي وه چي زه باید په پاکستان کي اوسېدلو، شپو ورځو خاطرې ولیکم. خو زما څخه بې سرنوشتی او مایوسیت هر څه هېر کړي وه او داسي فکر مي کاوه چي د پاکستان له دوږخي ملک څخه لکه چي وتل ممکن نه دي او په همدغه ناپاکه خاوره کي به بالاخره ښخېږم. نسیم ته مي ولیکل:

هېر که اشنا بیده خیالونه هېر که
هېر که اشنا دا ویښ خوبونه هېر که
هغه چي رنګي سولې ښخي سولې
د هغو هیلو لحدونه هېر که
خدای دی که ترنګ مي له ربابه وزي
زړه مستي مي په نغمه کي نسته
خندا ویده سوه اوښکي ویښي سولې
د ځوانی جوش مي په سینه کي نسته
هغه چي وزمولېدې ورژېدې

هغه غوټۍ د یادولو نه دي
هغه چې زړونه رغولای نه سي
هغه نغمې د ږغولو نه دي
زه سره ابلیس پرمخ وهلی یمه
زما څخه هېر سول فردوسي یادونه
زما څخه مه غواړه تاوده رګونه
زما څخه مه غواړه یاغي خیالونه

که څه هم چې ما له لویه سره د شعر له لیکلو سره چنداني مینه نه درلوده او کله چې به چا کوم وخت زما د شعر صفت کاوه او یا به یې زه ښه شاعر وبللم ما ته به یو ډول عجیبه ښکارېده. خو داسي ښکاري چې د خپګان او مایوسیت د څرګندولو، له خپل زړه سره د پټ ژړېدلو او د زړه د بړاس د ایستلو له پاره نظم لیکل ښه وسیله وي او یا ما نه سو کولای چې خپل د زړه ژور خپګان او خواشیني په نثر بیان کړم. ځکه مې د کراچې په شپو ورځو کې یو وخت دغه آزاد شعر ولیکی:

مه یادوه ماته پخوانۍ کیسې
مه یادوه ماته د ځوانۍ کیسې
هېري د مستۍ کیسې
هېري مي کړې هېري سوې...
پوه سوم چې دا زما د ژوند وروستۍ غروب
بله طلوع نه لري
لیري د خونخور افق په غېږه کې



مه ښیه و ماته د امید کرښې
یو وار تېر وتلی یم
ژوند خطا ایستلی یم
غېږ کې د شنو پاڼو یې زمولی یم
نور مې اسوېلي د اورېدو نه دي
نور مې پرهار ونه د کتو نه دي
خپله اشیانه مې سوځولې ده
خپله مې بېړۍ توپاني کړې ده
ځان مې د ساحل له ارامۍ څخه
وغورځاوه لیري توپانونو کې
ګیر سوم په بې رحمو ګردابونو کې
پرېږده د زمان نهنګ
پرېږده دا ظالم صیاد
ورکې کړې د زامو په خرپې کې
زما وروستۍ سلګۍ
نور د جوړېدو نه یم
نور د رغېدو نه یم
مه راکوه ماته سرابي زېري
مه یادوه تېري پخوانۍ کیسې
مه یادوه ماته د ځوانۍ کیسې
هېري د مستۍ کیسې
هېري مي کړې هېري سوې.

په کراچی کي مي یوه ورځ، په تصادفي توګه، د مېوي په یوه مارکیټ کي، مرحوم ډاکټر عبدالعلي ارغنداوی، چي کلونه وروسته د بي بي سي راډیو نطاق سو، ولیدی چي د مېوو ډک صندوقونه یا کریټونه یې له یوه ځایه بل ته وړل. ډاکټر عبدالعلي ارغنداوی یو لایق او لوستی افغان وو چي په فاکولته کي یو کال تر ما مخکي وو او د پوهنتون په دوره کي مو په لیلیه کي ډېري ښې شپې سره تېري کړي وې. هغه د افغانستان پر معاصر تاریخ باندي تازه په هند کي ډاکټري کړې وه او د امیر حبیب الله خان د وروستیو پنځو او اعلیحضرت امان الله خان د لومړیو دوو کلونو په باب یې، په څلور سوه پاڼو کي، په انګرېزي ژبه یو مغتنم او مستند کتاب لیکلی او ماته یې پخپله امضاء راکړی او په کتابخانه کي مي راته پروت دی. که څه هم چي ده هغه د خواری ژوند ته، چي د ده له تحصیل او شخصیت او ضمنا ډنګر وجود او روغتیایي حالت سره په هیڅ توګه نه جوړېدی، په ډېره مړانه اوږه ورکړې وه خو ما یې لیدل نه سو زغملای او له هغه ځایه مي تر کورپوري وژړل.

یو څه لږه اندازه پیسې چي مي درلودلې، د پښتون مسافرخانې مالک، چي ما په کندهار کي د ښوونځي او په کابل کي د پوهنتون له زمانې څخه له نیژدې ورسره پېژندل، په ډېره بېرحمي او ناځواني، له لاسه راڅخه وایستلې او نور نو د ډوډۍ او د کور د کرایې د پیداکولو له پاره د ارغنداوي په څېر خوارۍ کښلو او د کرېټونو چلولو ته مجبورېدلم. ما په ژوند کي مزدوري نه وه کړې. ما په ژوند کي پلنډي نه وې چلولي. ما پر ځان باندي هغه خواري مزدوري، چي ارغنداوي په ډېره مړانه اوږه ورکړې وه، ځکه نه سوای منلای چي هیڅ عادت مي نه ورسره درلود. ځکه مي نو له کراچی څخه د وتلو فیصله وکړه؛ او پېښور ته مي د تللو تصمیم ونیوی.



پېښور:

یوه شپه، چي د ژمي د پای شپې ورځي وې، له کراچي څخه پېښور ته روان سوم. ځکه چي په هغه ښار کي مي د ډاکټر بهاألدین مجروح په دفتر، افغان انفارمېشن سنټر کي، چي زما استاد وو، زیاتره راټول سوي منورین له نیژدې پېژندل او حتی ملګري مي ول. اوس هغوی اکثریت وفات سوي دي او زه په زړه کي هیڅ ګیله نه ورڅخه لرم؛ خو زما سره یې چنداني څه چي هیڅ مرسته ونه کړه. لږ تر لږه یې زما او زما د اولادونو او مېرمني له پاره راشن، چي زما مشروع حق وو او ما اړتیا ورته درلوده او د دوی په یوه ټلیفون ټول کار کېدی، راته حواله نه کړ. دوی پوهېدل چي زه ډېر بې لاسه او بې پښنو سړی یم او پخپله په خپلو حقوقو پسي نه سم ګرځېدلای. دوی کولای سوای چي یوه ورځ زما سره زحمت وباسي او د کمیشنرۍ په دفتر کي د میاشتي زر روپۍ، چي ملګرو ملتونو ټولو لیسانسه افغان مهاجرو ته ورکولې راته حواله کړي؛ مګر یوه هم دا کار ونه کړ. حتّی وروستۍ پنځه، شپږ میاشتي، چي د افغان انفارمېشن سنټر رسمي غړی سوم او باید چي د میاشتي یې دوه زره کلداري تنخوا راکړې وای، زما ټوله تنخوا یې په جېبونو کي واچول او یوه پیسه یې هم رانه کړه. دا خو هغه کسان ول چي په کابل کي مي تش ورسره پېژندل او ماته یې د یوه شاعر او لیکوال په سترګه کتل. خو چي زما خپلو خپلوانو او نیژدې ترینو ملګرو هیڅ ډول مرسته راسره ونه کړه نو له دوی څخه به څه ګیله کوم. اوس چي هغه وخت را په یادوم نو له خدای څخه راضي یم ځکه چي د هیڅ انسان تر احسان یې لاندي نه کړم؛ که یې کومک راسره کړی وای اوس به مي سترګي ورته کښته وای. زه د مهاجرت په هغو سختو شپو ورځو کي، چي د سر له خطر او لوږي له تهدید سره مخامخ وم او ټولي نړۍ شا را اړولې وه د ډاکټر قادر سلیمان عطایي څخه ممنون یم چي هم یې

څو ځله په کور کي مېلمه کړی یم او هم یې په ډېر اخلاص زما پوښتنه کړې او
د هر ډول مادي مرستي پېشنهاد یې راته کړی او ما په ډېر ادب رد کړی دی.
په پېښور کي مو په کوزتهکال کي، د یوې کوڅې په پای کي، د میاشتې په
شپږ سوه روپۍ یو کور، چي تر دي به نو، ښایي په ټول پېښور کي، مفلوک
کور نه وو، کرایه کړ. دا کور، که څه هم چي د کراچي تر بدبویه یوې خوني او
کوڅې بهتر وو، خو دومره زیمناک وو چي په هفته کي مو لږ تر لږه دوې ورځي
د خونو کمبلي او کالي د وچېدلو له پاره لمر ته را ایستل او تقریبا هره شپه
مو یو یا دوه تور لړمان وژل. دا چي ماشومانو مي څشي خوړل ځکه شکایت
نه سم کولای چي زما اکثر وطنوال همدا اوس په نس ماړه نه دي او هر ماښام
په وچه ډوډۍ پوري حیران دي. ښه مي په یاد دي چي یوه ورځ زما ماشومانو
د کوم بل افغان له ماشومانو سره جنګ کړی وو او د هغو ماشومانو مور زما
پر ماشومانو باندي په زوره زوره نارې وهلې چي کچالو خورو تاسي پر
څشي مستان سوي یاست.

د کوڅې په سر کي مرحوم محمد حسن اولسمل، چي وروسته یې د افغان
مجاهد په نوم یو اخبار هم چلاوه په یوه لوی کور کي ژوند کاوه چي وروسته
مرحوم ډاکټر اعظم ګل خان، چي د اولسمل صاحب اخښی وو، له خپلو
ماشومانو سره ورسره یو ځای سو. دوی ته مخامخ ژورنالیست او لیکوال
عنایت شریف او هغه ته مخامخ مرحوم محمد یوسف فرند، چي یو وخت یې
د روزګار په نوم اخبار چلاوه او یو وخت د پلان وزارت مرستیال هم وو، په
دوو اپارتمانونو کي اوسېدل. تقریبا هر مازیګر مي ورسره لیدل او کومه
پیاله چای مي ورسره چښلې.

په هغو شپو ورځو کي اولسمل صاحب د افغان مجاهد په نوم اخبار چلاوه،
چي وروسته یې پاکستاني مقاماتو د نامه بدلولو ته مجبور کړ او مجاهد



اولس نوم یې ورته غوره کړ. زما له پاره، چي هیڅ کار روزګار مي نه درلود،
دا یوه ښه مشغولا سوه او د اولسمل صاحب سره مي د اخبار له پاره د
مضامینو په انتخابولو، ایډیټ کولو او د ځینو مضامینو په ترتیبولو او
لیکلو کي مرسته کوله. د پېښور محیط، د مجاهدینو د مشرانو له لاسه، چي
د پاکستان مقاماتو هیڅ نه ورته ویل او حتی د منورینو په مقابل کي یې
وحشت ته نور هم تشویقول، زموږ لیکوالانو له پاره ډېر خطرناک وو. ما د
لومړي او وروستي ځل له پاره، د اولسمل صاحب په مشوره، له مستعار نامه
څخه کار واخیست. مضامین مي د بشیر مختار او شعرونه مي د ع ج
کندهاري په نامه خپرول. په همدغه شپو ورځو کي مي د اخبار له پاره د پښتو
او دري ژبي د مشهور شاعر، لیکوال او ډیپلومات مرحوم عبدالرحمن
پژواک سره، چي له اروپا څخه اسلام اباد ته راغلی وو، مرکه وکړه او دغه
راز مي په چارسده کي د فخر افغان پاچاخان سره هم یوه مفصله مرکه وکړه.
پاچاخان د خپلو خبرو په ترڅ کي راته وویل چي بچو! دا جنګ د سوپرپاور
دی او پښتانه پکي دل شول. پر ما باندي، د یوه احساساتي افغان په حیث،
دا خبره چنداني ښه ونه لګېده. هغه زموږ جهاد او مقاومت ته د سوپرپاور
جنګ وایه. موږ ایله شل کاله وروسته پوه سوو چي دا جنګ، په ریښتیا هم،
سوپرپاور پیل کړی او تر اوسه پوري یې دوام ورکړی او لا معلومه نه ده چي
تر کله به دوام کوي. ما د خپلو پوښتنو په لړ کي یو ځل ورته وویل چي
پاچاخانه تاسي د یوه پښتانه مشر په حیث... پاچاخان، د مشر د نامه د
اورېدلو سره، دومره په غوسه سو چي زما څخه یې خپله پوښتنه هېره کړه.
ویل یې "څشي؟؟ په تاسي کي مشر له کومه شو؟ تاسي کله پښتانه یاست.
تاسي کله قوم یاست. تاسي څرنګه د مشر نوم یادوی؟ تاسي که مشر
درلودلای نو دلته مو د پاکستان او پنجابیانو د مهاجرو په کمپونو کي څه

کول؟ تاسو مشر نه لرئ چي در په دېکه ګرځئ. تاسو خو مشر نه لری چي د ګدایي ګر نه ګدایي کوی"

موږ ریښتیا هم مشر نه درلود. زموږ د جنګ او مقاومت ټول مشران بوټو او ضیاءالحق راته جوړ کړي او انتخاب کړي ول او ټول، ګام په ګام او هره ورځ، د پنجابیانو له خوا کنټرولېدل او هر یو د پاکستان د پوځي او ملکي استخباراتو نوکر وو. چاچي ښه غلامي او بهتره مزدوري کولای سوای او چا چي د پاکستان د حکومت د شومو پلانونو سره سم افغانستان ته هر څونه زیات تاوان رسولای سوای هغه د پاکستان د حکومت ښه دوست او نوکر وو او ښې پیسې، بنګلې او امتیازات یې تر لاسه کول. د پاکستان استخباراتو نه یوازي ټول جهاد او مقاومت مستقیما رهبري کاوه او د مقاومت ټول مشران یې غلامان ول بلکه ټول سیاسي او حتی فرهنګي فعالیتونه یې له نیږدې څارل او چاچي د محمد حسن اولسمل په څېر یو څه سرکښي کوله اخبار یې وربنداوه او چلوونکی یې د بندیخانې شومه کاوه او یا یې د ډاکټر بهاءالدین مجروح، عزیزالرحمن الفت، جنرال حکیم کټوازي، عبدالرحیم چینزایي او نورو په لس هاوو او سل هاوو منورینو په څېر یا په سپینه ورځ قتلول او یا به یې د مجاهدینو په بدنامو او وېرووونکو کمپونو کي د شکنجو مېلمانه کړل او تر مرګه به یې پته ورکه سوه. ما لږ تر لږه دوه ځله په افغانستان کي د پاکستان سفیر فدا یونس، چي یو پښتون څېړونکی هم وو، لیدلی دی چي په افغان انفارمیشن سنټر کي یې د مسوولو کسانو څخه په پاکستان کي د اوسېدونکو افغانانو په باب معلومات تر لاسه کول. که څه هم چي زه یقین لرم انفارمیشن سنټر به داسي اطلاعات نه درلودل چي د پاکستان استخبارات به تر دوی لا هم ښه په خبر نه وه.

له بده مرغه چي په افغانستان کي اوس هم لا دغه کیسه روانه ده او پای یې



ځانه معلوم نه دی؛ خو په دې توپیر، چي اوس د خارجي بادارانو شمېر تر پخوا زیات سوی او د سیاسي دوکانونو او دوکاندارانو شمېر تر حساب اوښتی دی. ځکه نو د بدمرغیو، جنګ جګړو، بې امنیو؛ ورور وژنو او غم لړلو پېښو د لړۍ پای ورځ په ورځ لیري کېږي او راتلونکی تت او تاریک ښکاري.

په پېښور کي مي، په هر صورت، ډېري ترخې شپې ځکه تېرولې چي د هیڅ ډول راتلونکي پیش بیني مي نه سوای کولای او لا هره ورځ او هره شېبه د یوې بدې پېښې د منځته راتللو انتظار ایستل کېدلای سوای. د هیڅ ډول کار پیدا کولو څرک نه لګېدی. اولادونو مي ډوډۍ، کالیو او ښوونځي ته اړتیا درلوده او مېرمني مي، چي تر خپل ژوند راته ګرانه وه، د زړه مرګوني ناروغي درلوده. هغې هر وخت ډاکټر او دارو درمل ته اړتیا درلوده؛ خو ما نه د ډاکټر د لیدلو او نه د دوا پیسې درلودلې. له بلي خوا د دونه حیاتي ناروغۍ له پاره د پېښور په ډاکټرانو او دارو درمل اعتماد کول له تصوره وتلې خبره وه.

یوه شپه په افغان انفارمېشن سنټر کي پوهاند بهاء الدین مجروح، عبدالرسول امین، حکیم تنهیوال، ډاکټرظاهرعلم، وکیل سمیع الله خان ساپی، یوسف فرند او ځیني نور دوستان راغونډ سوي ول او د نوي کال د شپې په مناسبت یې له بازاره ډوډۍ راغوښتې وه او ټول خوشاله ښکارېدل. خو زما زړه سازنه کاوه او په هغه شپه مي یو نظم ولیکی چي زما د هغه وخت د احساس بشپړ ښکارندوی دی. او دا شعر هم ښاغلي ناشناس، څه موده وروسته په دونه شرنګ کمپوز کړ چي له بیا، بیا اورېدلو وروسته مي بیا هم پر غوږو ښه لګېږي.

ساقي نن دي په پیاله کي جوهر نسته
په ترخو اوبو کي بوی د کوثر نسته

چي توبه یې په طواف کي ماتوله
د هغه انګاري څاڅکي شرر نسته
یا مي بڼ د ځوانۍ لانښ د خزان لاس کړ
یا د تاک په افسانه کي اثر نسته
خو مستي وه که هستي دواړي پردۍ سوې
د پردیو په انګړ کي اختر نسته

ورځنیو واقعیتونو، تاریخي پېښو او سیاسي حالاتو د ډیورنډ د کرښي پر دواړو غاړو باندي پرتو پښتنو منورینو ترمنځ یو عجیب فکري اختلاف منځته راوړی وو. د پاکستان پښتانه منورین، چي پلرونه او نیکونه یې د انګرېزي استعمار له لاسه کړېدلي ول او د دوی اوسني نسل، په هغه اندازه، د امریکا او د هغه تر حمایې لاندي پنجابي حکومت څخه نفرت درلود نو ټولو هغو کسانو او قواوو ته یې د دوستانو په سترګه کتل چي د انګرېزا و امریکا مخالف ول. دا وخت شوروي اتحاد د امریکا او ټولي لوېدیځي سرمایه داري نړۍ په مقابل کي ولاړ وو؛ طبیعي خبره ده چي د پاکستان اکثرو کیڼ اړخو پښتنو منورینو هغوی ته د دوستانو په سترګه کتل. نو که کمونیستان نه وه، لږترلږه، چپیان ور څخه جوړ سوي ول. په مقابل کي افغان منورینو، چي د شوروي له مستقیم اشغال څخه یې پاکستان ته پناه وړې وه، هر هغه چاته چي د شوروي اتحاد مخالف او دښمن وو د دوست په سترګه کتل.

ښه مي په یاد دي چي یوه ورځ له یوې مشاعرې څخه وروسته، چي ماته چا د شعر لوستلو فرصت قدر هم نه وو راکړی، او علت یې هم دا وو چي هلته ټول یا اکثریت کیڼ اړخ پښتانه شاعران راغونډ سوي وه. د سلیم راز په نوم یوه



مشهور شاعر ما او یوه بل افغان مهاجر ته د چایو ست وکړ. په رستورانت یا سماوار کي یې د چایو د چښلو په وخت کي راته وویل چي اې بې بختو! شورویانو خو تاسو ته جنت کورله راوړی وو، تاسو په پاکستان کي څه غوښتل. که مي وس او زور لرلای نو په هغه رستورانت کي مي چپه کاوه؛ خو دونه مي په یاد دي چي د چایو پیاله مي، چي په بشپړه اشتها ورته کېښېنستلی وم، تشه نه کړای سوه.

سلیم راز مي، د تحصیل په شپو ورځو کي، چي لا ډېر زلمی وم، د اجمل خټک په کور کي لیدلی وو. زما د خپلو افغان زلمیو، سیاسي منورینو او مشرانو، حکومت او اولس هغه بې کچه مینه رایاده سوه چي اجمل خټک، سلیم راز، جمعه خان صوفي، افرآسیاب خټک، خان عبدالولي خان، د بلوڅو سیاسي او حتی یاغي مشرانو، په سل هاوو سیاسي منورینو او خانانو ملکانو ته یې ښودلې وه. د افغانستان حکومت د لري پښتونخوا د ماشومانو او زلمیانو له پاره، په کابل کي د خوشحال خان په نوم لیلیه ښوونځي جوړه کړې وه چي له لومړي ټولګي څخه ان تر ډاکټرۍ پوري ټول لګښتونه یې د افغانستان په حکومت پوري اړه درلوده. موږ نه یوازي دوی ته د پردیو په سترګه نه وه کتلي بلکه د سکنیو وروڼو په څېر مو پناه ورکړې وه.

پاکستان پردی ملک وو؛ ما باید هم ځان بېګانه او پردی احساس کړی وای. د پاکستان پښتانه منورین، چي ما په افغانستان کي د سکنیو وروڼو په سترګه ورته کتل او له هغوی څخه مي د میني د اظهار او دردونو د ټکورولو تمه درلوده، په فکري لحاظ دومره راڅخه لیري او پردي ول چي یو د بل په ژبه نه پوهېدلو.

د (۱۳۶۰م.) کال د وري د میاشتي اتمه وه چي زه له کور څخه بهر په شنو

څمکو کي ناست وم او له ليري مي د يوه واړه شپونکي سره د څو وزو ننداره کوله. د پسرلي مازيګر وو، نری شمال چلېدی او دا نظم مي ذهن او قلم ته راغی:

ليري ليري له هيواده
د پرديو په وطن کي
د اغزيو په کاله کي
زما د هيلو په مدفن کي
له ښايسته پغمانه ليري
په ساړه شاني سقر کي
راګوښه له کندهاره
په بې مهره پېښور کي...

***

هر څه وينمه آشنا دي
خو پردی راڅخه کور دی
را نه ليري خپله مېنه
را نه ورک د بابا ګور دی
زما پر ښکلي پغمان اوري
له اسمانه آفتونه
سپيني واوري سره لمبه دي
باندي ګرځي تور دودونه
زما له مسته کندهاره
بوی راځي د وحشتونو



شنې ويالې د وينو کوړم دي
روغ د توپ او د ټانکونو
زه به اوس هم لاهو کېږم
رانه هېر به وي دردونه
د پرديو پسرلي ته
ورلېږمه به شعرونه.

د پښتو ژبې مشهور او اولسي شاعر رحمت شاه سايل، چي د پايکوب په نوم زما پر دوهمه شعري مجموعه يې، په نه شناخت کي، په ډېر صميميت او خلوص يوه مقدمه هم ليکلې ده، يوه ورځ په ګيله کي ويلي وه چي جهاني له يې خوا له آمو تر اباسينه يو کور بولي او له بلي خوا پېښور پردی وطن بولي. رحمت شاه سايل نه وو خبر چي ما دا شعرونه په داسي حالت کي ليکلي دي چي په پاکستان کي د مهاجرت هره شپه د دوږخ لمبه وه.

کلونه وروسته مي د جرس د مجلې د (٢٠٠١م.) کال په فوق العاده ګڼه کي، د روزي خان برکي په نوم يوه ليکوال هغه ليک ولوست چي د دې مجلې د عمومي مدير طاهر افريدي په نوم يې ليکلی او له دوی څخه يې ګيله کړې وه چي نه يوازي حکومت د پښتو ژبې ته توجه نه کوي بلکه اولس هم ورته متوجه نه دی او د پېښور او نورو ښارونو په بازارونو کي د دوکانونو او کاروبارونو لوحې په انګرېزي او اُردو ژبو ليکل سوي دي. ليکوال وروسته د افغان مهاجرو په باب خپل بيان ته داسي دوام ورکوي "پر دې باندي چي څومره افسوس کېدای شي کم دی. ځکه چي پردو خلقو، کوم چي دلته د مهاجر په حيث وخت تېروي او کاروبار کوي، د دوی بورډونه په پارسي کښلي دي او يو مونږ يو چي د اُردو او انګرېزی شوق مو نه کمېږي... "

ليکوال نه يوازي مهاجرو ته د پرديو خلکو په سترګه ګوري بلکه زموږ پښتو ژبه هم پارسي بولي. ځکه چي په پېښور او شاوخوا سيمو کي پښتانه مهاجرين اوسېدل. که يې د دوکانونو ټولي لوحې په پښتو ژبه نه وې، نو لږترلږه اکثريت لوحې يې په پښتو ژبه وې.

## کلاوس فرديناند:

يوه ورځ په پېښور کي په افغان انفارميشن سنټر کي لاس تر زني ناست وم؛ او نا معلومي او بشپړ تياره راتلونکي ته فکر وړی وم او د حل او تېښتي هيڅ لاره يې نه راښکارېدله، چي مشهور ډنمارکی مستشرق کلاوس فردیناند، چي په کابل کي مو، په دوو وروستيو پېړيو کي د پښتو د چاپ سويو اثارو په سيمينار کي سره پېژندلي ول، دفتر ته راننووت. زما د ليدلو سره سم يې خوله له خندا ډکه سوه او په منتهی صميميت يې پوښتنه راڅخه وکړه " جهاني جان ته دلته څه کوې؟" ما ورته وويل دلته خو زما په څېر په زرهاوو کسان اوسېږي نو زه څرنګه دلته څه کوم. يوه ورځ وروسته کورته راسره ولاړ؛ غرمنۍ يې راسره وخوړه او زما د کور او ماشومانو وضعيت يې له نيژدې وليدی.

زما د کور احوال، زما بېکاري او په پردي ملک کي په تش لاس ژوند تېرول خپلو دوستانو ، اشنايانو او خپلو وطندارانو ټولو ليدلی وو. ما ته هيڅ يوه د مرستي لاس را اوږد نه کړ او حتی خواخوږي يې راسره ونه ښودله . يوه پردي سړي، چي نه په مذهب، نه په ژبه او نه په هيواد راسره خپل وو، په يوه ځل ليدلو زما په حال او زړه خبر سو او د مرستي لاس يې را اوږد کړ. په ډنمارک کي يې خپل آدرس راکړ او راته وې ويل چي په پېښور کي د ملګرو ملتونو د مهاجرينو د چارو دفتر ته ورسم؛ خپل حال ورته ووايم او د سياسي



پناه له پاره غوښتنليک ورکړم. لازمي فورمې ډکي کړم او په ډنمارک کي د ده نوم ورکړم. د ملګرو ملتونو د مهاجرينو د اداري دفتر مي په ډېرو پوښتنو ګروېږونو پيدا کړ. زما له ښې طالع، زما د مهاجرت او سياسي پناه غوښتلو له پاره د فورمو د ډکولو او مرکو اخيستلو او ترجمه کولو کار، يوه پښتون ليکوال مرحوم شېرزمان غمجن، چي پر پښتو ژبه يې ښه ناولونه پيرزو کړي دي، پر غاړه درلود. فورمې يې راکړې او په ورين تندي او موسکۍ خوله يې بېرته راڅخه تسليم کړې. زړه ته مي نه لوېده چي دا کار به کېدونکی وي. زيات و کم شپږ مياشتي وروسته، د همدغه دفتر له خوا، له ډنمارک څخه احوال راغی او زما سياسي پناه يې منظوره کړې وه. فقيد کلاوس فردیناند اوس زموږ په منځ کي نسته. هغه نېکي چي ده زما سره وکړه. هغه مېلمه پالنه چي په ډنمارک کي يې وکړه؛ هغه ناز چي په ډنمارک کي يې زما کورنۍ او ماشومانو ته ورکړ، تر قيامته د هېرېدلو نه دی. کشکي زما سره خپلو دوستانو، اشنايانو او نورو افغانانو د هغه په لسمه ښه کړي وای او يا مي ځينو وطندارانو لږترلږه بد راسره کړي نه وای.

فقيد کلاوس فردیناند، چي د (۱۹۲۶م.) کال د اپرېل پر نولسمه په ډنمارک کي زېږېدلی او د (۲۰۰۵م.) کال د جنوري پر پنځمه د زړه د حملې په اثر وفات سو، د افغانستان د کوچيانو د مسلې متخصص وو او په ټوله اروپا کي يې نوم پروت وو. د هغه لباس او ظاهري وضعيت کټ مټ د يوه درويش په څېر وو او هيچا فکر نه سو کولای چي دا ساده او سپېڅلی سړی به په اروپا غوندي پرمخ تللې قاره کي د يوه لوی او مشهور مستشرق حيثيت ولري او اسلامي انسايکلوپيډيا دي د هغه په ليکنو او ريسرچونو استنادونه کوي. کلاوس يوه پټه خزانه وه. يو ځل لکه چي له مقر څخه تر ټلات پوري د کوچيانو له کډو او قافلې سره پياده تللی وو. له کوچيانو سره

یې ډېرې زیاتې شپې په کېږدیو کې تېرې کړې وې او تر هر عادي افغان یې له کلتور سره ښه بلد وو. نه پوهېږم چې هغو کوچیانو ته چې کلاوس پیاده مزلونه ورسره کړي او په دغه وخت کې پېښور ته مهاجر سوي ول چا اطلاع ورکړې وه چې کلاوس پېښور ته راغلی دی. هغو کوچیانو کلاوس په افغان انفارمیشن سنټر کې پیدا کړ او زموږ څو تنو سره یو ځای یې په کېږدیو کې مېلمه کړ. د کوچیانو ځوانانو هغه ته کلاوس کاکا وایه او په زړه پورې خبره دا ده چې کلاوس ډېرو زیاتو زلمیانو ته په نامه ورږغ کول. په داسې حال کې چې ځیني به یې ده ډېر پخوا لیدلي ول او هغوی اوس زلمیان سوي ول او څېرو به یې حتماً ډېر تغییر کړی وو.

کلاوس د افغانانو له ژوند، په تېره بیا د کوچیانو له ژوند سره، چې ده د افغاني کلتور د ژوندي لابراتوار په سترګه ورته کتل، یوه عجیبه مینه درلوده؛ او د همدغې مینې په وجه یې افغانستان ته څو ځله سفرونه کړي او له کوچیانو سره یې په شپو شپو پلې مزلونه کړي ول. په افغان انفارمېشن سنټر کې، یې یوه ورځ د هغو تره کو کوچیانو په باره کې خبرې کولې چې ژمی په کندهار او اوړی په مقر کې تېروي. زما یو ناڅاپه دا متل پر خوله راغی چې: چنګوښې وایي غار تره کې وایي کندهار، چې چنګوښې وایي کور تره کې وایي مقر. کلاوس، چې د کوچیانو د ژوند په باب له تحقیقاتو سره یې ډېره ژوره او عالمانه مینه درلوده، له دې متل سره دونه علاقه وښودله چې په مایې څو ځله تکرار کړ او بیا یې زما په آواز ثبت کړ. وروسته یې د متل انګلیسي ترجمه هم زما په آواز ورسره ثبت کړه. زه په هغه ورځ متوجه سوم چې دې سړي له خپل مسلک، د کوچیانو له ژوند او خپلو علمي تحقیقاتو سره څونه ژوره مینه درلوده او په څومره دقیق او نه ستړي کېدونکي ډول پکښې لګیا دی. زه ایله پوه سوم چې له هغه سره کوچیانو او



کوچي زلمیانو ولې دومره مینه درلوده چې کلاوس کاکا یې باله. او مشرانو یې په خپلو کېږدیو کې دومره درنه مېلمستیا ورته کړې وه.

په ډنمارک کې، له افغاني مهاجرینو سره به یوازې ډاکټر یعقوب وزیري، چې د (۲۰۱۸م.) کال د سپټمبر په میاشت کې، له یوې ډېرې اوږدې او ربړونکې ناروغۍ څخه وروسته وفات سو، د کلاوس په اندازه مرستې کړې وي. زه په پوره زړه ویلای سم چې کلاوس یوازې ډنمارکی او یوازې عیسوی نه وو بلکه کلاوس په ریښتونې معنی یو انسان وو چې له ټولو انسانانو سره یې یو شان مینه درلوده. څرنګه چې د افغاني کوچیانو د ژوند په باب تحقیقات یې مسلک وو، نو د دې تحقیقاتو په لړ کې یې له کوچیانو او ټولو افغانانو سره بې کچه مینه پیدا سوې وه.

له کلاوس سره له لیدلو څخه میاشت یوه نیمه وروسته، یا مخکې یوه ورځ د کابل راډیو او ټلوېزیون مشهور نطاق او ژورنالیست، عنایت شریف راته وویل چې له امریکا ږغ راډیو څخه یو هیات راغلی دی او د راډیو له پاره د انګلیسي او پښتو ژبو امتحان اخلي. د پېښور په صدر کې یې دفتر دی او زه باید سبا حتماً ورسم. ما ویل وروره ما په ژوند کې یوه ورځ نطاقي نه ده کړې؛ زما او د راډیو یې سره څه. ده ویل نطاقي خو له ځان سره په اطاق کې نه زده کېږي؛ د مایک مخې ته زده کېږي. ته تر چا پاته یې. که زما ستا په نیمایي انګلیسي زده وای حتماً مې امتحان ورکاوه. د عنایت شریف د مشورې سره سم په سبا هغه ټاکلي ځای ته ورغلم. څو ورځې وروسته مې امتحان ورکړ او زیات و کم درې میاشتې وروسته خبر سوم چې په آزموینه کې بریالی سوی یم. زه به ډېر ژر امریکا ته تللی وای خو د مجاهدینو یوه مشر د تقریبا پنځوسو تنو په لاسلیکونو او مهرونو د امریکا ږغ راډیو ته یو مکتوب لېږلی او په هغه کې یې لیکلي وه چې جهاني یو پوخ کمونیست او د

کې جي بي جاسوس دی او باید چې د امریکا په څېر یوه هیواد په راډیو کې، چې خپروني یې د افغانانو او جهاد له پاره دي، استخدام نه سي. زما کاروند لېترلېږه شپږ میاشتي نور و ځنډېدل.

د انتظار په دغو ترخو شپو ورځو کي، چې نور مي نو له پېښوره څخه خوا ځکه توره وه چې هیچا د مرستي او لار ښودني لاس را اوږد نه کړ او د خپل ژوند څخه نیولې د ماشومانو تر ژوند پوري مي هر څه په خطر کي وه، د ملګرو ملتونو د مهاجرو دفتر اطلاع راکړه چې د ډنمارک د دولت له خوا زما د سیاسي پناه غوښتنه منله سوې وه. سمدستي مو د سفر کولو کاروبار برابر کړ. زه او ماشومان مي له خوښیه په جامو کي نه ځایېدلو. مور او مېرمني مي کرۍ ورځ کلاوس ته دعاوي کولې او مور به مي هره شېبه ویل چې ځومره ښه سړی دی خداي خودي یې مسلمان کړي چې له دنیا سره یې اخرت هم سم سي. په دغو شپو ورځو کي یوه ورځ ډاکټر قادر سلیمان عطایي کور ته راغی او دا ځل یې له خندا څخه په ډکه خوله راته وویل چې اندېوالـه مخکي مي څو ځله د پیسو پېشنهاد درته وکړ تا ونه مانه او س یې نو واخله، ځکه چې سم یې په پور درکوم. په دې پیسو قالیني واخله. که دې هلته په کار وي په کور کي یې هواري کړه او کنه په بازار کي ګټه هم باندي کولای سې. زما پیسې به وروسته راولېږې. ستا به کار سوی وي؛ زه به خوشاله سوی یم. ما یو ځل بیا هم کورودانی ورته ووایه؛ پیسې مي قبولي نه کړې، البته احسان به یې تر مرګه منم.

ډنمارک ته د تللو له پاره به مي درې څلور ورځي پاته وې چې د رسول امین سره د کمیشنرۍ د یوه عالي رتبه مامور، چې دوی عمرحیات لالا باله او په افغان انفارمیشن سنټر کي مي څو ځله لیدلی وو، دفتر ته ولاړم. زما طالع وګوره چې د عمرحیات لالا په دفتر کي د مجاهدینو هغه مشر چې امریکا ته



زما په باره کي رپوټ ورکړی وو، ناست وو. دفتر ته زموږ له ورتللو سره یې سمدستي ولاړ سو او موږ لا د عمرحیات لالا سره د روغ جوړ خبري او پوښتني نه وې خلاصي کړي چې د هغه یو آمر، چې تور، جګ، ډنګر سړی وو، دفتر ته ننووت. عمرحیات ته یې وویل چې ستا په آفیس کي عبدالباري او رسول امین څوک دي. هغه وویل چې امین صاحب خو دغه دی ناست دی او عبدالباري نه پېژنم. ما ورته وویل چې عبدالباري زما نوم دی او جهاني مي تخلص یا د کورنۍ نوم دی. د عمرحیات آمر موږ ته مخ را واړاوه او په ډېره آمرانه لهجه یې وویل چې تاسو دواړه به د زیارت (پنجشنبې) په ورځ زما آفیس له راځی کنه. موږ له منلو پرته بله لاره نه درلوده. کله چې هغه له دفتر څخه ووت نو رسول امین عمرحیات ته وویل چې ته ورسه له دغه آمر څخه دي پوښتنه وکړه چې څه خبره ده. موږ د څښي له پاره غواړي. عمرحیات، لکه چې د خپل آمر سره ښه اړیکي درلودل، ډېر ژر بیرته راغی او ویل یې چې د مجاهدینو دغه مشر چې ستاسي له راتګ سره زما له دفتر څخه ووت، زما د آمر دفتر ته ورغلی او هغه ته یې ویلي دي چې رسول امین او عبدالباري دواړه کمونیستان او د کې جي بي جاسوسان دي او همدا اوس د عمرحیات په دفتر کي ناست دي. تاسي څرنګه له یوې خوا د جهاد او مجاهدینو نارې وهی او له بلي خوا په خپله خاوره کي ښکاره کمونیستانو او د کې جي بي جاسوسانو ته ځای ورکوې.

رسول امین ما ته مخ را واړاوه ویل یې اندېواله په ما یې زور نه رسېږي خو ته باید د ځان چاره وکړې. که د دې کسانو لاسته ولوېدلې، چې موږ دې پته لګوو کال به تېر وي. که نور هیڅ نه کېدل نو د ملګرو ملتونو د مهاجرینو دفتر ته ورسه او کیسه ورته وکړه. که یې شاهد په کار وو زه دې شاهد یم. د زیارت په ورځ کمیشنرۍ ته نه ولاړم. د جمعې په ورځ دفترونه رخصت ول او

زما پرواز وو. د مُلا پر آذان مي له کور څخه د شنبې په ورځ د ډنمارک پر لور حرکت وکړ. د غرمې څخه مخکي راولپنډۍ ته ورسېدلو. په هوټل کي مي کوټه کرایه کړه. کرۍ ورځ مي پټه تېره کړه، حتی ماښومان مو هم د باندي نه پرېښودل. ماښام مي له اولادونو سره یو ځای هوایي میدان ته حرکت وکړ. د الوتکي له پرواز سره مي د خدای شکرونه ادا کړل او وروسته مي خپلي مېرمني ته ټوله کیسه تېره کړه. د مجاهدینو هغه مشر مي، چي اوس هم ژوندی دی او فعال سیاست کوي، تر شل ځله زیات لیدلی او د راډیو له پاره مي مرکې ورسره کړي دي. دی به اوس هم نه وي خبر چي زه په ټوله کیسه خبر یم او یا به یې ځان پر بې خبري اچولی وي. ځکه چي ما دا کیسه په ډېرو ځایونو کي کړې ده او زړه ته مي نه لوېږي چي زما دا دونه مهمه کیسه دي چا د هغه تر غوږه ور رسولې نه وي.

## ډنمارک:

له تقریبا دوه کاله مهاجرت او په پاکستان کي د لالهاندو، بې سرنوشتو، بې دوستانو او له خطرونو څخه ډکو ورځو شپو له تېرولو څخه مي په ډنمارک کي ایله د خوښۍ او یو ډول آزادۍ احساس وکړ. د مارچ پر اوومه ویشتمه غرمکۍ مهال د ډنمارک د آوغوس په نوم ښارته ورسېدلو. په هوایي میدان کي کلاوس فردیناند، له خپلي همېشنۍ خنداني څېرې سره راته ولاړ وو. په خپل ټول صمیمیت یې په غېږ کي ونیولم او وروسته یې د مهاجرینو د چارو موظفو کسانو ته وسپارلم. په هغه ورځ مي ډاکټر برهان، چي د کابل په پوهنتون کي مي ورسره پېژندل، لیدلو ته راغی. زموږ په موقتي کور کي له تقریبا یو ساعت تېرولو څخه وروسته یې د باندي بوتلم او تر هر څه مخکي یې په ښاري بس موټر کي له سفر کولو او مقرراتو سره بلد



کړم. حقیقت دا دی چي ما په دې برخه کي رهنمایي ته ډېره زیاته اړتیا درلوده. په ډنمارک کي عمومي ټرانسپورټ، په تېره بیا ښاري بسونه، دومره فعال دي او دومره پر خپل ټاکلي وخت راځي چي سړی چنداني شخصي موټر ته اړتیا نه پیدا کوي.

د دې خبري څه باندي پنځه دېرش کاله کېږي او په هغه وخت کي د اوغوس په ښار کي د ګوتو تر شمېر کمو افغان مهاجرو کورنیو ژوند کاوه. موږ یوازي له ډاکټر برهان او ډاکټر یعقوب وزیري سره، چي وروسته یې د سل ګونو افغاني مهاجرینو له کورنیو سره مرستي وکړې، پېژندل. له ماشومانو سره مي کله ناکله د کلاوس کورته، چي مېرمن یې هم د ده په څېر مهربانه وه او په کور کي یې یو کوچنی باغ هم درلود، تللو او کله، کله به یې د سمندرغاړي ته هم بوتلو. ما له لامبو سره چنداني مینه نه درلوده؛ که ریښتیا وایم له لویو څپو څخه یو څه ډارېدلم، خو د ماشومانو به مي سخت سات تېر سو. ما په ژوند کي اروپا نه وه لیدلې او د ډنمارک په څېر یوه ښکلي او بېغمه هیواد آزادي او ښکلی انساني چاپېریال سخت راباندي مجرا وو. د مهاجرو دفتر د جامو او خوراکي موادو د اخیستلو له پاره دونه پیسې راکولې چي موږ اصلاً لګولای نه سوای. د ژوند شرایطو داسي تغییر وکړ چي له پاکستان سره خو په هیڅ صورت د مقایسې وړ نه وو بلکه هر څه داسي راته برابر وه چي ما ویل خوب وینم. خو په لږه موده کي هر څه تکرار سول او ژوند راته یو ډول بې هدفه ښکاره سو. زه له افغانستان څخه د هدف سره راوتلی وم. نه مي خارج ته د تللو نیت درلود او نه مي په خیال کي را ګرځېدلي وه. ما ویل زه به د یرغلګرو شوروي قواوو سره، د خپلو مجاهدینو ورونو تر څنګ اوږه پر اوږه جهاد کوم او څلور واړه زامن به مي د جهاد په مورچلونو کي دروم. خو له بده مرغه چي په افغانستان کي دننه د جهاد رهبري د

ملاملنګ په څېر قصابانو او حرفه‌اي جنايتکارانو اخيستې وه چې د انسان وژل، شکنجه کول، بې حيثيته کول او کور تباه کول عادي کار ورته برېښېدی؛ او په پاکستان کې د ملي مقدس جنګ او مقاومت رهبري د اوو تنظيمونو، چې واړه او لوی کسان يې د پاکستان د يوه عادي منصبدار غلامان ول، لاسته ورغلې وه او زما په څېر سپېڅلو انسانانو ته اصلاً د پښو د ايښودلو ځای نه وو. زه له وچه مجبوريته اروپا ته تللی وم خو اروپا زما له پاره نه وه. د ډنمارک سره د بېګانګۍ او پرديتوب احساس مي له هغه نظم څخه چې ډنمارک ته له تللو څخه دوې مياشتې وروسته مي وليکی ښه څرګندېږي.

بېګانه:

د نا اشنا سترګي ګونګۍ او ښکه‌يم
رغړم ځلېږمه ورکېږم چېرته
لکه د هيرو کيسو ورک نومونه
له زړونو وزمه هېرېږم چېرته
د يوه ليري غره د تيږو ترمنځ
يوه غوټۍ يم غوړېدلې يمه
نه د اوربل نه د ګرېوان په تمه
نه د چا سترګو پېژندلې يمه
زه د هستۍ د کهکشان پر لمن
نا پېژندلی نا ليدلی ستوری
د يوې ليري نا بلدې درې
پر يوه پاڼ باندې لوېدلی سيوری



د پردي سېل سره الوتی مرغه
د بل په خوښه وزرونه وهم
د سوز نارې مي بېګانه دي دلته
ځکه پر خوله باندي مُهرونه وهم
يوه کيسه د لېوني پر ژبه
د چا غوږو ته رسېدلې يمه
چا مي پر لوري راکتلي نه دي
چا له ناکامه اورېدلې يمه

د بېګانګۍ او پرديتوب له دې احساس سره، ډېر زيات، په ډنمارک کي پاته نه سوم. په ډنمارک کي له دريو مياشتو تېرولو څخه وروسته د امريکا د ږغ راډيو ټلګرام را ورسېدی او زه يې په راډيو کي د کار له پاره واشنګټن ته بللی وم. سمدستي مي له کلاوس فرديناند سره سلا وکړه او هغه راته وويل چي له هيچا سره سلامه کوه او امريکا ته د تګ له پاره په خپلو کارونو پسې سه. په ډنمارک کي د څه کم څلورو مياشتو تېرولو څخه وروسته مي د (۱۹۸۳م.) کال د جولای پر يوويشتمه د واشنګټن پر لور حرکت وکړ او پر ديرويشتمه د امريکا د ږغ راډيو له کارکوونکو سره، چي له لږو کسانو څخه يې ښه خاطره لرم، يو ځای سوم.

## د امريکا د ږغ راډيو او امريکا:

امريکا ته له خپل يوولس کلن مشر زوی فريد سره راغلم او نور درې ماشومان او مېرمن مي ځکه په ډنمارک کي پرېښودل چي ما ويل زه به يو ځل په امريکا کي د کور او ځای سرښته وکړم او بيا به نو که خير وي دوی راسره

یو ځای سي. لومړی پنځلس ورځي مې د شپون صاحب په کور کې تېرې کړې او وروسته مې، د هغه په مرسته، د ویرجینیا د ایالت د الکزانډریې په یوه ځای کې چې اوغان دانی یې بلله او زیات وکم شپېته کوره افغانان به پکښې اوسېدل، یو اپارتمان کرایه کړ. ده اوغانان، یا اوغان دانی، چې امریکا ته زما د راتګ د لومړیو شپو خاطرې ورسره تړلي دي، عجیب ځای وو. په اوغان دانی کې د افغانستان له پخوانیو وزیرانو، والیانو، معتبرو سردارانو او صاحب منصبانو څخه نیولې تر غریب کارو او بېسوادو افغانانو پورې هر ډول خلک اوسېدل. د دوی ترمنځ یو عجیب صمیمیت او وروري موجوده وه. زه په پوره زړه ویلای سم چې د ژبې، قوم او رتبې مسله بېخي مطرح نه وه او دا خبره چا چنداني نه کول او نه یې په زړه کې ور ګرځېدل چې په افغانستان کې یې څه کار کاوه او څشي یې درلوده. د هغوی ترمنځ بس یکې یوه د افغانیت مشترکه وجهه وه. له یوه افغان سره د مرستې په بدل کې چا د منني انتظار نه درلود او له چا سره به چې مرسته وسوه هم یې ځان په منني مکلف نه باله بلکه دا یې خپل حق او د مقابل طرف وظیفه ګڼله. په اوغان دانی کې د جمعې او شنبې په ماښام معمولاً شپې اووه ځایه میلمستیاوې او بانډارونه وه. ډېر ځله به ځیني افغانان پر یوه مجلس وربرابر سول او پرته له دې چې چا دې ست سلا ورته کړې وي په کور به ور دننه سو او ښه عزت به یې وسو. زما مېرمن او ماشومان، له ډنمارک څخه، تقریبا دوې میاشتي وروسته را ورسېدل. په دغه موده کې مې د مقیم ننګیالي په نوم یوه افغان، چې یو وخت په افغانستان کې د پولیسو منصبدار وو، ناز او مېلمه پالنه هیڅ وخت نه هېرېږي. تر لس ځله زیات به یې ډوډۍ راته راوړې او زما سره به یې یو ځای خوړلې وي. د دوبې شپې ورځې وې او بوراني بانجن، مستې او شلومبې خو مې بېخي له یاده نه وزي. کله چې مې



ماشومان را ورسېدل؛ تازه د ښوونځي د پیل کېدلو شپې ورځې وې. زه په کار کې مصروف وم او هیڅ خبر نه سوم چې څلور واړه ماشومان مې چا او کله ښوونځي ته شامل کړي دي. البته دا عادي کار نه وو او منډو ترړو ته یې اړتیا درلوده.

د مشرقي، جنوبي، فارسي او پښتو او شیعه او سني خبره بېخي مطرح نه وه. ټولو یوه بل ته د افغان په سترګه کتل او د یوه افغان کور د ټولو افغانانو کور وو. سیاسي اختلافات هم چنداني محسوس نه وه او افغانانو په عمومي صورت د مجاهدینو د ننګ غیرت او وطن پالني صفتونه کول. چا خو بېخي په نن او سبا کې د شوروي قواوو او د هغوی د لاسپوڅي رژیم د نسکورېدلو خبري کولي او په نن او سبا او ډېره نیژدې راتلونکي کې وطن ته د بیرته ستنېدلو خبري کېدلې. افغانانو، په عمومي صورت، په کرایي کورونو کې ژوند کاوه او که یو نیم افغان کور اخیستی وو، نو دا بېخي د ګوتو په شمېر وه. اصلاً د کور اخیستل یو ډول عیب بلل کېدی او د کور اخیستلو دا معنی درلوده چې ګواکي وطن ته د ستنېدلو خیال نه لري. د امریکا د تابعیت اخیستلو خو چا خبره نه سوای کولای. تابعیت ته بېخي د وطن پلورلو په سترګه کتل کېدل او سم د شرم خبره وه.

دا وخت لا د مجاهدینو تنظیمونو، په امریکا کې، د مهاجرو افغانانو منځته چنداني لاسونه نه وه اوږده کړي او خلکو، په عمومي صورت، د مجاهدینو ټولو مشرانو ته خاص درناوی درلود. په هغو شپو ورځو کې، افغانانو جومات نه درلود. د دشنه علومي په نوم یوه افغان، له افغانانو څخه پیسې ټولي کړې او د نورو افغانانو په مرسته یې، په اوغان دانی کې یو اپارتمان کرایه کړ. د اپارتمان له صالون څخه یې، چې تر ډېرش څلوېښت تنه لمونځ کونکي زیات نه پکښې ځایېدل، د جماعت د لمانځه له پاره کار

اخیست. مقیم تنکیالي چي په همدغه دهلېز کي یې ژوند کاوه له خپلو ښځو او ماشومانو سره د جومات د خادمانو وظیفه اخیستې وه. په همدغه نسبتاً واړه صالون کي د فاتحو او ختمونو مراسم هم سرته رسېدل. روژه ماتونه هم دلته کېدل. دریم څلورم روژه مات خو به دونه غني وو، دومره خوراکي مواد او مېوې به راوړلې سوې چي وروسته چا په کور کي ډوډۍ خوړلای نه سوای. البته دا نظم هم د افغانانو د ډېرېدلو او د ځای د تنګۍ او هم د افغانانو ترمنځ د بې اتفاقیو او بدبینیو له امله ډېر ژر خراب سو او اپارتمان په خپله مخه ولاړ.

په همدغو شپو ورځو کي، چي ماشومان مي تازه له ډنمارک څخه را رسېدلي وه، یوه افغان، چي نوم مي په یاد نه دی، یوه اپارتمان ته، چي ګومان کوم، د افغانستان د یوه پخواني وزیر او محمد زي، یونس رفیق کور به وو، د مجلس له پاره بلنه راکړه. په مجلس کي یونس رفیق، د هغه کشر ورور احسان رفیق، اسحق عثمان او ځینو نورو محمدزیو سردارانو، چي په افغانستان کي یې لوړ مقامونه او جایدادونه درلودل او تقریبا ټول محمدزي ول او زما اشنای حنیف صادق او افضل کندهاري، چي دواړه بارکزي ول، برخه درلوده. خبره د اعلیحضرت محمد ظاهر شاه د طرفدارۍ او افغانستان ته د هغه د بیرته ستنولو په باب وه. په مجلس کي به ښایي یوازي حنیف صادق مخالف وو نور نو تقریبا ټول په یوه سلا ول. د مجلس په سر کي یې زه، د یوه ګډون کونکي په پیشنهاد، د منشي په حیث وټاکلم. ما دا وظیفه ومنله خو زیاته مي کړه چي لومړی خو باید دا لومړی او وروستی مجلس نه وي او موږ باید لږترلږه په هفته کي یو ځل سره وګورو. په مجلس کي دي، په لومړي سر کي، مخالفینو ته برخه نه ورکول کېږي؛ څو موږ خپل کارونه په ښه توګه او پرته له خنډه پر مخ بوزو او باید چي له اعلیحضرت سره



ډېر ژر تماس ونیول سي او له خپلو فعالیتونو او نیتونو څخه یې خبر کړو. هسي نه چي موږ لګیا یو او هغه خبر نه وي. مجلس زما درې واړه پیشنهادونه ومنل. دا مو په دې باره کي لومړی او وروستی مجلس وو. زه یقین لرم چي چا به زما په باب بد نیت څرګند کړی او شیطانت به یې کړی وي؛ ځکه چي زما سره بیا هیچا هیڅ ډول تماس ټینګ نه کړ. که څه هم چي ټاکل سوې وه چي راتلونکی مجلس به زموږ په کور کي وي.

که څه هم چي، تر یوه وخته پوري، د افغانانو ترمنځ مهاجرت او افغانیت د مشترکي وجهي په حیث پاته سو، خو دې ښېګڼي، د بل هر ځای او خاوري د مهاجرینو د ټولنو په څېر، تر ډېره وخته پوري دوام ونه کړ. موږ له قومي، نژادي، ژبني، سیاسي، منطقوي او حتی لهجوي اختلافاتو څخه تر قیامته په څنګ نه سوای پاته کېدلای. له بلي خوا په پاکستان او ایران کي د ډېره تنظیمونو، د بل هر ځای په څېر، امریکا ته هم لاسونه را اوږده کړل او د افغانانو، د لنډي مودې صمیمیتونه او ورورګلوۍ، د اوږدې مودې، په دښمنیو او اختلافاتو تبدیل سول. هر ځای چي به دوه درې افغانان سره یو ځای سول پر سیاست به ګړېدل او سیاسي مجلسونه او بحثونه به معمولاً په خوابدي او حتی ښکنځلو او یوه بل ته په خاین او وطن پلورونکي ویلو پای ته ورسېدل. ښځو به راپوري خندل او ویل به یې چي پخوا به ښځو غیبتونه کول او س نارینه له سهاره ترماښامه غیبت کوي. پخوا به ښځو یوې بلي ته د خبرو نوبت نه ورکاوه او س په هر مجلس کي ټول نارینه په یوه سلا خبري کوي او له سري څخه د بحث او اختلاف ټکي ورک سي.

## د امریکا ږغ راډیو:

هغه ملګري چې ما د امریکا ږغ راډیو سره د کار د پیل کولو په لومړۍ ورځ ولیدل، یو هم اوس هلته نسته. یا وفات سوي، یا یې تقاعد کړي او یا یې کوم بل چېرته کارونه پیدا کړي دي. دا هم یو عجیبه مؤسسه وه. په بهر کي تقریبا ټولو افغانانو تبلیغ کاوه چې دا د سي آی اې څخه تنخوا اخلي او غړي یې ګواکي ټول د همدغي استخباراتي مؤسسې سره کار کوي. دا تبلیغ زیاتره هغو کسانو کاوه چې په امریکا ږغ راډیو کي کار نه وو ورته پیدا سوی او د انګلیسي ژبي په آزمېینه کي ناکام سوي ول. یو ماښام یوه سړي، چې د شپون صاحب په شناخت مي کورته راغلی وو او د ده ملګری وو، زموږ په خپل کور کي وویل چې د دې راډیو ټول غړي د سي آی اې جاسوسان دي. شپون صاحب خو ورسره خندل خو ما ورته وویل چې دا خبره دي سمه نه ده او موږ هلته یوازي د ترجمانانو او نطاقانو په حیث کار کوو. ومي لیدل چې سړی جدي دی، نو په ټوکو مي ورته وویل چې خیر دی دا خو امریکا ده که سړی د دې استخباراتي مؤسسې سره کار وکړي نو څه پروا لري. مېلمه سمدستي ولاړ سو او ماته یې وویل چې دی نه غواړي د داسي چا په کور کي ډوډۍ وخوري چې د امریکا جاسوسي روا بولي او فخر په کوي. ما چې هر څه ورته وویل چې زه ټوکي کوم زما خبره یې ونه منله او له کوره مي ووت.

د امریکا ږغ تر ټولو پخواني غړي، ډاکټر حبیب الله تږي، ډاکټر فضل نور خان، عبدالقدیر فهیم، علي احمد جلالي، د سوات او سېدونکی سلطان بهادر یوسفزی، سعدالدین شپون، محمد حیدر کرزی، خان محمد علمي او د منصور په نوم یو ځوان وو چې ډېر ژر برطرف سو. په دې کسانو کي یو هم مسلکي ژورنالیست نه وو. د خپرونو له پاره ډېر زیات مواد موږ ته تیار په انګلیسي ژبه راکول کېدل او موږ به ترجمه کول او خپرول. ځینو ملګرو لکه



جلالي، شپون، تږي او ما ځیني خاص ادبي او تاریخي پروګرامونه درلودل، چې د اورېدونکو د خاصي توجه وړ ګرځېدلي وه. له دې مؤسسې څخه ځینداني ښه خاطره ځکه نه لرم چې د پوهانو، استادانو او سپین ږیرو په حیث یې له سهاره تر ماښامه یوه بل ته دسیسې کولې او شپه او ورځ یې د یوه بل په غیبت تېرېدل. زه چې دا پوه او سپین ږیري کسان اوس را په زړه کوم نو په زړه کي وایم چې له عادي افغانانو څخه به ولي ګیله کوو. دغه علت وو چې د تقاعد د مستحق کېدلو سره سم مي کار پرېښود او حتی یوه میاشت مي هم معطلي ونه کړه. د امریکا ږغ راډیو څخه دونه ترخې خاطرې لرم چې که یې لیکم نو د اشخاصو د نومونو له یادولو پرته خاطرات مفهوم او خوند له لاسه ورکوي او که د اشخاصو نومونه یادوم نو زما لیکنه ارزښت له لاسه ورکوي. نو دونه به ووایم چې ځینو له دفتر څخه بهر په افغانستان کي ډېرو لویو نومونو په دفتر کي د ننه دونه واړه کارونه کول چې سړی به کله، کله د خپل هیواد د نورو ډېرو لویو نومونو په باره کي شکمن سو.

د علمي ساحې او تحقیقاتي لیکنو په برخه کي له ډاکټر حبیب الله تږي څخه ښې خاطرې لرم. دا په جرأت سره ویلای سم چې د افغانستان په پوهانو او سپین ږیرو کي مي د هغه په څېر ډېر لږ هوښیار خلک لیدلي دي. ده په تاریخي متونو کي د افغان، افغانستان او پښتانه د نومونو او د دې قوم د تمدن په باب څېړنه کوله او په پای کي یې د پښتانه په نوم یو کتاب هم ولیکی چې هغه تاریخي متون یې راوړي چې د افغان او افغانستان یادونه یې کړې ده. ما په هغه وخت کي د "هرات پښتانه او ستره لوبه" پر کتاب باندي کار کاوه. د غرمې پر مهال به له ډوډۍ خوړلو څخه وروسته د کانګریس کتابخانې ته تللو او تر یوه ساعت یا کله، کله ډېر به هلته پاته سولو. د هغه له علمي مشورو څخه مي ډېره ګټه اخیستې ده. حبیب الله تږي په لومړۍ

ځواني کې شعر هم لیکی. هوښیار او لایق ځوان راغلی وو او په لومړي سر کې یې په سیاسي فعالیتونو کې هم لږو ډېره برخه اخیستې وه. په پښتو سرویس کې مې یوازې له ده او علي احمد جلالي سره له علمي بحثونو څخه خوند اخیستی دی. جلالي صاحب په تاریخ، مذهب، فارسي ادب او خپل عسکري مسلک کې دونه پراخه مطالعه لري چې سړی بحث ورسره ونه کړي تر هغه وخته نه سي پوهېدلای.

شپون صاحب، د خپل ادبي استعداد تر څنګ، چې ښه ناولونه یې ولیکل، ډېره روانه ترجمه او لیکنه یې کوله او په ځواني کې یې شعر هم لیکی، ډېر ظریف سړی وو. ټوکې یې ښې لګېدلې خو کله، کله به یې خوله له واکه ووتله او داسې ټوکه به یې وکړه چې مقابل لوری به یې خفه کړ. په دفتر کې مو د ده په ظرافتونو، ټوکو او حاضرجوابیو سات تېر وو.

کله چې زما مېرمن او ماشومان له ډنمارک څخه را ورسېدل نو موږ د کور له پاره لوښو او د کور ځینو سامونونو اخیستلو ته ضرورت درلود. څرنګه چې شپون صاحب اولادونه یې له موږ څخه زیات وکم لس میاشتې مخکې امریکا ته راغلي ول نو موږ د هغه له مېرمنې څخه هیله وکړه چې د لوښو او سامانونو د اخیستلو په رهنمایي کې مرسته راسره وکړي. په ګډه د سیرس په نوم یوې لویې مغازې ته ولاړو. موږ په خبرو خبرو کې له خپلو ښځو څخه یو څه مخکې سولو او هغوی مو له سترګو نیهامې سوې. ما شپون صاحب ته وویل چې ښځې نه معلومېږي چې یو څوک یې را څخه غلا نه کړي، ده سمدستي وویل غلا بلا ورپسې چې بیرته یې راته رانه ولي. زه خندا واخیستم او په دې ګړي کې مو مېرمنې هم را ورسېدلې. ما د شپون مېرمنې ته کیسه وکړه. هغې دا خبره جدي واخیسته او چې شپون هر څه ورته ویل چې ټوکې مې کولې [illegible] ورته وویل چې ته هر وخت دغه راز خبرې کوې.



خدای زده څومره را څخه په تنګ یې.

حیدر کرزی، چې تر ما به لس کاله کشر وو، د دفتر تر ټولو ځوان غړی وو. شوخي او ظرافت یې د خپلو مشرانو کرزیانو څخه په میراث وړی وو. داسې ورځ به نه وه چې له حیدرجان سره مو یوه خوله خندا نه وي کړې.

## زما ادبي هلي ځلي:

که یو څوک وایي چې پښتانه د ژوندیو قدر نه کوي او یوازې د مړو په ستاینه ځانونه ستړي کوي نو زه، لږترلږه، د ځان په برخه کې دا خبره نه سم کولای؛ او له دې اړخه باید هیڅ ډول شکایت ونه کړم. څه باندې پنځه ویشت کاله کېږي چې په اروپا، کاناډا، افغانستان، پاکستان، استرالیا، ادیسه، ماسکو، پیټرزبورګ او امریکا کې زما له پاره ادبي محفلونه جوړېږي. هرې سیمې او هیواد ته رسمي بلنه راکړه سوې ده او خلکو دومره مینه راکړې ده چې فکر نه کوم تر دې زیاته دې ممکنه وه. د اروپا د جرمني، سوېډن، هالینډ، بلجیم، انګلستان په هیوادونو او د جرمني په هامبورک، فرانکفورټ، کولن، بن، مونشن په ښارونو، د کاناډا د ټورنټو په ښار کې څو ځله، د افغانستان په بېلو، بېلو ښارونو ننګرهار، کنړ، لغمان، میدان، لوګر، خوست، کندهار، هلمند، د پاکستان په چمن، کوټې، کراچۍ او د امریکا د کلیفورنیا په ایالت کې تر هغه وخته استقبال سوی یم چې نور مې د ډیکلیمې کولو توان ختم سوی دی. زه ګومان نه کوم چې په ژوندیو شاعرانو کې به د هیچا په ستاینه کې زما په اندازه شعرونه لیکل سوي وي. د کندهار مشهور طنز لیکونکي لیکوال، ژورنالیست او شاعر عبدالنافع همت په (۳۸۵) مخونو کې د جهاني جهان په نوم یوه کتاب کې د افغانستان، پېښور او کوټې د ډېرو مشهورو لیکوالانو او شاعرانو مضامین را غونډ کړي دي چې

زما د شعر او ادبي هلو ځلو په ستاينه کي ليکل سوي دي. البته په دې کتاب کي يوازي نثرونه راغلي دي، ځکه چي همت صاحب ويل که شعرونه هم پکښې چاپ وو نو د کتاب حجم به ډېر زيات سي. په (٢٠٠٩م.) کال کي مي د کوټې په ښار کي داسي تود هرکلی وسو او خلکو دومره مينه راکړه چي نه مي له هغه څخه مخکي او نه وروسته ليدلې ده.

البته زما قناعت او خوښي د ټولو ګرانو شاعرانو د عام قناعت معنا نه لري؛ بلکه ټول شاعران بايد په دغه شکل ونازول سي. ځکه چي د پښتو په شاعري او ليکوالي کي مادي ګټه نسته. شاعران او ليکوالان د زړه وينې خوري او د خپلو کتابونو د چاپولو له پاره، چي د نورو ژبو په خلاف، هيڅ ډول مادي ګټه هم نه ورته لري، له خلکو څخه مرستې غواړي. څرنګه چي حکومت د دې ډول کتابونو د چاپولو له پاره کومه ټاکلې بوديجه نه لري، چي بايد درلودلې يې وای او د شاعرانو د تشويقولو له پاره هيڅ ډول امتيازات او پروګرامونه نه لري، چي بايد لرلې يې وای، نو ليکوالان، زياتره وختونه د خپلې سيمي له پانګه والو څخه مرسته اخلي او د کتاب په پای کي د هغه له مرستې څخه منننه کوي او زياتره وختونه يې د منني تر څنګ د ونه غټ عکسونه ورته چاپ کړي وي چي د شاعر تر عکس ډېر غټ وي. نو که نور هيڅ هم نه وي د قدر کولو او د ادبي زيار د هرکلي ليدلو دا يوه معنوي ګټه خو يې حق ده.

خپلو پښتنو مي زما ډېر عزت کړی دی. خدای دي د دوی عزت وکړي. خو هغه خوږه خاطره به مي تر مرګه هېره نه سي چي په (٢٠١٢م.) کال کي په ماسکو کي د جلال آباد سيکهانو او د خوست هندوانو يو شانداره ادبي محفل راته جوړ کړی وو او زما شعرونو ته يې په سروستر ګو ژړل. دا زموږ هغه وطندار سيکهان او هندوان دي چي زموږ پښتنو او غيرپښتنو



زورواکانو او غلو په کابل، خوست، جلال آباد، کندهار او اروزګان کي د هغوی جايدادونه او کورونه غصب کړل او درمسالونه او ګوردوارې يې ورنړولې. که د پښتنو او نورو وطندارانو خوا را څخه بده نه سي دا خبره په هيڅ توګه له انصافه ليري نه بولم چي هندوان او سيکهان تر موږ افغانانو په لس چنده وطن پاله دي.

يوه خوږه او نه هېرېدونکې خاطره به د خپلي ادعا د اثبات له پاره د مثال په توګه راوړم. په (١٩٩٧م.) کال کي، د طالبانو د حکومت په زمانه کي، کندهار ته تللی وم. د عيدګاه په دروازه کي کوم دوست ته منتظر وم چي يوه سړي، چي سپينه او توره ږيره يې درلوده او سپينه خولۍ يې پر سر وه، په غېږ کي ونيولم. ويل يې ودي پېژندلم؟ ما ويل نه. ويل يې زه ډاکټر رېګناټ يم. له سره مي بيرته په غېږ کي ونيوی او څو ځله مي مچ کړ. دا بايد ووايم چي ډاکټر رېګناټ يو له هغو د ګوتو په شمېر ډاکټرانو څخه وو چي تر پايه له کندهاره مهاجر نه سو. د خلقيانو، پرچميانو، مجاهدينو او طالبانو ټولو وهل يې وخوړل. خلقيانو د مجاهدينو له زخميانو سره د مرستو له امله، مجاهدينو د خلقيانو سره د کارکولو په ګناه او طالبانو د ښځو د نبض کتلو او علاج کولو په ګناه وواهه.

سره له هغه چي تر اوسه مي د شعرونو لس مجموعې چاپ سوي او د کوه طور په نوم مجموعه مي لس ځله چاپ سوې ده او چي څوک مي پېژني نو د شاعر په نوم مي پېژني؛ خو ما پخپله تر پاخه عمر پوري له شعر ليکلو سره جدي علاقه نه درلوده. د " ورکه مېنه" په نوم لومړۍ مجموعه مي، د خپلو ملګرو په غوښتنه، زړه نازړه، په څلوېښت کلني کي او د "پايکوب" په نوم دوهمه مجموعه مي ان په شپږ څلوېښت کلني کي چاپ ته وسپارله. په داسي حال کي چي زموږ ځينو ځلميو شاعرانو ان په څوارلس کلني کي خپلي شعري

مجموعې چاپ ته سپارلي دي او د ځینو تنکیو زلمیو شعرونه خو دومره ښکلي وي چې زه یې له لوستلو سره هر دم ماشاءالله وایم.

په امریکا کې چې مې څه نظمونه لیکلي دي نو هغه یا په افغانستان کې د جنګ او بدو ورځو انعکاس او یا په امریکا کې د اوسېدونکو افغانانو او یا په عمومي صورت د امریکا د ټول چاپېریال په باب، چې ښایي زما سارایي طبیعت به نه ورته جوړېدی، منفي عکس العمل دی. په زیاتره شعرونو کې مې ناهیلي له ورایه ښکاره ده او د مایوسیت سیورې وربانديي خپور دی. که څه هم، په هغه نظم کې چې د غني خان د "جېلخانې خوب" په استقبال کې مې لیکلی دی، بشپړه امیداوري او خوشبیني ښکاري خو نور نظمونه مې هغسې نه دي.

خوب وینم عالمه که یې څوک راکړي مانه
وینم خپله مېنه زمانه پر زمانه....
خوب وینم رغېږي د کلو کلو رنځونه
ډک دي له مړونو واړه کلي لوی ښارونه
بیا په پښتنو پېغلو ښایسته دي ګودرونه
بیا رنځور احساس غواړي مستۍ ته بهانه
خوب وینم وطن دی ګل سرخ دی او جشنونه دي
مستو سخي وریځو اورولي سره ګلونه دي
پورته له ګلځانګو د مرغیو آوازونه دي
هېره په وصال کې د بېلتون ده افسانه...
ما یې تعبیر کړی دی دا خوب مې ریشتیا کېږي
نور د اولسونو د ښامار ستونی څیرېږي
زموږ ورو کې مېنه زموږ جونګړه آزادېږي



ګرځو به په غرونو کې سرشار او مستانه
خوب وینم عالمه که یې څوک راکړي مانه

زما خوب ریشتیا سو. د افغانستان څخه شوروي قواوي په تور مخ ووتلې. زموږ جونګړې آزادي ترلاسه کړه؛ خو په غرونو کې په سرشارو ګرځېدلو مو ارمان ونه خوت. د شوروي قواوو له وتلو او د هغوی د لاسپوڅي رژیم له نسکورېدلو سره پر هیواد باندې داسې پرله پسې آفتونه نازل سول چې، ښایي په لس هاوو کلونو نور هم، څوک د کرارۍ مخ ونه ویني. له افغانستان څخه د سرو لښکرو د وتلو څخه څه موده وروسته، د امریکا په پیسو او د امریکا او پاکستان په جاسوسي ادارو کې روزل سوي او پالل سوي مجاهد مشران، له خپلو ټولو بدماشانو، غلو او حرفه اي جنایتکارانو سره کابل او د افغانستان نورو ښارونو ته ننوتل او هغه کارونه یې وکړل چې د افغانستان په تاریخ کې یې تر دغه ګړیه سابقه نه درلوده. البته امریکا له افغانستان څخه لاس وانه خیست او څو کاله وروسته یې، له تروریزم سره د مبارزې په پلمه، پر دې بې دفاع هیواد باندې، د خپلو ټولو انډیوالانو او خپلو ټولو هر راز عصري وسلو سره، چې ځیني یې ښایي تر دغه وخته پورې په جنګونو کې استعمال سوي نه وې، یرغل وکړ؛ او دا یرغل تر اوسه پورې دوام لري.

د هغه شعر څخه چې په امریکا کې د خپل ژوند او محیط په باب مې لیکلی دی، زما ناهیلي په ښکاره معلومېږي؛ که څه هم چې ښایي د خپل چاپېریال په باب به مې یو څه احساساتي او زیاتره شاعرانه قضاوت کړی وي.

دلته اور د ژوندون نسته
د ساړه جهنم کور دی
دلته هر څه ایرې کېږي

د حیات په نامه ګور دی
دلته هر څه سودا کیږي
دلته هر څه بازاري دي
دلته ویني بیګانه دي
دلته میني ظاهري دي
زما د جګو غرو سندري
څوک یې نه سي اورېدلای
زما زیږه پښتنه ژبه
دلته نه سي ګړېدلای
دلته وژنم خپلي هیلي
بې لمبې سوځم ویلیږم
نه د چا د لاري مل یم
نه د چا مخ ته بلیږم
زما هغه جنت پردی سو
چي مي حوري ورستایلې
زما هغه کورګی تباه سو
چي کیسې به مي کولې ...

(ورکه مېنه شعر او ورکه مېنه کتاب)

زما په زیات وکم پنځوس کلنه شاعري کي، زما د نظم په سبک او مفکورا
کي چنداني تغییر نه دی لیده سوی او زه ویلای سم چي زما شعر هم زما د
خیالونو او فکر او هم د ګران وطن د پېښنو، چي زیاتره له غم او جنازو سرا
ملګري دي، انعکاس دی. ما تر ډېره وخته پوري نه غوښتل چي شعر لیکلو



ته ډېر وخت ورکړم او د دې خبري یو علت دا وو چي د شعرونو د خپرولو له پاره مي چنداني وسیله نه درلوده. کوم نظمونه چي مي په امریکا کي د اوسېدلو په لومړیو کلونو کي لیکلي دي، یوازي هغه وخت د لوستونکو لاسته ورغلي دي چي د کتابونو په شکل چاپ سوي دي. ما خپل نثرونه، چي زیاتره به یې سیاسي رنګ درلود، د اولسمل صاحب اخبار ته، چي په پېښور کي خپرېدی، لېږل. او کله چي اولسمل صاحب په پېښور کي بندي سو او اخبار یې بند سو نو پر ما باندي دا وسیله هم ودرېده او تر هغه وخته چي اولسمل صاحب خپل اخبار په ناروې کي له سره پیل کړی نه وو زما لیکني ګواکي زما په ذهن کي پاته کېدلې او ورکېدلې. که څه هم چي اولسمل صاحب زما ټول مضامین ټکي په ټکي او پرته له لاس وهني راته خپرول خو د هغه د اخبار یوه لویه نیمګړتیا، زما له پاره، دا وه چي اخبار په یوه میاشت کي یو ځل خپرېدی او زما مضامین، چي زیاتره به د ورځي د موضوعاتو په باب وه، د اخبار تر خپرېدلو پوري به تر وخت تېر وه. اولسمل صاحب، کلونه وروسته، د خپل اخبار د بشپړ کلکسیون چاپولو ته ملا وتړله. هغه د خپل اخبار ځیني مضامین، تقریبا اته کاله مخکي په دوه جلده کي چاپ کړي ول. په هغو کي زما د امریکایي جهاد په نوم مضامین چاپ سوي وه. هغه دا ځل د هغو دوو ټوکو څخه پاته نور مضامین په څلور ټوکه کي چاپ کړل. په کار خو دا وه چي زما څه باندي شل مضامین، چي هم د وخت د پېښنو انعکاس وو او هم زما د فکري سیر یو ډول تاریخ وو، په دغو څلورو ټوکو کي چاپ سوي وای. خو پنځپله اولسمل صاحب، چي ډېر سخت ناروغ دی، له ناروې څخه ټلیفون راته کړی وو؛ حبیب الله رفیع ته یې، چي د ده د کتابونو د چاپولو مسوولیت یې درلود، ډېر سخت بد رد ویل او راته ویې ویل چي حبیب الله رفیع د اخبار له کلکسیون څخه زما ټول مضامین او شعرونه، تش زما له نامه

هم نه دی چاپ کړی.

سره د حساسیت له مخي، ایستلي او یو یې ورځي په زلمیانو مي کست کېږي چي خپله پارچه شعر او مضمون په د نني ورځي په زلمیانو مي کست کېږي چي خپله پارچه شعر او مضمون په هماغه ورځ او حتی هماغه ګړي په فیسبوک، ویب سایټونو، راډیوګانو او ټلوېزیونونو کي خپرولای سي او هیڅ شعر او لیکنه یې زړېدلو ته نه پاتېږي.

## په امریکا کي د افغاني منورینو سیاسي هلي ځلي:

لکه څرنګه چي په پاکستان کي ضیاءالحق د مجاهدینو تنظیمونه پر اوو ډلو ووېشل او بل چا ته یې د سیاسي فعالیت او تنظیم جوړولو اجازه نه ورکوله؛ دغه راز باسوادو او نیم با سوادو کسانو د این جي او یا غیر حکومتي موسسو په نوم په لسهاوو دفترونه، یا بهتره ووایو دوکانونه، پرانیستل؛ چي هم یې خپلي ګټي پکښي وکړې او هم یې د فاسدو خارجیانو جېبونه ډک کړل. دغه راز په امریکا کي هم، په پاکستان او اېران کي د اوسېدونکو افغانانو په پیروی سیاسي دوکانونه پرانیستل سول. چا د حزب اسلامي، چا د جمعیت او چا د پاچا له پاره فعالیتونه پیل کړل. د امریکا سناتورانو، د کانګریس غړو او عالي رتبه حکومتي مقاماتو او جنرالانو هم په دې تاوده تنور کي خپله ونډه واخیستله او د یوې او بلې ډلې د ملاتړ له لاري یې خپله سیاسي غریبي روانه کړې وه. په امریکا کي دغه اوسېدونکي سیاسیون، چي ما د امریکایي مجاهدینو نوم ورکړ، په یقین سره، په اېران او پاکستان کي تر مهاجرو او د افغانستان تر مجاهدو افغانانو ډېر تاوده وه او د هغوی طرفدار سناتوران او د کانګریس غړي، چي ما د مجاهدو امریکایانو نوم ورکړی وو، تر خپلو افغانو انډیوالانو ډېر توند او احساساتي ول. یو سناتور مي ځو ځله ولیدی چي د حضرت په نوم یو وردګ هلک یې، چي د شوروي قواوو په بمباري کي یې پښې ګوډې سوي وې، د



کامرو مخي ته په اوږو کي سپور ګرځاوه؛ او خولې به وریاندې را ماتي وې. د افغانانو او امریکایانو دې ګډ سیاسي تجارت او ریاکاریو ماته د لیکني له پاره ډېري ښې طرحي را کولې او د امریکایي جهاد په نوم یوه طنزیه سلسله مي پیل کړه. په دې طنزیه مقالو کي مي د امریکایي مجاهدینو پر شجاعت او زړه ورتیا، د هغوی پر وطن پالني، سیاسي دریځونو او بحثونو، سفارتونو او خارجي نمایندګیو ته د مجاهدینو او مهاجرینو له پاره د مرستو د غونډولو او له هغو مرستو څخه د سخاوتمندانه ګټي اخیستلو، د ګران وطن افغانستان د ژغورني او استقلال تر لاسه کولو لپاره په بهر کي د موقتي حکومتونو او لویو جرګو د جوړولو او د هغو لپاره د خارجي مرستو د جلبولو په باب بحثونه کړي وه. د دې سلسلې درې څلور مضامین د اولسمل صاحب په اخبار کي چاپ سول. وروسته لکه چي د امریکایي مجاهدینو ځینو مشرانو اولسمل ته ګیله کړې او له هغه څخه یې غوښتنه کړې وه چي دا سلسله بنده کړي. اولسمل صاحب هم زما څخه غوښتنه وکړه چي که پر کومه بله موضوع باندي لیکني وکړم نو بهتره به وي.

ما په هغو شپو ورځو کي، د امریکایي مجاهدینو د ریاکارۍ او منافقت په ارتباط پریوې خاطرې او د سترګو لیدلي حال باندي کار کاوه؛ خو څرنګه چي د اولسمل صاحب له اخبار څخه پرته مي، د خپرولو لپاره، بل ځای نه ورته درلود نو لیکل مي پرېښودل. اوس ارمان کوم چي وایم کشکي مي لیکلې وای.

کیسه داسي وه چي د ۱۹۸۴ یا ۸۵ په شاوخوا کي، چي له افغانستان او پاکستان څخه لا ډېرو زیاتو مجاهدینو امریکا ته سفرونه نه وه کړي او په امریکا کي اوسېدونکو افغانانو د مجاهدینو خو لا پرېږده چي د مجاهدینو د نیږدې او لیري خپلوانو هم ډېر قدر کاوه، له کندهار څخه د مولوي خالص

د حزب اسلامي قوماندان عبدالرازق واشنګټن ته راغی. د ویرجینیا افغانانو د یوه کالج په تالار کي د هرکلي غونډه ورته ونیوله. قوماندان عبدالرازق په ریښتیا هم بد سړی نه وو او موږ یې وروسته هم د جنایاتو کیسې نه دي اورېدلي. البته د نورو قوماندانو په څېر ساده سړی وو او ساده خبري یې کولې.

د غونډي نورو افغانانو به هغه ته د نیژدې کېدلو او خپل ځان د مجاهدینو طرفدار او حتی مجاهد ښودلو لپاره هرڅه کړي وي. خو زما لپاره د حقوقو پوهنځي د یوه پخواني استاد پر اوږه باندي بخملي جای نماز د ډېر په زړه پوري، د خندا او حتی د زړه سوي وړ ښکاره سو. استاد، چي موږ ټولو د یوه پوه سړي په سترګه ورته کتل، نه په پخوا کي چا پر لمانځه لیدلی وو او نه بیا چا وروسته لیدلی دی، خو په هغه ورځ له لوکس دریشی سره پر اوږه باندي له جای نماز سره، چي هر څوک پوهېدی چي څرګنده ریاکاري ده، ډېر بد او د زړه سوي ښکاریدی. قوماندان عبدالرازق ده ته نه اوس او نه په اینده کي ګټه او تاوان رسولای سوای. نه پوهېږم چي د استاد په زړه کي به څه وه خو زما ډېر زړه وربانديوسو.

## زما سیاسي دریځ او لیکني:

پاکستان ته له مهاجر کېدلو سره مي، په هغه هیواد کي د مجاهدینو د تنظیمونو د مشرانو تر منځ د مرګانیو اختلافاتو، د تنظیمونو د ځینو مشرانو د بشري جنایتونو او بېرحمیو او د پاکستاني خوردضابطانو د بشپړ اطاعت او فرمان وړلو په باب دونه کیسې واورېدلې او دونه پېښې مي په سترګو ولیدلې چي د امیر او قوماندان، په تېره بیا د مهاجرینو په کمپونو کي د سرېراهانو، چي له یوې مخې غله ول، له نامه سره مي حساسیت پیدا



کړ. په پاکستان کي، د مجاهدینو د ټولو تنظیمونو په دفترونو کي، له واړه دفتر څخه نیولې د امیر تر دفتر او کوړ پوري، دا آیت شریف لیکلی وو چي "ټول د خدای تعالی رسۍ ټینګه ونیسئ او مه بې اتفاقه کېږئ". خو په عمل کي، له واړه مجاهد څخه نیولې تر لوی قوماندان او امیر پوري، ټولو د بې اتفاقۍ اچولو له پاره کار کاوه او حتی ځینو لویو مشرانو خو سلام هم نه سره کاوه او یوه بل ته یې خاین ویل. یو ځل خو یې په کعبه شریف کي پر قرآن باندي لاسلیکونه وکړل او د لاسلیکونو په ماښام یې د مکې معظمې په ښار کي جنګونه سره کړي وه. ځینو آوازو خو لا ویل چي د حزب اسلامي مشر مولوی یونس خالص خو په هغه شپه پر سیاف باندي دونه په قار سوی وو چي د تف دانۍ واری یې وربانديکړی وو. او کله چي په افغانستان کي قدرت ته ورسېدل پر خپلو وطنوالو یې هغه حالات راوستل چي افغانستان په خپل ټول تاریخ کي نه وه لیدلي. زه نه پوهېږم چي مشران یې، په تېره بیا رسول سیاف او ګلبدین، لا ولي د مجاهد په نوم نه شرمېږي او لا څرنګه په دې نامه افتخار کوي. زه که د خپل ژوند په باب څه لیکم هغه به د همدغو او نورو پېښو په مقابل کي، د یوه لیکوال او شاعر په حیث، زما لیکني او قلمي عکس العمل وي. ځکه چي زه پخپله د افغانستان په وروستیو پېښو کي، چي زما د ژوند کیسه ده، نور چنداني رول نه لرم او شکر دی چي نه یې لرم.

سیاسیون هر کار کوي او د هیڅ راز وعدې ماتولو، وینو تویولو، پر حقوقو تېري کولو او هیڅ ناروا عمل څخه شرم نه لري. ناپولیون یو وخت ویلي وه چي انسانان تصویرونه دي او یوازي د ځای او موقعیت له تغییر سره ارزښت او اهمیت پیدا کوي. که د ناپولیون له پاره انسانانو بل ارزښت نه درلود او د تصویرونو په څېر یې له یوه ځایه بل ځای ته کول نو دا فورمول

د نړۍ د سیاست او سیاسیونو په ټول تاریخ کې چالان او روان دی. ناپولیون قدرت ته د رسېدلو په لاره کې له هیڅ عمل څخه مخ نه ګرځاوه او هیڅ داسې کار نه وو چې د ده په نظر دې بد ورغلی وای. هغه خپل هدف ته د رسېدلو له پاره د انسانانو د وینو تویول او د کلیو او ښارونو تباه کول ډېر عادي کار او حتی لازم باله. ده په ډېره بې پروایي ویل چې کله زه او رم چې وایي پلاني پاچا مهربانه زړه درلود نو زه یقین لرم چې د هغه واکمني به ناکامۍ ته نیژدې وه. البته زموږ جهادي مشران څکه د نړۍ تر ټولو سیاسیونو او مستبدینو کرغېړن او بېرحمه ول چې پخپله اراده یې حرکت هم نه کاوه او ټول د بل غلامان ول. دوی د ناپولیون په څېر، له نورو انسانانو څخه د تصویرونو په څېر کار نه اخیست او نه یې د اخیستلو توان درلود، بلکه د دوی بادارانو دوی د تصویرونو په څېر استعمالول.

که څه هم چې له وطن او پراخو اولسونو سره لومړی ښکاره ملي خیانت، احمدشاه مسعود، په (۱۹۸۲م.) کال کې، هغه وخت وکړ چې له شوروي اتحاد سره یې د سالنګ د لویې ستراتیژیکې لارې د پرانیستو پرېښودلو موافقه وکړه او په دې توګه یې پنجشیر او د هغه شاوخوا سیمې د شوروي د سرو قواوو له حملو څخه وژغورلې؛ خو په عوض کې یې ټول افغانستان، په تېره بیا جنوبي، ختیځې او جنوب لوېدیځې پښتنې سیمې د هغوی حملو ته ور پرېښودلې. خو له افغانستان څخه د شوروي اتحاد د قواوو تر وتلو پورې، چې چا یې تصور هم نه سو کولای، د مجاهدینو مشرانو ته خلکو د خپلو ملي رهبرانو په سترګه کتل او د هغوی نومونه په ملي مقدساتو کې راتلل. د کال (۱۹۸۸م.) د فبروري په میاشت کې، له افغانستان څخه د شوروي قواوو له وتلو څخه وروسته، چې مجاهدینو به ویل په یوه ورځ کې به کابل نیسي، په جلال آباد کې د هغوی ګډو قواوو، چې پاکستاني پوځي



مشاورین هم ورسره وه، ډېره شرموونکې ماته وخوړه او د دوی ټولې لاپې شاپې د اوبو د سر کرښې سوې. د مجاهدینو مشران، چې د پاکستاني بادارانو په امریې موقتي اتحاد سره کړی وو، یو ځل بیا سره بې اتفاقه سوه او یوه بل ته یې د ملامتۍ ګوتې ونیولې.

تر هغه ځایه چې زما په یادیږي، په همدغه کال، چې زه په پېښور کې وم، د کوټې څخه د ملایانو یوه لویه ډله، چې مشري یې عبدالله زاکري کوله، پېښور ته راغله. داسې ښکاري چې د طالبانو د منظم تحریک زړې له دغه ځایه څخه ایښودل سوي وي. عبدالله زاکري، چې یو خوله ور او ضمنا ډېر تاریک فکره ملا وو، په کوټه او شاوخوا کې د ملایانو او طالبانو څو غونډې کړې وې او د مجاهدینو د تنظیمونو تر منځ له بې اتفاقیو څخه یې شکایتونه کړي وه. د ننګرهار اوسني والي شاه محمود میاخېل. چې په هغه وخت کې په پېښور کې د امریکا ږغ راډیو محلي خبریال وو، ماته وویل چې سبا د پبی په کمپ کې د ملایانو یوه ستره غونډه جوړیږي. زه، د راډیو د خبریال په حیث، په سبا سهار له میاخیل سره یو ځای د غونډې ځای ته، چې له پېښور څخه یو څه لیرې وو، ورغلو. غونډه زموږ تر رسېدلو مخکې پیل سوې وه او عبدالله زاکري تازه د خبرو نوبت اخیستی وو. د خبرو سر او پای یې نه معلومېدی. زیاتره خبرې یې د مجاهدینو مشرانو ته متوجه وې. په ډېره چالاکۍ یې هغوی د عوامو په خوله، په راز راز نومونو، انتقادول او بیا به یې هغه انتقادونه، په ډېرو نامعقولو دلایلو، ردول. ملایانو په دونه علاقه غوږ ورته نیولی وو چې ته وا اسماني خبرې یې کولې؛ زما په عقیده یې هیڅ نه ویل هسې لګیا وو. هر ځل چې به یې وویل چې خبرې را څخه اوږدې سوې نو یوه ملا به ورږغ کړه چې ښې خبرې چې هر څو مره اوږدې سي ښې دي. په دغه وخت کې یې زما خواته، چې لوڅ سر ناست وم، را پام سو. یو ځل

یې آواز ته زور ورکړ ویل یې څه سول هغه مکتبیان حرامیان چې د جهاد په وخت کې په کورونو کې بېغمه ناست وه او یا یې له حکومت سره کار کاوه او اوس چې زموږ باغونه پر حصول راغلي دي. چا سپین انګور، چا ژړ انګور او چا سره انګور را ایستلي دي دوی وایي دا مېوه ستاسي د خوړلو نه ده دا باید موږ وخورو. زه وایم نه! موږ چې د مېوې تر وخته پوري د خپل باغ روزنه کوله نو مېوه یې هم خوړلای سو او ستاسي د خوراک نه ده. د غونډي د ټولو ګډون والو ملایانو توجه زما خواته را واوښته او شاه محمود میاخېل ته مي وویل چې هسي نه څوک مي ونه ډبوي ځوبه.

له غونډي څخه ژر را ووتلو او پېښور ته راغلو. دوې درې ورځې وروسته د جلال الدین حقاني کور ته ورغلو. هلته دوه تنه خارجیان هم ناست ول، چې اروپاییان معلومېدل. ما جلال الدین حقاني ته د غونډې کیسه وکړه او ګیله مي ورته وکړه چې زاکري صاحب ډېره بېځایه حمله راباندي وکړه. حقاني ویل تا به ورته ویلي وای چې څه سوه هغه ملایان حرامیان (دا الفاظ د حقاني دي) چې ویل به یې د شهید د وینو د مشکو بوی ځي خو چې د شهادت وخت راغی ټول په حجرو کې پټ سول.

عبدالله زاکري، چې د پاکستاني مقاماتو سره په ډېر ژور ارتباط درلودلو مشهور وو، د طالبانو په وخت کې د هغوی د روحاني مشر حیثیت درلود او د طالبانو د نظام له نسکورېدلو څخه وروسته په کوټه کې ووژل سو.

لکه څرنګه چې په پاکستان کې د مجاهدینو مشرانو یو بل تر غاړې سره نیولي وه؛ په کابل کې پرچمیان او خلقیان هم تر هغوی پاته نه ول او لېترلېږه پر شپږو اوو ډلو وېشل سوي ول. په دواړو غاړو کې، دا اختلافات په خپل زور سره روان وه چې په کابل او پېښور کې یوه داسي نوې ډرامه پیل سوه چې نه یې چا په افغانستان او نه یې په پاکستان کې تصور کولای سوای. د



(۱۹۸۹م.) کال د مارچ پر شپږمه په کابل کې د کمونیستي رژیم د دفاع وزیر جنرال شهنواز تني د حکومت پر ضد په یوه خونړۍ کودتا لاس پوري کړ. کودتاوي خو هر ځای کېږي؛ خو خبره هغه وخت رسوایي ته ووتله چې د حزب اسلامي امیر ګلبدین حکمتیار او شهنواز تني لاس سره یو کړ او ټول افغانان یې هک پک کړل. ما د مجاهد اولس د (۱۳۶۹ش.) لمریز کال د حمل او ثور په (۱۴۷) مه او (۱۴۸) مه ګڼه کې "د پېښور سیاسي لوبي" او "اوس به څه چل کېږي؟" تر عنوانونو لاندي د افغانستان د دې تاریخي ډرامې په باب مضامین ولیکل. مرحوم اولسمل د (۲۰۱۹م.) کال د جولای په میاشت کې له خپل وفات څخه لږ مخکي د خپل اخبار د مضامینو یو لوی کلکسیون په څلور جلده کې چاپ کړ او په هغو کې یې زما ټول مضامین ځای کړي وه. خو څرنګه چې اولسمل صاحب پخپله ناروغ وو نو د چاپ چاري یې ټولی حبیب الله رفیع ته سپارلي وې او هغه هم زما ټول مضامین له کتابه ایستلي وه. مرحوم اولسمل، له وفات څخه لږ مخکي، له ناروې څخه دوه درې ځله ټلیفون راته وکړ او په کتاب کې زما د مضامینو د نه چاپېدلو عذر یې وغوښت. یو ځل یې په ژړه غوني آواز راته وویل چې دی هیڅ نه سي کولای ځکه چې دا کار حبیب الله رفیع کړی دی او څرنګه چې دی ناروغ دی او ژر کابل ته هم نه سي تللای نو بې وسه دی. ما ورته وویل چې زه خپل مدعي پېژنم او که ته کابل ته ولاړ سې هم کار له کاره تېر دی. له نېکه مرغه چې زما سره د اخبار یو څو ګڼې چې زما دوست محترم حفیظ الله کرزي را سپارلي دي موجودی دي او په هغو کې زما څلور پنځه مضمونونه خوندي دي.

د پېښور سیاسي لوبي مضمون کې مي لیکلي وه چې یو وخت مجاهدینو د کابل کندهار پر لویه لاره باندي، په بس موټر کې سپور، یو محصل په دې ګناه وواژه چې په جیب کې یې د تشناب کاغذ درلودی او د مجاهدینو

قوماندان ورته ويلي وه چي که ته خلقی نه يې نو په تشناب کي له کاغذ څخه څرنګه کار اخلې. مګر اوس د هغو مجاهدينو امير د خلقيانو د دفاع له وزير سره، چي د مجاهدينو په نزد په څلور کتابه کافر وو، ايتلاف او اتحاد کوي، يو بل ته ورور وايي، په يوه جومات کي لمونځونه سره کوي او هيڅوک هيڅ نه وايي.

" ...دا په زړه پوري خبره ده چي حکمتيار د خپل مسلمان ورور، د خپل مجاهد ورور او بيا د قاضي امين وقاد په څېر يوه مجاهد سره، چي مخکي د ده مرستيال او د سنګر ملګری وو، يو ګام څنګ پر څنګ نه سي تللای مګر د يوه ملحد جنرال سره متحد حکومت جوړوي او شپږ مياشتي وروسته انتخابات ورسره کوي. له دې خبري څخه فقط يوه نتيجه راوزي او هغه دا چي دا فقط د کابل د ارګ د نيولو لېوتنتوب دی ... کله چي په پېښور کي په يوه خبري کنفرانس کي له حکمتيار څخه پوښتنه وسوه چي که خلقيان د دوی په ملاتړ قدرت ته ورسېږي نو بيا به د دوی او خلقيانو ترمنځ د اختلافاتو او تضاد مسله څنګه کېږي؛ ځکه چي هغوی خو کمونيستان دي. ښاغلي حکمتيار په جواب کي ورته وويل چي د خلقيانو ياغي افسرانو له ده سره وعده کړې ده چي په افغانستان کي به اسلامي حکومت ورسره جوړوي. داسي ښکاري چي حکمتيار صاحب د قدرت نشې دومره مست کړی دی چي اوتي بوتي وايي. اسلامي حکومت د کمونيستانو په حمايه!! دا داسي خبره ده چي يوازي د قدرت د سياست په قاموسونو کي پيدا کېدلای سي او زموږ معصوم خلک لا اوس هم د دغه راز اصطلاحاتو سره بلد نه دي. که چېري قضيې ته له دغه اړخه وګورو نو حکمتيار صاحب اوتي بوتي نه وايي. هغه تر هرچا هوښيار دی. هغه تصميم نيولی دی چي په هره بيه کېږي يو ځل ارګ ته ننوزي. په دې لاره کي چي هرڅوک د ده خنډ دی هغه د ده دښمن دی او هر



څوک چي مرسته ورسره کوي هغه يې ملګری دی... حکمتيار صاحب څه موده مخکي د مجاهدينو د يوه مخالف تنظيم، چي ده هر وخت ويلي دي له هغوی سره جزيي اختلاف لري، (۳۱) تنه قوماندانان اعدام کړل . که حکمتيار د جزيي اختلاف په وجه (۳۱) تنه اعدام ته سپاري نو حق تعالی دي د هغه له ګلی اختلاف څخه نجات راکړي. خبري چي هر ډول وي هغسي به وي. خو اوس هغه حکمتيار چي مجاهدينو به يې خلک د تشناب د کاغذ درلودلو په ګناه وژل او اعداموليو نن له خلقي جنرالانو سره يو ځای سوی او ښه خبره خو لا دا ده چي هغوی هم په افغانستان کي اسلامي انقلاب او د اسلامي حکومت ټينګول منلي دي" د پېښور سياسي لوبي، پورته ذکر سوی مضمون.

اوس به څه چل کېږي؟ " وايي په هغه شپه چي روسانو ببرک کارمل تر غوږ نيولی افغانستان ته راووست او د تاشکند راډيو يې د بري په افتخار د اتڼ نغمې ږغولې؛ په دغه وخت کي د هرات خلقي والي د بادغيس والي ته، چي هغه هم د ده په څېر وارخطا وو، په ټليفون کي وويل بچيه! اوس يې ولاکه خوند واخلې چي بريژنيف پخپله اشرار سو. وايم د مارچ پر شپږمه او اوومه چي راډيوګانو د شهنواز تني او حکمتيار د اتحاد خبري کولې او شهنواز تني هم د حکمتيار د مرکزونو څخه خپل پيغام مخابره کړ نو ډېرو مجاهدينو به يو بل ته ويلي وي چي اوس يې ولاکه خوند واخلې چي حکمتيار خلقي سو"

په هغه وخت کي د امريکا مطبوعاتو، په تېره بيا واشنګټن پوسټ، واشنګټن ټايمز او نيويارک ټايمز ورځپاڼو د دغي کودتا يا سياسي دسيسې په باب عجيب او غريب رپوټونه خپاره کړل. ما د ځينو رپوټونو خلاصه ترجمه او په مجاهد ولس اخبار کي مو نشر ته وسپارل؛ مګر هيڅا

هيڅ هم ونه ويل او ډېرو دوستانو خو لا راته وويل چې جهاني ځديې کوي، سر دي نه خوږېږي داغ ولي پرې ايږدې. د واشنګټن پوسټ ورځپاڼې د (۱۹۸۹م.) کال د مارچ پر اووه لسمه په يوه رپوټ کې په ځرګنده وليکل چې د مجاهدينو مشران او قوماندانان پر حکمتيار باندې بدګومانه دي او هغه د پاکستان د پوځي استخباراتو جاسوس بولي؛ ځکه يې نو له هغه سره د تني په کودتا کې برخه وانه خيستله. خبره دې حد ته ورسېدله چې د واشنګټن ټايمز ورځپاڼې د هماغه کال د مارچ پر يوويشتمه د امريکا د کانګريس د يوې تحقيقاتي کمېټې رپوټ خپور کړ او په هغه کې يې حکمتيار صاحب، د پاکستان د پوځي استخباراتو نه، بلکه د شوروي اتحاد او کابل د رژيم جاسوس معرفي کړ. واشنګټن ټايمز ورځپاڼې وليکل چې د مجاهدينو دغه اخواني مشر، چې د امريکا د وسلو ډېره زياته برخه يې ترلاسه کړې ده، پرله پسې د شوروي او کابل د کمونيستي مقاماتو سره همکاري کړې ده او لا ښايي د هغوی جاسوس وي. دغې ورځپاڼې د همدغه رپوټ په حواله وليکل داسې ډېره پېښه سوې ده چې ښاغلي حکمتيار او د هغه پيروانو کله، د شوروي او د کابل له پوليسو سره لاس يو کړی او د مجاهدينو اعتدال خوښونکې ډلې يې بې ثباته کړې او خيانت يې ورسره کړی دی. له اوس به څه چل کېږي؟ مضمون څخه.

څو مياشتې وروسته، چې د پېښور او اسلام آباد په لاروکوڅو کې د شهنواز تني او نيازمحمد مومند د ملګرو تګ راتګ زيات او يو څه عادي سو او له هغوی سره د ګلبدين حکمتيار ملګري هم وليدل سول نو ما د پېښور د اتم تنظيم په نوم يو طنزيه مضمون وليکی، چې په هغه وخت کې، تريوه اندازې، ښه استقبال سو. دا مضمون د مجاهد اولس د (۱۳۶۹ش.) کال د جوزا د مياشتې د لومړۍ نېټې په ګڼه کې چاپ سو. د مضمون په يوه برخه



کې راغلي دي." ... د پېښور مهاجرينو او مجاهدينو په دې څه باندي دوولس کاله کې د ول د ول ناخوالي ليدلي وې. چا د سربراه په نوم، چا د امير د نازولو په نوم، چا د کمپ کماندر په نوم او چا هم پخپله د جهاد د ټيکه دار او امير په نوم کړولي ول. خپلو ته يې ځکه څه نه سو ويلای چې هغوی يا علماء او يا اميران ول. او پاکستانيانو ته خو ځکه څه نه سو ويل کېدلای چې هغوی خو انصار ول او انصارو ته څه ويل او يا له هغوی سره مخالفت کول د جهاد په قاموس کې د کفر معنی درلوده.

په هر صورت، مهاجرينو او مجاهدينو د خپلو اميرانو او د هغوی د بادارانو د ناکردو او تېريو سره عادت نيولی وو او نور چې هر څه بد ورسره کېدل هغه يې خپل حق باله. خو دا غريبان يوازې هغه وخت سخت وارخطا سول چې د بريتورو مجاهدينو ټولی يې وليدلې. تر اوسه پوري چې د خلقي او مجاهد اصلي مشخصه ږيره او برېت وه هغه خبره ګډه وډه سوه. د پېښور په کمپونو او د افغانستان په جبهو کې د تني برېتور مجاهدين او د حکمتيار ږيرور خلقيان پيدا سول.

د جهاد په دې دوولس کلن تاريخ کي خبره دا سې وه چې مجاهدينو او مهاجرينو به دښمن ته خلقي او دوست ته مسلمان وايه ( پرچميان چا په سيلانو کې نه بلل ) حکمتيار صاحب نوې نخره را وايستله. د افغانستان د جنګ د جنايتکارانو لويي ټولی ته يې نه يوازې برأت ورکړ بلکه په افغانستان کې يې د اسلامي انقلاب د بريالي کولو په منظور اوږه پر اوږه ورسره ودرول او جنرال شهنواز تني او د خلقيانو د حزب د سياسي دفتر غړي نيازمحمد مومند په پوره ايمانداری او منتهی صداقت اعلان وکړ چې دوی بېله شکه خلقيان ول مګر هيڅ وخت کمونيستان نه ول او د خپلو ميندو او پلرونو په شېر مسلمانان دي... "

د افغانانو عادت داسي راغلی دی چي کله د ځان په باب څه لیکي نو کوښښ کوي چي ځان د ټولو یا مهمو پېښو قهرمان معرفي کړي او خپل لاسونه له هري خرابۍ څخه پاک ښکاره کړي. ما په داسي سیاسي کارنامه کي برخه نه ده درلودلې چي د قهرمانۍ دعوه وکړم. خو د یوه لیکوال او شاعر په حیث مي، د افغانستان په بحراني حالاتو کي هغه څه، د نثر او شعر په ژبه، په زغرده او سپین لیکلي دي چي په هغه وخت کي به یې یوازي د ګوتو په شمېر لیکوالانو لیکلو ته زړه ښه کړی وي.

په امریکا ږغ راډیو کي، زموږ یوه پېښوري همکار سلطان بهادر یوسفزي، چي څه باندي شل کاله تر ما مشر وو، یوه ورځ راته وویل چي جهاني ته خو هسي سندا ته سرینده وهې. ما ویل څرنګه؟ ده ویل زه خو افغاني اخبارونه نه لولم؛ خو په دفتر کي همکاران ټول لوستي او رسېدلي کسان دي. ما خو له یوه تن څخه یوه ورځ هم وانه ورېدل چي ستا کوم مضمون یې یا ستایلی او یا بد بللی وي. نو چي لوستي کسان او ستاسي په اصطلاح منورین ستا مضمون ونه لولي او یا هیڅ ډول عکس العمل ونه ښیي نو تر نالوستو خو ستا ږغ نه رسېږي. زه ګومان کوم چي ته هسي ځان ته دښمنان ډېروې، نور کوم کار نه کوې. ما ویل یوسفزی صاحب د یوه افغان لیکوال په حیث، زما وطن پر ما حق لري چي حقایق یې تر غوږونو ورسوم؛ څوک چي یې نه اوري نه به یې اوري.

حافظ وظیفهء تو دعا گفتن است و بس
در بند آن مباش که نشنید یا شنید

د (۱۹۸۹م.) کال د جنوري یا فبروري میاشت به وه چي یوه شپه د پېښور په برتهکال کي د اربابانو په کور کي واده وو. زه دا وخت له امریکا څخه د څلورو میاشتو له پاره پېښور ته تللی وم. رسول امین، حکیم تنیوال او یو بل



تن چي اوس مي هېر دی، په یوه لویه خېمه کي، د افغان مهاجرینو له پاره د کمیشنر، ارباب دوست محمد سره ولاړ وو. هغه، د یوه پښتانه او مهمند په حیث، له افغانانو سره د خواخوږۍ څرګندولو په توګه، د خپلو نورو خبرو تر څنګ وویل چي د پاکستان حکومت پر کابل باندي د هر راکټ وارکېدلو په بدل کي مجاهدینو ته پنځه زره روپۍ ورکوي. د ارباب دوست محمد د هغې شپې خبري، چي ټولي د مجاهدینو د قوماندانانو او امیرانو د غلامۍ او پاکستاني مقاماتو د نوکرۍ په باب وې، که هر چا اورېدلي وای نو د مجاهدینو له ټولو مشرانو او لویو قوماندانانو څخه به یې په زړه کي ډېره ژوره کرکه او نفرت پیدا سوی وای.

له دې شپې څخه دوه درې کاله وروسته، یوه ورځ پر کابل باندي د راکټونو په یوه مرګانۍ حمله کي څه د پاسه دېرش تنه بېګناه انسانان ووژل سول او څه د پاسه سل تنه ټپیان سول... د کابل د شاوخوا سیمو د عملیاتو له پاره د مجاهدینو مشهور قوماندان عبدالحق په خپله یوه مرکه کي په خورا بې پروایي وویل چي بلې دا حمله مجاهدینو کړې ده او علت یې دا دی چي یوه هفته مخکي د کابل حکومت د وردګو پر ولایت باندي په بمباري کي ډېر زيات بېګناه انسانان وژلي دي. ما په هغه ورځ "له جنګ څخه تر جنایت پوري" یو مضمون ولیکی او د مجاهد اولس په (۱۷۵) یمه ګڼه کي په داسي ورځو کي خپور سو چي میاشت یوه نیمه وروسته د کابل د حکومت واک د مجاهدینو لاسته ولوېدی.

د پورتني مضمون په یوه برخه کي راغلي وه "په داسي حال کي چي په نړۍ کي د ګوندونو او ډلو دریځونه، د شرایطو له تغییرېدلو سره تغییر کوی زموږ افغانانو دریځونه هم باید د پېښو سره تغییر ومني. اوس چي د کابل رژیم کمونیزم او چپي اصلاحات رد کړي دي نو زموږ دریځ او له حکومت

سره سلوک هم باید یو څه تغییر وکړي. او کله چې د مجاهدینو د ځینو لویو مشرانو او لویو قوماندانانو جنایتونه وینو نو باید چې تر ابده پورې خاموش پاته نه سو. هغوی به ښارونه چور وي، مونږ به یې لا هم محترم مشران او قوماندانان بولو. هغوی به د خپلو پښتنو وروڼو ښځې بې عزته کوي او مونږ به لا هم د وطن د سرنوشت په ټاکلو کې د لومړي توب حق ورکوو. هغوی به پر ښارونو باندې راکټونه اوروي او زمونږ بېګناه وروڼه به وژني او مونږ به لا هم د هغوی د سردعاکوو او د هیواد د ننګ او ناموس ساتندویان به یې بولو.

... یو ځل بیا وایم چې د کابل د قهري سقوط په نتیجه کې به په افغانستان کې داسې اغتشاش او ښورښونه منځته راسي چې کرارول به یې نه د روس او نه د امریکا په وس پوره وي. د کابل له قهري سقوط سره په افغانستان کې داسې داخلي جنګونه او ویني تویول پیل کېږي چې د افغانستان په تاریخ کې یې ساری نه دی لیده سوی. دا داخلي جنګ د هیچا په ګټه نه دی او زه فکر نه کوم چې هیڅ ګاونډی هیواد به دغه راز جنګ غواړي... د دغه راز تباه کونکي جنګ مخنیوی یوازې د افغانانو کار دی. او په دې لاره کې لومړی ګام په خپلو دریځونو او نظرونو کې تغییر راوستل دي. چې تر څو مو د پېښور سرتمبه مشران او قوماندانان تجرید کړي نه وي؛ چې تر څو بې اتفاقي او د قدرت پر سر جنګونو ته مو خیانت ویلی نه وی؛ چې تر څو مو د کابل پر بېګناه خلکو باندې د راکټونو باران جنایت بللی نه وي، افغانستان ته هر راز حالت راتلونکی دی؛ او په هغه حالت کې نو د مسوولیت قبولول او ردول کومه ګټه نه لري. زه وایم اوس هم وخت لرو چې لومړی ګام واخلو او کله چې مو دغه تریخ غوړپ تر ستوني تېر کړ او دا لومړی ګام مو پورته کړ بیا نو دوهم او دریم ګام پورته کولای او د ژغورني د لارې په فکر کې کېدلای



سو. نور د دې وخت تېر دی چې بیا هم په ایران او پاکستان کې د مجاهدینو د ډېره مشرانو ترمنځ وحدت ته منتظر سو. هغوی چې د شوروي د سرولښکرو په څېر قوي دښمن په مقابل کې متحد نه سول. هغوی چې په کعبه شریفه کې پر قرآن عظیم الشان باندې پر سوګند کولو ټینګ نه سول نور به یې هیڅ وخت څوک پر یوه لاره ونه ویني... "

پر کابل باندې د راکټونو د باران او پر هغه ظالمانه حملو باندې د مجاهدینو د مشهور قوماندان عبدالحق د اعتراف په سبا مې د راکټ په نوم شعر ولیکی او د اولسمل صاحب اخبار ته مې د خپرېدلو له پاره واستاوه.

راکټ:

شپه ده سره د ژمي توره شپه ده
او د یخنۍ د بلا توري وږوونکي څېرې
د ښار له لارو کوڅو
او د کورونو څخه ساه ایستلې
هلته کوڅه کې وارخطا ګامونه
او چېرته لیرې د څو سپیو غپا
د ربړېدلو او غمجنو انګولاوو سره
د شپې پر سترګو بانه ورپوي
هوسۍ لا ویښه ده، د مور په غېږ کې
د ابا جان د راتلو زېری اوري
او پر سرو شونډو یې موسکا نڅېږي
بیا یې په تورو ښایستو سترګو کې
د ورکو هیلو رڼا وځلېږي

چي یو ناڅاپه د میرویس له چیغو
هوسۍ د مور له غېږي و خوځېږي
د ویښو سترګو د خوبونو نړۍ ونړېږي
د امیدونو او خیالونو لړۍ
لکه مستیو کي شلېدلی امېل
له غاړي ولوېږي دانه دانه سي
مور دوه بې واکه دوه رنځور لاسونه
تېروي او هوسۍ بیا راپاڅي
د هري شپې په رسم
میرویس ته وایي پخوانۍ سندره
د اباجان د راتلو نکل کوي
بیا دروازه ټکېږي
بیا هوسۍ درومي او په چیغو چیغو
مور باندي زېرى کوي
بیا هغه تللې، مساپره، مهربانه څېره
تور او ښایسته برېتونه
بیا هغه دنګه ونه
له ډکي غېږي سوغاتونو سره
کورته راځي، هوسۍ په غېږ کي نیسي
او د میرویس پر مخ، پر سترګو، پر نازکه خولګۍ
مچي اوري
هوسۍ سندره ویل
ژړا کراره سوله
چي په تورتم کي هیبتناکي ډزي



پر نازولو، پر سورکیو، پر نریو شونډو
د تل له پاره نغمه وسوځول
او راکښېوته سینه یخه کړله.

د (۱۹۹۲م.) کال د مارچ اتمه ویرجینیا

زه نه وایم چي زما سره د کابل او افغانستان د راتلونکو بدمرغو پېښو د پیش بیني کولو خاص کمال موجود وو. دا حالات، ډاکټر نجیب الله څو څو ځله پیش بیني کړي ول او چي ده څه ویل هغسي وسوه. په دې خبرو ډېر افغانان پوهېدل او زه یقین لرم چي تر ما به ښه پوهېدل، خو له بده مرغه چي له چا سره یې د ویلو شهامت موجود نه وو او هر چا به ویل او یا به یې فکر کاوه چي د دغه یا هغه خوا راڅخه بده نه سي. دغه یا هغه راته په قار نه سي او سبا، خدای مه کړه تاوان راته پېښ نه کړي او یا مي کومه غوره احتمالي مرۍ او امتیاز له لاسه ونه وزي. د حقیقت ویل لېونتوب غواړي. دا لېونتوب خدای تعالی، زما له لومړۍ ځوانۍ څخه، زما په برخه کړی وو؛ او ما هم کار ور څخه واخیست.

## د مجاهدینو حکومت او تراژیدي:

د (۱۹۹۲م.) کال د اپریل د میاشتي پر اته ویشتمه، پر کابل او ټول افغانستان باندي یوه بله لویه بلا نازله سوه. افغانستان، لکه څرنګه چي انتظاریې ایستل کېدی، د مجاهدینو د اوو تنظیمونو او د حضرت صبغت الله مجددي د خالد بن ولید، دوستم او د ګلیم جم په نوم، د هغه د جنایتکارو، بدنامو او ناروا ملېشو لاسته ولوېدی.

د ډاکټر نجیب الله له وروستیو یاداشتونو څخه، چي د پېښور د لیکوال مجلې یې، د (۲۰۰۴م.) کال د سپتمبر د میاشتي په ګڼه کي، د نجیب الله په قلم لیکلی فارسي متن او پښتو ترجمه خپره کړې ده، ښکاري چي د هغه په مقابل کي د کوتا حرکتونه، چي پخپله کودتاچیانو ته یې هم هیڅ ګټه ونه کړه او د غربي هیوادونو خیرات خواره یې کړل، څه باندي دوې میاشتي روان ول. د دې یاداشتونو وروستۍ برخه، چي پخپله د سلیمان لایق رول له ورایه پکښي څرګند دی، په لوستلو او غور کولو ارزي. ډاکټر نجیب لیکي"... خو د چارشنبې په دوولس نیمو بجو، د سیاسي بیرو ټول غړي، له انجنیر نظر نه پرته، چي هند ته په سفر تللی وو، په جمهوري ریاست کي زما د کار دفتر ته راغلل او وې ویل چي موږ په مرکزي کمیټه کي تر اوږدو خبرو او یوې پرېکړي ته د رسېدو وروسته تاسي ته راغلي یو.

مهرباني څه پرېکړه مو راوړې ده؟

لایق د دوی د ویاند په توګه لومړی خبري وکړې او سریزه او بنسټ یې کېښود. عامي خبري وې؛ که ریشتیا مي وپوښتی پوه نه شوم چي موخه یې څه ده. ومي ویل په غرض دي پوه نه شوم په ډانګ پیلې یې ووایه.

فرید مزدک په خبرو شروع وکړه. تر خبرو وروسته یې له مانه وغوښتل چي سبا د ګوند د اجراییه هیات له خوا اعلامیه تنظیم او خپره کړي او خپل دریځ



څرګند کړي. ما ورته وویل تاسي ولاړ شی، پر اعلا میه کار وکړی. سبا اعلامیه ګورم..."

دلته په څرګنده ښکاري چي سلیمان لایق د ګوند په دننه کي د کودتاچیانو رهبري پر غاړه لري او کله چي وروسته د وطن ګوند مشرتابه نجیب هند ته د تېښتي په کوښښ تورن کړ نو هغه یې ګواکي د ګوند له مشرتابه څخه لیري کړ او لایق یې عمومي منشي کړ.

له پرچمي کودتاچیانو سره هم نه بخت او نه نړیوالو یاري وکړه. د افغانستان د سرنوشت د ټاکلو په برخه کي لویو خارجي قدرتونو او ګاونډیو هیوادونو بل راز فیصله کړې وه. په کابل کي، د څلورو کالو له پاره، د مجاهدینو د وحشت رژیم قایم سو او ورپسې طالبانو ته د قدرت نوبت ورسېدی. کله چي طالبانو، د کابل د نیولو په لومړۍ شپه، ډاکټر نجیب الله پرته له محاکمې په ډېر غیر انساني شکل شهید کړ او د هغه مړي ته یې هم سپکاوی وکړ او په بازار کي یې وځړاوه نو سلیمان لایق پر هغه باندي د اوښکو تویولو او غم او غوسې د ښکاره کولو له پاره د سور مومن په نوم یو شعر هم ولیکی.

دلته باید یوه کیسه او شخصي خاطره له یاده ونه باسم. ځکه چي خاطرې او مهمي شخصي کیسې باید د تاریخ سینې ته ولوېږي. واحد فراهي، چي زما د ځوانی د کلونو ډېر نیژدې ملګری او د خلقیانو په نظام کي زما د ژوندي پاته کېدلو اساسي عامل وو، د پرچمیانو د نظام په وروستیو دریو کالو کي د مرکزي کمېټې غړی او د ډاکټر نجیب الله خاص یاور وو. د پرچمیانو د رژیم له نسکورېدلو څخه دري کاله وروسته یې، په جرمني کي، راته وویل چي سلیمان لایق داسي طرح درلوده چي ګواکي د خلقیانو او پرچمیانو ترمنځ د شخصي اړیکو او دوستۍ د ایجادولو او غښتلي کولو له

لاري به د دې دوو ډلو د غړو ترمنځ اختلافات او دښمني له منځه يوسي.

واحد فراهي ووېل په دې سلسله کي يې يوه شپه ماته هم بلنه راکړه چي د سرحدونو او قبايلو د چارو وزارت ودانی ته، د ماښامنی لپاره، ورسم. کله چي له کاره فارغ سوم او د سليمان لايق دفتر ته ورغلم نو هلته مي وليده چي د دواړو ډلو ډېر فعال او برجسته غړي او مشران را غونډ سوي وه. مجلس پيل سو، سرونه ګرم سول خو د دې پر ځای چي د اتحاد او شخصي انډيواليو او راتلونکو خوړو مجلسونو او ليدنو کتنو په باره کي دي خبري وسي د ډاکټر نجيب د ملامتولو او انتقاد کولو بحثونه تاوده سول. مجلس تر ناوخته دوام وکړ او زه د مجلس له ختمېدلو څخه مخکي را ووتم او سم سيده د ډاکټر نجيب کورته ورغلم. پهره دار مي مجبور کړ چي ډاکټر نجيب له خوبه راپاڅوي.

يو ګړی وروسته ډاکټر نجيب د خوب په جامو کي را ووت او زه يې کورته دننه بوتلم. کله چي يې د خيريت او زما د دومره ناوخته او ناڅاپي ورتللو پوښتنه وکړه ما ورته ووېل چي ته خوبونه کوې او په ګوند کي ستا پرضد دسيسې رواني دي. کيسه مي لا بشپړه کړې نه وه چي ډاکټر نجيب مي خبري پرې کړې ويل يې فراهي زه دي له خوبه وايستلم او ځان دي هم نا آرامه کړ. ولاړ سه آرام بيده سه. دا ټول شيان زما تر کنټرول لاندي او زما له پلان سره سم روان دي. فراهي ويل ما چي هر څومره ټينګار وکړ ګټه يې ونه کړه خو د رخصتېدلو په وخت کي مي ورته ووېل چي ما ستا د ياور په حيث خپله وظيفه بشپړه کړه.



## مجاهدين د قدرت پر ګدی:

د مجاهدينو د ډلو تر منځ د کابل د هغو غم لړلو جګړو په ترڅ کي، چي د افغانستان په تاريخ کي يې ساری نه وو ليده سوی، دا سي پېښي منځته راغلې چي تر دغه وخته يې چا تصور نه سو کولای. په دې باب دونه ليکني سوي او دونه رپوټونه خپاره سوي دي چي مفصله ليکنه يوازي د لوستونکو وخت ضايع کوي خو د دې دپاره چي د مجاهدينو د مشرانو د اسلامي حکومت ترخه خاطرات هېر نه سي نو، د مثال په توګه، د اکاډيميسن محمد ابراهيم عطايي، چي پخپله د دې تباه کونکو او وحشيانه جنګونو شاهد وو، له کتاب، د افغانستان پر معاصر تاريخ يوه لنډه کتنه، څخه، يوه برخه را اخلو. ښاغلی عطايي په (۳۷۴) مخ کي ليکي" ... څرنګه چي کابل ته دا درې مسلح قوتونه (مسعود، دوستم او حکمتيار) پر يوه وخت را ورسېدل، نو يو د بل په وړاندي يې لکه وحشي پړانګان پنجې ولګولې او د اورونو او وينو باران يې جوړ کړ، چي د کابل عام بې دفاع خلک پکښې وسوځول سول. خو د مسعود پنجشېريانو او د دوستم ازبکانو ته د ښار هغه برخه چي دولتي مؤسسې او آباد کورونه پکښې واقع وو، په لاس ورغلل او په يوه خاص لېونتوب يې په چور لاس پوري کړ. د تنظيمي حاکميت په پيل کي د ټولو خونړيو جنګونو غايه دا وه چي هريو د خپل رقيب او حريف څخه وړاندي کابل ته ورسېږي چي د چور څخه ډېر څه په لاس ورسي.

عطايي صاحب د خپل کتاب په (۳۸۰) مخ کي ليکي" همدا رنګه څلورمه کارته، دريمه کارته او دارالامان چي د ښار ډېري ښکلي ماڼۍ پکښې واقع وې د هزاره ګانو له خوا اشغال سوه او احمدشاه مسعود د آسمايي غره (د ټلوېزون غر) څخه په راکټونو داسي وويشتل چي يو دېوال يې هم روغ پاته نه سو. همدا رنګه مسعود د پل هارتل څخه تر چمن حضوري پوري ټوله جاده

په راکټونو لوټي لوټي کړه او ډېر انسانان تر خاورو پکښې لاندې سول.

د کابل جنوب لوېدیځ ته ګذرګاه، جنګلک، چهلستون او نور ښکلي کلي د ګلبدین او مسعود په جنګونو کي پاک وسوځول سول. همدا رنګه د کابل ختیځ ته شاه شهید، سید نورمحمد شاه مېنه، رحمان مېنه او بګرامي د هغو له فابریکو سره د ګلبدین او مسعود په راکټونو کي ټوټه ټوټه سول.

د ښار په منځ کي، د ښار جنوب ټول وران سو او لومړی مکروریان تخریب او د دریم مکروریان یوه برخه ورانه او نور متروک سو او دومره په وحشت کي غرق سو چي سجان (بومان) پکښې پیدا سول چي په خرابو کي الوزي او ناري وهي. او د خرابۍ سمبول بلل کېږي. خلاصه دا چي ښار بالکل پر سینه پرېووت، برېښنا ولاړه او د چېنلو د اوبو سسټم یو مخ تخریب سو.

د تنظیمي جنګونو سره د ښار امنیت بالکل له منځه ولاړ او د مسعود، ګلبدین، دوستم، سیاف او مزاري خلکو د دفترونو سامانونه او لوازم یو مخیزه لوټ کړل. بیا یې د خلکو کورونو ته لاس واچاوه او هر چا به یوه یا دوې لارۍ راګرځولې، بیا به یې له مالونو ډکي کړلې او شمال او ختیځ ته به یې وړلې. غلا دومره عامه سوه چي د چرګي څخه نیولې تر انسان پوري به غلا کېدل او هزاره ګانو خو د خلکو په سرونو کي مېخونه ټکوهل او نورو هر یوه د خپلي وحشتناکي سلیقې سره سم انسانان په قتل رسول. رحم او عاطفه ناپېژندلي کلمات وه او یوازي غضب او وحشت حاکمیت کاوه"

د مرحوم عطایي لیکنه د سل ګونو او زرګونو عیني شاهدانو د لیکنو، رپوټونو او مصاحبو یوه نمونه ده. لږ لیکوالان او شاعران به وي چي د مجاهدینو د حکومت د هغه وحشت په باب یې څه نه وي لیکلي.

په کندهار کي، د مجاهدینو د دوه کلن حکومت د وحشت، بربریت، بې ناموسیو او بې عفتیو کیسې تر اوسه پوري د خلکو په یاد دي. سرې بیا هم



نه پوهېږي چي د مجاهدینو مشران لا ولي د جهاد او د جهاد د مشرانو په نامه نه شرمېږي او لا هم په خپلو کارنامو افتخار کوي. او حتی صبغت الله مجددي خو هغه خلک کافران بولي چي د مجاهدینو مشرانو ته بد وایي او کله چي پر افغانستان باندي د امریکایانو او ناټو د یرغل په لومړي کال او د مجاهدینو د مشرانو د واکمنۍ په دوهمه دوره کي، په یوه تش په نامه پارلمان کي، د فراه ځواني وکیلي ملالۍ جویا په لوړه، رسا او تاریخي وینا کي وویل چي د دې مشرانو ځای پارلمان نه بلکه د څارویو طویله ده، نو صبغت الله د ټول ملت په مخ کي بږغ ورباندي وکړ چي تا کفر وواېه. که مرحوم عطایي صاحب ژوندی وای نو حتماً به یې پر ملالۍ جویا باندي اعتراض کړی وای چي بې آزاره څارویو ته ولي سپکاوی کوې.

په همدغو شپو ورځو کي، چي افغانستان، په تېره بیا کابل، د مجاهدینو ترمنځ د وحشیانه جنګونو په لمبو کي سوځېدی، دا سي رپوټونه خپاره سول چي د ګلبدین او نورو تنظیمونو څه د پاسه پنځلس سوه تنه مجاهدین، چي پکولونه یې پر سر کړي او اوږدې جامې یې اغوستي دي، د آذربایجان د حکومت په ملاتړ، د ارمنستان له حکومت سره جنګېږي. د واشنګټن پوسټ ورځپاڼې په هغو شپو کي د دغو مجاهدینو د سختو تلفاتو او ماتي خوړلو په باب یو رپوټ خپور کړ. وروسته دا سي څرګنده سوه چي د هغو لېږل سویو کسانو یا مجاهدینو څخه ډېر لږ بیرته ژوندي راستانه سول. اکثریت یې د ارمنستان له عسکرو سره په جنګونو کي تلف سول او ځیني یې هورې پاته سول. ما په هغو شپو ورځو کي" دا د پټي سر دی پټې وروسته سورور دی" تر عنوان لاندي یو مضمون وکیښ او د معمول سره سم مي د مجاهد اولس په اخبار کي خپور کړ او په هغه کي مي دا ټول بیان ولیکی. وروسته مي" افغانستان د تباهی پر لور" یو بل مضمون ولیکی او په هغه کي مي ولیکل

چي "په کابل کي د اسلامي حکومت له برکته، په دې تېرو دريو مياشتو کي، د کابل ښار دونه خراب سوی دی چي د څوارلس کلن داخلي جنګ په جريان کي يو ښار په دغه اندازه نه وو خراب سوی...

هغه جنګ چي څوارلس کاله د کفارو او سرو لښکرو پر ضد د جهاد په نوم روان وو، نن ځان ته بل رنګ اخيستی دی. کفار او پخواني ملحدين اوس د هيواد د چارو واګي په لاس کي لري او يا لږ تر لږه د هغو کسانو تر څنګ ناست دي چي د هيواد چاري اداره کوي. د سي آی اې زمريانو، د اسلام آباد مزدورانو، د تهران او سعودي عربستان نمک خورو او د کابل د کمونيستي رژيم منفورو ملېشو لاس سره يو کړی دی او هغه جنګ ته يې چي تر پرونه د جهاد په نوم روان وو نن د قومي جګړې شکل ورکړی دی؛ او غواړي د خپل قدرت د نيولو له پاره د هغو اقوامو تر منځ د مخالفت اور تازه کړي چي چي سوونه کلونه يې د يوه بل تر څنګ په سوله او آرامي کي ژوند کړی دی، په هر ملي قيام کي اوږه پر اوږه جنګېدلي دي او په ټولو غمونو او ښاديو کي سره شريک ول"

دا غزل مي، چي د افغانستان مشهور او محبوب هنرمند ناشناس په خپل خواږه آواز کي کمپوز کړې ده، په هغه وخت کي ليکلې ده.

د اورونو ځولۍ اوري د اسمان سترګي ړندې دي
ګل پر ځانګه سره لمبه دی د نسيم لاسونه پرې دي
شيخه ځه شيطان دي مل دی تر چوخې لاندي يې نوشه
ځه توبه ده دي سوه قبوله خلوتونه خُمخانې دي
چي پرون به دي چيچلې د کاسې په تمه شونډي
نن يې وړه درته روا دي بې وارثه آشيانې دي



مبارک دي سه زاهده کوڅې ډکي دي له حورو
پکښې وسوځه سجدې دي پکښې ماتي که توبې دي
نن دي وار دی سره وه يې د کلونو وحشي تنده
د ګناه تخمونه پاشه بې صاحبه کروندې دي

په کابل کي به چنداني داسي کور نه وي پاته سوی چي يا د سر او يا د مال او يا د عزت تاوان نه وي ورته رسېدلی. په سل ګونو او وروسته په زرګونو کورنيو له کابل څخه هجرت وکړ او زياتره يې په تش لاس پاکستان او ايران ته مهاجر سول. نازولي تحصيلکرده انسانان، ښوونکي، استادان، عالي رتبه مامورين او صاحب منصبان د پېښور او اسلام آباد په کوڅو کي د ګدايي تر پولي ورسېدل. لا په پېښور کي اکثريت جاهلانو پر دې بې سرپناه مظلومانو خندل او ويل به يې چي ايله اوس د مجاهدينو په زور خبر سول او د مجاهدينو د لاسه يې پاکستان ته پناه راوړه.

د قوماندان په نوم ناول مي، چي تر دغه وخته د موضوع له مخي بې ساري وو، په دغه وخت کي وليکی او په کوټه کي مي چاپ کړ. په دې ناول کي له اولسونو سره د خلقيانو او پرچميانو د رژيمونو د مقاماتو ناروا وو او د مجاهدينو په جبهو کي د قوماندانانو او مشرانو تېريو دواړو ته ګوته نيوله سوې ده. تر دې وخته پوري چي په پښتو ژبه کي هر څه سياسي ليکني کېدلې او يا شعرونه ويل کېدل نو د غندلو لوری يوازي خلقيانو، پرچميانو او روسانو ته متوجه وو. ما د ريښتينو کيسو او سترګو ليدلو حالاتو په اساس، په منتهی بېطرفي، د مجاهدينو د قوماندانانو او تنظيمونو د دفترونو ناروا وي په ګوته کړې. د ناول قهرمان وزيرګل د مجاهدينو يو استثنايي قوماندان دی چي نه په پاکستان کي د مقاماتو څخه د پيسو اخيستل مني او

نه د ماله جات په جبهو کي له چا سره ظلم او تېری کوي. هغه پاک، سپېڅلی او رېښتونی مجاهد دی او بالاخره د خپلي پاکۍ قرباني کېږي.

د حیات آباد شعر، چي ډېره لویه غوغا يې جوړه کړه، د همدغو شرایطو محصول دی. یو مجاهد مهاجر، چي په یوه مجلس کي د حیات آباد په باره کي کیسې اوري او په دې خبرېږي چي هلته ښکلي نجوني په ډېرو لږو پیسو پیدا کېږي نو ده ته هم اشتها ور ولاړېږي. خو د حیات آباد خواته له حرکت کولو څخه مخکي یو ځل خپله ږیره خریيي او په اصطلاح خپل ځان فیشن ته برابروي، خو کله چي د ښکلي نجلۍ کوټې ته دا خلېږي نو بل ډول عکس العمل ویني او خپل ځان ته حیرانېږي.

آیینه کي چي مي وکتل په ځیره
تر نامه مي رسېنده ښیره ږیره
ما وې ښکلي به مي ونه مني چېري
ژر مي ږیره کړه له مخه څخه لیري
ور روان سومه لیدو ته د خوبانو
یوه چټه مي پیدا کړله یارانو
چټه نه وه یوه ونه وه د ګلو
سر تر نوکه د کتلو د ستایلو
په لیدلو مي یو دم له خندا شنه سوه
لکه څانګه د سرو ګلو را کړه سوه
ماته ګوري په کټ کټ راته خندېږي
پر نازکه نرۍ ملا باندي غبرګېږي
وې يې ماته چي را ځي ټوله شیخان دي
طالبان دي، ملایان دي مولویان دي



د عمرونو مجاهد قوماندانان دي
یا امیر یا د امیر نیژدې خپلوان دي
که دا نه وي مقامات دي افسران دي
یا عرب دي یا تور مخي پنجابیان دي
که دا نور وګړي نیت زموږ د ښار کړي
سمدستي يې مُلا حکم د سنګسار کړي
دا ته څرنګه را پېښ سوې زما کوټې ته
چي خریلې ږیره راغلې زما ډېرې ته
دا کوڅې په اجاره دي د غازیانو
چي ښارونه لوټوي د کافرانو
جوړوي چي د سرونو منارونه
اوروي چي د ګولیو بارانونه
پر ښایستو ځوانانو میندي سولې بوري
دوی ته ورکړې خدای په دې دنیا کي حوري
د اسلام په نوم يې جوړې خزانې کړې
خپل ناموس ته يې تیارې هدیرې کړې
چي مېرمني په اوو پردو کي نغاړي
د وطن لوڼې پر دغه بازار غواړي
چي اسلام يې دی یوازي په خبرو
تو لعنت سه پر داهسي ږیرورو...

کله چي شوروي پوځونه د هرات له لاري د کندهار ښارته ورسېدل نو ویل کېږي چي د هرات په دروازه کي یوه دوکاندار د هغوی ټانکونه د دوکان په وزنونو ویشتل او کله چي يې د تاله کاڼي ختم سول نو پر ټانکونو يې د انارو په وارولو بنا وکړه. که دا یوه فوکلوري افسانه وي نو د هغه کندهاري

دوکاندار د قهر او غوسې ښکارندوی ده چي زه يې اوس تقريبا ځلوېښت کاله وروسته تصور کولای سم. هغه دوکاندار وينم چي توره بګړۍ يې تړلې، ږيره يې تر غاښو لاندي کړې او ټانکونه د کاڼو تر ختمېدلو وروسته په انارو ولي. او که دا کيسه ريشتيا وي نو ای کاش چي د هغه پر وطن او دين مين قهرمان دوکاندار نوم د چا زده وای چي موږ په سل ځله د ايوب او ملالي سره ياد کړی وای. دا کيسه کابل ته را ورسېده او د هغې محصول دا نظم وو چي:

زما کندهاره د زمرو وطنه
زما د سرکښو پښتنو وطنه
ځونه ياغي يې صدقه دي سمه
د نافرمانو جنګيالو وطنه

کلونه تېر سول. شوروي پوځونه د افغانانو د مقاومت په مقابل کي مات سول. د هغوی په ملاتړ رژيم په کابل کي نسکور سو؛ او د کندهار ښارته مجاهدين ننوتل. د کندهار په ښار کي هغه ناځوالي وسوې چي دې ښار په ژوند کي نه وې ليدلي. د دغو ناوړو شرايطو، چي پر ښايسته او مست کندهار به مي څرنګه پېرزو کېدلای، محصول او انعکاس دا نظم دی.

زما کندهاره د زمرو وطنه
زما د سرکښو پښتنو وطنه
د اتلانو د کيسو وطنه
د ميدانونو خرخښو وطنه
داسي مي نه غوښتې چي نن دي وينم
په تن زخمي په سره کفن دي وينم
نه دي هلمند هغه موجونه راوړي



نه له مستۍ په خوله ځګونه راوړي
نه د ارغند غاړي ګلونه راوړي
نه دي ترنک زاړه سېلونه راوړي
نه دي دښتو کي قافلې وينمه
نه دي کېږدو کي ډېوې وينمه
نه د رابيا له ميني مست فتح خان
له کلابُسته قهرېدلی روان
نه ورسره دي د برېڅو ياران
نه د مغولو په پوځ ګډ دی تالان
نه شپېلۍ دي په برېتو اغوستي
نه يې سرونه په نېزو اغوستي

اوس دي پر کليو جنازې را اوري
له پېغلو سترګو اوښکي سرې را اوري
له خپل قسمته درته شپې را اوري
پر سپينو ورځو دي تيارې را اوري
اوس هديره د افسانو يې زموږ
ګور د زلميو ارمانو يې زموږ

اوس له آمو تر اباسينه خاوره
له وينو مسته سره رنګينه خاوره
هغه درنه هغه سنګينه خاوره
هغه تر خپل ښارګ شيرينه خاوره
وربانديي ګرځي د اورنګ آسونه
د پردۍ سولي پردي جنګ آسونه

راسـه چي وینـو تـه دي اور درکمـه
زاړه جنون تـه بـه دي شـور درکمـه
څو لېونی چیغي پـه پـور درکمـه
زخمي لـمبو تـه بـه دي زور درکمـه
راځه یو مستـه پیالـه بنګ پورتـه کو
یو ځل به بیا د توري شـرنګ پورته کو
راځـه چي بیـا د افســانو پـه ژبـه
د مـلالـۍ او د عـیـنـو پـه ژبـه
د مـیـونـدونـو د کـیـسـو پـه ژبـه
څـه د تـوپـک څـه د جرګـو پـه ژبـه
د وطـن شـپـو تـه مشــالـونـه راوړو
د تـیـارو ښــارتـه څـراغـونـه راوړو

زمـا کـنـدهـاره د زمـرو وطـنـه
زمـا د ســرکـښــو پـښـتـنـو وطـنـه
د اتــلانــو د کــیـســو وطـنـه
د مـیـدانـونـو خـرخـښـو وطـنـه
داسـي مي نـه غوښـتې چي نن دي وینم
پـه تـن زخمي پـه سـره کفن دي وینم

پر افغانستان باندي د مجاهدینو د هغه وحشیانه حکومت څه د پاسه پنځه ویشت کلونه تېر سول. د کابل د وران سوي او تباه سوي ښار تصویرونه او ویډیوګاني اوس هم په فیسبوکونو کي خپرېږي؛ خو زه دې خبري ته هک حیران یم چي د افغانستان منورین او ډېر پوهان اوس هم د مجاهدینو، په تېره



بیا د هغوی د رهبرانو، نومونه په ډېر احترام یادوي او چي د وحشت او بربریت خبري سي نو سمدستي د خلقیانو او پرچمیانو خبره را منځته سي. په دې کي هیڅ شک نسته چي د خلقیانو او پرچمیانو په رژیمونو کي له خلکو سره تر اندازې زیاتي او بې دلیله جفاوي وسوې؛ خو د یوه افغان په حیث، په پوره زړه ویلای سم، چي د هغوی په رژیمونو کي د مجاهدینو د حکومت او ایله جاریو وسله والو د وحشت په لسمه اندازه تباهي نه ده رسېدلې او د دوی په لسمه وحشت او بې ناموسي نه ده سوې. د کورونو مالونه، کتابخانې، ماشین آلات، وسلې، ټانکونه او الوتکي او فعالي فابریکې د اوسپنو په بیه او تاله د پاکستان په لیلامي بازارونو کي خرڅ سول. تر کابل وروسته، دوهمه درجه تباهي او وحشت او بې ناموسي ښایي په کندهار کي سوې وي. په کندهار کي د مجاهدینو د لومړۍ ماتي او طالبانو د لومړنۍ فتحي څخه درې څلور میاشتي مخکي مي په یوه غزل کي د مجاهدینو د سقوط پیش بیني کړې وه، چي کلونه وروسته ناشناس په خپل خواږه آوزا کي کمپوز کړه:

خوب مي لیـدلی دی سـبـا رقیبـان کـډه کوي
زمـا د جـانـان د کوڅې ټول غمـازان کـډه کوي
زه پـوهـېـدم چي اسـوېلي مي بې اثره نـه دي
هغـه دی ورو ورو لـه سـاحلـه توپـان کـډه کوي
جهـاني زېری مي دربـاندي رویبـار خط راوړی
سـتـا لـه سـوځلي ګلسـتـانـه زاغـان کـډه کوي

یوه خبره باید هیڅ وخت له یاده و نه باسو او هغه دا چي امریکایان هر وخت، په ډېر معصومانه انداز، وایي چي پر افغانستان هغه بدي ورځي ځکه راغلې چي دوی په هغه هیواد کي د شوروي اتحاد له ماتي څخه وروسته

خپله توجه ورته کمه کړه او د نړۍ په نورو چارو لګیا سول. په داسي حال کي چي د افغانستان اصلي بدمرغي د امریکایانو د توجه محصول ده. هغوی هیڅ وخت افغانستان ته توجه نه ده کمه کړې بلکه ورځ په ورځ یې زیاته کړې ده. هغوی هیڅ وخت افغانستان له یاده نه وو ایستلی؛ بلکه وروستي ټول جریانات او ټولي بدمرغۍ د هغوی د نقشو او شیطانت محصول دي. د نجیب الله رژیم د امریکایانو په دسیسو قهري سقوط وکړ. مجاهدین د هغوی په پیسو روزل سوي او قدرت ته رسېدلي ول. د اسامه بن لادن او القاعده د غړو د پیدا کولو او له منځه وړلو په پلمه یې پر ټول افغانستان باندي بېرحمانه حملې پیل کړې او اته لس کاله کېږي چي پرله پسې د پښتنو کلي او ښارونه بمباري کوي او د دې بېرحمانه او انسان وژونکي جنګ د پای ته رسېدلو درک هیچا ته نه معلومېږي. دا جنګ له لویه سره دوی پیل کړی دی او یوازي دوی پوهېږي چي څرنګه یې پای ته ورسوي. ګواکي د افغانستان، په تېره بیا پښتنو، تباهي د امریکایانو د توجه د کمېدلو له امله نه بلکه د هغوی د توجه د زیاتېدلو له امله ده. هغه جنایتکاران، مسلکي قاتلان، د مخدره موادو قاچاقبران او غله او فسادیان چي د مجاهدینو د حکومت په وخت کي یې د بشر پر حقوقو د تېریو رپوټونو د امریکا او اروپا مطبوعات پر سر اخیستي وه، پر امریکا باندي، په اصطلاح، د سپتمبر د یوولسمي د حملو څخه وروسته، له مظلومو افغانانو څخه د انتقام اخیستلو په پلمه، بیرته یو په یو، د امریکا د سل ګونو او زرګونو میلیونو ډالرو او وسلو په زور قدرت ته ورسېدل او داسي نظام یې منځته راووړ چي د مخدره موادو د قاچاق او تولید له نظره په نړۍ کي لومړی او د اداري فساد له درکه په ټولي نړۍ کي دوهم مقام لري.

امریکایانو د ماکیاولي د فورمول په اساس چي وایي یرغلګر هیواد باید



هر وخت اقلیتونه قدرت ته ورسوي او اکثریت وځپي. ځکه چي اقلیتونه تر قیامته پوري د دوی مرستي ته اړتیا لري او د اکثریت د انتقام له وېري هیڅ وخت د یرغلګر څخه سرکښي نه کوي، د افغانستان ټول واک یې یوه اوزبک جنایتکار او د پنجشېر اولسوالۍ ته سپارلی دی.

په زړه پوري خبره دا ده چي انګرېزانو په نولسمه پېړۍ کي دوه ځله، په سیمه کي د روسانو د نفوذ او پر هند باندي د هغوی د حملې کولو د مخنیوي په پلمه، پر افغانستان باندي تېری وکړ. دواړه ځله یې هم د افغانستان مظلوم اولسونه کنډوکپر کړل، هم یې خپل عسکر تلف سول او دواړه ځله په تور مخ ووتل. د شلمي پېړۍ په وروستیو لسیزو کي د شوروي طرفدارو کمونیستانو قدرت ونیوی او څه کم دوه کاله وروسته د شوروي اتحاد قواوي افغانستان ته ننوتلې. دا ځل د امریکا په رهبري ټولي لوېدیځي نړۍ او اسلامي هیوادونو لاسونه سره ورکړل او د شوروي اتحاد په مقابل کي یې جهاد او مقاومت پیل کړ او افغانستان یو ځل بیا د جنګ میدان سو. شوروي قواوي، له څه باندي دوولس کاله جنګ څخه وروسته، ووتلې؛ خو هغه جنګ چي له څلوېښتو کالو راهیسي پیل سوی دی په یوه او بل شکل او یوه او بل نامه یې دوام کړی دی؛ او اوس خبره داسي حال ته رسېدلې ده چي د سولي کیلي له هیچا سره نسته. اوس په دې واړه او وروسته پاته هیواد کي تر لس زیات لوی بین المللي او سیمه ایز قوتونه په جنګ او دسیسو لګیا دي او د دونه زیاتو قوتونو قناعت ترلاسه کول او په سوله راضي کول څه اسانه خبره نه ده. ځکه چي ټول قوتونه د خپلو ګټو له پاره جنګېږي او له ګټي څخه د چا تېرول یوازي د زور خبره ده. دا زور، دغه ګړی، له هیچا سره نسته او سبا چا ته معلومه نه ده.

## طالبان:

زه ډېر ځوان وم چي یوه ورځ په ګرداب کي منان خان معلم صاحب ویل زموږ پلرونو او سپین ږیرو به هر یوه د دریو څلورو پاچهیو خبري او کیسي کولې؛ موږ چي کوچني لوی سوي یو دا یو ظاهرخان دی چي پاچا دی. دا خبره هرچا په ټوکو واخیستله؛ خو څو کاله وروسته داسي پرله پسې تحولات پیل سول چي هر تحول ته یې سړی جلا جلا غمیزه ویلای سي او ښایي ډېرو لږو هیوادونو، په دونه لنډ وخت کي، دونه پرله پسې خونړي تحولات لیدلي وي، چي هر تحول تر مخکني په څو چنده بدتر وي.

د (۱۹۹۴م.) کال د سپتمبر د میاشتي لومړۍ شپې ورځي وې چي په کندهار او شاوخوا کي د طالبانو، چي یوه آشنا او پخوانۍ پدیده وه، د پرله پسې خپرېدلو او په ځینو ځایونو کي د حاکم کېدلو آوازې خپرې سوې. لږ شپې وروسته د پاکستان د وخت داخله وزیر نصیرالله بابر او د آی ایس آی ځیني صاحب منصبان، کرنیل امام او میجر ګل، چي نومونه یې د کندهار تقریبا ټولو خلکو ته اشنا وه، له طالبانو سره یو ځای کندهار ته ننوتل او د مجاهدینو له هغو غلو، قاتلانو او داړه مارانو څخه یې، چي اولس یې له نومونو ډارېدل، یو په بل پسې امنیتي پوستې ونیولې او د مجاهدینو قوماندانان ټول وتښتېدل. څو تنه، چي ډېر زیات جنایتونو یې کړي ول او د طالبانو په لاس ورغلل، ملا منصور، بارو او صالح سمد ستي اعدام سول او طالبان پر ښار باندي حاکم سول. البته د دې معنی دا نه ده چي نورو مجاهدینو لږ جنایتونه کړي او یا یې نه وه کړي. هغوی ټولو په هر ډول جنایتونو او بې ناموسیو کي لاس درلود او دا دري تنه یې طالبانو ته په لاس ورغلل او سمدستي یې په سزا ورسول. طالبانو یو کال وروسته هرات، دوه کاله وروسته کابل او تقریبا دري کاله وروسته مزار شریف او شمالي



صفحات ونیول او پر هیواد باندي یې، د دوی په اصطلاح، اسلامي نظام حاکم کړ. طالبان له کومه او د چا په ملاتړ راغلل؛ په دې باره کي دونه کتابونه لیکل سوي دي چي تکراربه یې یوازي د لوستونکي وخت ضایع کړي.

مجاهدینو په کندهار کي د قدرت په دوه کلنه دوره کي داسي کارونه کړي ول چي ټول د نه کولو دي. کندهار، په خپل ټول تاریخ کي، داسي ظلمونه، غلاوي، قتلونه او حتی بې ناموسۍ نه لیدلي او نه بیا ورباندي راغلي دي. حتی د دوستم د ګلیم جم په نوم ظالمو ملېشو، چي د کندهار د ځپلو او بې عزته کولو وظیفه ورکړه سوې وه، په دغه اندازه وحشت نه وو کړی. د مجاهدینو د وخت ظلمونه او سر مال او ناموس باندي تېری د هیچا ارمان نه سول. څو ورځي طالبانو ته خوشاله ول البته خوښۍ ډېر دوام ونه کړ او ښایي د کندهار په قسمت اوږده او دوامداره خوښي له سره لیکلې نه وي.

طالبانو د هرات د نیولو څخه وروسته، یو دري کسیز هیات، له امریکایي مقاماتو سره د خبرو له پاره، واشنګټن ته را واستاوه. د دې هیات رهبري د طالبانو خارجه وزیر ملا محمد غوث کوله، چي یوه سترګه یې په جنګ کي ړنده سوې وه. د هیات نطاق د هغه مرستیال ملا عباس ستانکزی وو، چي ویل کېږي پخوانی صاحب منصب وو او په پښتو، فارسي، اردو او انګلیسي یې رواني خبري کولې. له دوی سره، د پښتو او فارسي د انډول د برابرولو په منظور، د بدخشان یو اوسېدونکی مولوي عبدالکبیر هم ملګری وو.

څرنګه چي طالبانو په کندهار کي د مجاهدینو د وحشت حکومت پای ته رسولی وو نو زموږ، په تېره بیا کندهاریانو، ډېره زیاته مینه ورسره پیدا سوې وه؛ او تقریبا هرچا غوښتل چي له هغوی سره له نېژدې وګوري.

طالبان، د نورو افغاني هیاتونو د معمول سره سم، د مرکې لپاره د امریکا
ږغ راډیو ته راغلل او ما هم هلته ورسره ولیدل. کله چې مې ملامحمد غوث
ته، چې ډېري خوږې او ښې خبري یې کولې، زموږ په کور کې د مېلمه کېدلو
سلا وکړه نو ډېر ژر یې ومنله او ما هم څه باندي شل تنه په ژبه پوه ځوانان خبر
کړل. زموږ په کور کې مو ډېر خوږ مجلس وکړ. ملامحمد غوث، عباس
ستانکزي او مولوي عبدالکبیر هر یوه په نوبت خبري وکړې. دوې درې
ورځي وروسته مې بیا په کور کې د مېلمه کېدلو بلنه ورکړه. بیا یې هم زما
بلنه ډېر ژر ومنله او دا ځل مې ډېر لږ کسان خبر کړل. له دوی سره مې دونه
مینه پیدا سوه چې د نیویارک په سفر کې مې بدرګه کړه او په هغه ښار کې
مې د افغانانو په یوه لویه غونډه کې، چې ټولو سوالونو ته عباس ستانکزي
جوابونه ویل برخه واخیسته. یوه شپه وروسته، په نیویارک کې د افغانانو
یوه مشر ډاکټر بشیر زکریا د خپل کور په باغ کې یوه لویه مېلمستیا ورته
جوړه کړې وه. په هغې مېلمستیا کې عباس ستانکزي دونه خوږې خبري
وکړې او سوالونو ته یې دونه ښه او پر ځای جوابونه وویل چې د مجلس ټول
ګډون کونکي یې تر تاثیر لاندي راوستل. د هر چا آرزو وه چې کندهار ته
ولاړ سي او د طالبانو حکومت او اداره له نیږدې وګوري.

تقریبا یو کال وروسته، طالبانو کابل ونیوی؛ او دا ځل یې یو بل نسبتاً با
صلاحیته هیات، د مولوي وکیل احمد متوکل په مشري، چې عبدالحکیم
مجاهد هم ورسره وو، امریکا ته را واستاوه. دا چې دوی له امریکایانو سره
څه وویل هغه موږ ته معلومه نه سوه خو دونه هر څوک پوه سول چې د دوی او
امریکایانو تر منځ جوړه نه کېږي.

متوکل صاحب، مجاهد صاحب او د دوی سره ورسره دوو ملګرو ته مې په
کور کې مېلمسیتا وکړه او تر ممکنه حده مې ډېر کسان ورسره خبر کړل.



متوکل او مجاهد دواړو داسي خبري کولې، چې موږ فکر کاوه په
افغانستان کې هیڅ ستونزه نسته. د افغانستان په دونه زیاتو ستونزو کې، د
ډېرو حتمي پرېښودل موږ لوی مشکل ونه باله او د عصري تعلیم او تربیې
او پر مختګ نو په برخه کې دوی چنداني اعتراض نه درلود؛ ځکه نو موږ فکر
کاوه چې هر څه به ګوندي پر لار سي. له متوکل او مجاهد سره هم تر نیویارک
پوري بدرګه ولاړم او متوکل څو څو ځله کندهار ته د ورتللو بلنه راکړه او ما
هم هر ځل وعده ورسره کوله.

د (۱۹۹۷م.) کال په پسرلي کې مي افغانستان ته د تللو فیصله وکړه. د
امریکا ږغ راډیو مربوطو مقاماتو راته وویل چې افغانستان ته زما له سفر
سره نه موافقه لري او نه مې مخ راګرځوي او که څه را پېښه سي نو مسوولیت
به مې خپل وي. د طالبانو د نظام په احترام مې تقریبا شل ورځې ږیره ونه
خریله او تر کندهار پوري مې ږیره یو څه رسېدلې وه. زه د کراچي، کوټې او
چمن له لاري کندهار ته ولاړم. په کوټه کې د طالبانو په قونسلګري کې د
قونسل تر څنګ د متوکل ورور احمد فیصل، چې لا تنکی هلک ښکارېدی،
هم کار کاوه. دواړو دومره ښه سلوک راسره وکړ چې زه یې د کندهار تللو ته
نور هم لېواله کړم. زما خسر حاجي عبدالهادي، چې دوه درې راځي یې په
حزب اسلامي کې وه او د حزب اسلامی مجاهدینو به حاجي ماما باله، چمن
ته راغلی وو؛ او زما سره بدرګه کندهار ته روان سو. ما په کراچي، کوټه او
چمن کې له کندهاریانو څخه د طالبانو په باب ډېر زیات شکایتونه واورېدل.
حقیقت دا دی چې له هیچا څخه مې ښه خبره وانه ورېده. زما خسر په لاره کې
څو ځله وویل چې ډاکټر صاحب دې خدای وبخښي. زه لومړی پوه نه سوم چې
ډاکټر صاحب څوک دی؛ خو وروسته پوه سوم چې مطلب یې ډاکټر نجیب
دی. په لومړي سر کې مې ښځي تعجب وکړ خو وروسته په کندهار او کابل

کي را معلومه سوه چي ټول خلک یې ډاکټر صاحب بولي او د هغه په وخت او حکومت پسي ارمانونه کوي.

کندهار ته له رسېدلو سره سم مي له دوستانو او اشنایانو څخه پوښتنې ګروېږني پیل کړې. هیڅوک مي راضي او خوشاله ونه لید. هر چا د طالبانو له وهلو ټکولو، بې آبه کولو او بې عدالتیو څخه شکایتونه کول او داسي فکر مي کاوه چي یوه لوی محبس ته راغلی یم. یوه دوست مي وویل چي د انګرېز او روسانو ترلاس لاندي ژوند کولو زور غوښتی؛ ځکه دوی او د دوی نیکونو او پلرونو جهاد ورسره وکړ خو د پنجابي تر لاس لاندي ژوند کول ښځي د شرم خبره ده. ما ویل چي د کندهار پر خاوره به سجده کوم؛ خو دې خبرو مي ټوله خوشالي په خپګان بدله کړه. دا غزل مي په کندهار کي ولیکله.

خُمار مي نه ماتېږي شرابونه بېګانه دي
ساقي راته آشنا دی خو جامونه بېګانه دي
پښېمانه درته نه یم بدګومانه راته نه سې
جنونه ته مي خپل یې ځنځیرونه بېګانه دي
سجدې ته یې د یار کوځې ته نه یمه بللی
پردی قاصد راغلی پیغامونه بېګانه دي
دې ښار کي ربابونه د سنګسار په غېږ کي غواړه
نغمې ګوتو کي ژاړي شهبازونه بېګانه دي
چي زما د لېونو چیغو جواب ورسره نسته
یا زه یم بدل سوی یا دا غرونه بېګانه دي
لښکر د غمازانو دي له کومه را بللی
جانانه ستا په کلي مي پلونه بېګانه دي
ستا دم د مسیحا دی زه منکر وربانديښ نه یم



طبیبه لاس دي جار سم پر هارونه بېګانه دي
سجدې د جهاني پر تندي مه غواړه زاهده
په دې سر کښېنه ښار کي محرابونه بېګانه دي

کندهار ته د رسېدلو سره سم په ښار کي وګرځېدلم او په دې ترڅ کي، له وکیل احمد متوکل سره د تماس د ټینګولو په خاطر، یو ځل د ولایت خواته هم ورغلم. د ولایت په دروازه کي مي، تر خپل تصور پورته، بې نظمي ولیده، چي په خپل اند مي یو څه طبیعي وبلله. ماښام مي د خسر په کور کي له راغلو دوستانو څخه هم د مجاهدینو د حکومت په باب داسي کیسې واورېدلې چي هم د شرم هم د خندا او هم د ژړا وې. او هم مي د طالبانو د نظام، په تېره بیا امر بالمعروف او نهي عن المنکر، چي خلکو منکرات بلل، د عاملینو او مامورینو د ظلمونو او تېریو په باب دونه خبري واورېدلې چي تر سهاره مي چنداني خوب هم ونه کړ او دا سي راته څرګنده سوه چي په امریکا کي د طالبانو عالي رتبه مقاماتو، د خپلو اجرآتو په باره کي، یا ټول یا زیاتره دروغ راته ویلي وه. یوازینی ښېګڼه چي دې نظام درلوده هغه ښه امنیت وو او نور نو تقریبا د هیڅ شي مزه نه وه. اداري فساد او رشوت هم نوي پیل سوي وه خو څرنګه چي خلکو تر دې دمخه د مجاهدینو د داسي ظلمونو او ناروا وو مزه څکلې وه، چي تصور یې کېدلای نه سوای نو چنداني یې په دې برخه کي ږی نه واهه. په عمومي صورت، د طالبانو نظام له خپلو خلکو څخه تقریبا په بشپړه توګه بېګانه وو او له خلکو سره یې هیڅ ډول تماس نه درلود. د طالبانو د یوه عادي مقام د لیدلو له پاره ډېر زیات او فوق العاده تلاښ او انتظار ته اړتیا وه.

ویلای سم چي متوکل صاحب، په دغه ډول یوه نظام کي زما سره په تېره بیا د ضروري ملاقاتونو د ترتیبولو په برخه کي ډېره زیاته مرسته وکړه. د متوکل صاحب په وسیله مي د طالبانو د نظام یو له تر ټولو خطرناکو او

ظالمو انسانانو څخه، چي په ریشتیا یې هم خلک له نوم څخه بېربېدل ولیدی،
دا سړی ملابخت محمد نومېدی چي د کندهار خلکو ملا بخت ماد بالله
مُلابخت ماد د هرات دروازې له چوک سره نیژدې د پښتني تجارتي بانک
ودانۍ خپله کړې او په هغې کي یې، چي د ده د تحقیقاتو او شکنجو مرکز
وو، ځای نیولی وو. ویل کېدله چي د شپې له مخي چي د طالبانو د امنیتي
کسانو له وېري، هیڅوک دباندي وتلو جرأت نه سي کولای، ملابخت ماد په
دغه ودانۍ کي خلکو ته شکنجې او وهل ورکوي او د بندیانو چیغې په
نیژدې کورونو کي اورېدلي کېږي. ویل کېدله چي ښځینه بندیانو ته د بخت
ماد مېرمن او خوانبې سزا او شکنجې ورکوي. ما د بخت ماد له لیدلو څخه
دوې ورځې مخکي، د بندیانو د وهلو ټکولو په باب، د ملامحمدعمر یو
پیغام یا فرمان تر لاسه کړی وو، چي بیا وروسته د اسلامي امارت په رسمي
جریده کي چاپ سو او په لوستلو ارزي:

"محترمو طالبانو السلام علیکم!

تاسي ډېر ظلم مه کوی او د بیت المال سره خیانت مه کوی. هغه دا چي په
قشله جدید کي طالبانو دوه نفره پر غلا ګیر کړي وو. دواړه یې تر وهلو
لاندي مړه کړل. محکمې دوه زره لکه دیت پر بیت المال لازم کړی دی. داد
مثال په ډول نور هم داسي ډېري پېښې سوي دي چي په کیبلانو خلک وهل
کېږي. محکمې داسي فیصله کړې ده چي دغه قسم وهل د امام یا امیر اجازه
غواړي که اجازه نه وي پرې قصاص کېږي. او زه دغسي د انګریز د قانون د
وهلو اجازه نه کوم چي په کیبلانو باندی خلک وهل کېږي او په شریعت کي
زه د ځان اختیار نه سم پیدا کولای. خبر دي یاست. والسلام

د اسلام خادم آمیرالمومنین ملا محمد عمر مجاهد



د کندهار د پښتني تجارتي بانک په انګړ کي یو سماوار وو او مخي ته یې
یو پراخ کټ پروت وو. په سماوار کي مي ځان ته چای را وغوښتې او په
ملابخت ماد پسي مي سړی واستاوه. ملابخت ماد ته مي وویل چي زه د
امریکا بږغ راډیو خبریال یم او متوکل صاحب درته را لېږلی یم. بخت ماد د
خپل آواز ثبتېدلو ته نه حاضرېدی او له ټایپ ریکارډر پرته مي د پوښتنو په
سلسله کي ورته وویل چي ویل کېږي ته بندیانو ته ډېر سخت وهل ورکوې او
پښې او لاسونه یې ورماتوې. ملا بخت ماد رټ منکر سو او یوه بندي ته یې
چي په انګړ کي په کوم کار لګیا وو، بږغ کړه. بندي یو خوارځواکی ډنګر
سړی وو او بخت ماد له هغه څخه لومړی د چرسو څکولو په باره کي پوښتني
وکړې. بندي، چي له بخت ماد څخه سخت بېرېدی، په ژړه غوني آواز وویل
چي ملاصاحب ستا په نمک که مي په دې دریو میاشتو کي یو دود هم کش
کړی وي. ملابخت ماد ماته مخ را واړاوه او ویل یې دغه بندي ما وهلی دی،
مګر نه یې پښې او نه یې لاسونه مات دي. وروسته یې بندي ته مخ واړاوه او
ویل یې ځه ورک سه چي بیا دي ونه وینم. بندي د پښتني تجارتي بانک له
ودانۍ څخه په تاخت ووت او آزاد سو. په هغه ورځ مي د کندهار امنیه
قوماندان ملاعبدالحق ته، چي ډېر ښکلی، اخلاقي زلمی وو او عمر به یې
ایله شل دوه ویشتو کالو ته رسېدی، وویل چي ملابخت ماد ښایي غوښتل
ما ته خپل عدالت را وښیي مګر دا خو په ضمن کي ستاسي د نظام بې
انتظامي ښیي. ځکه چي د دې بندي خو نه د بندي کېدلو او نه د خوشي
کېدلو درک معلوم سو او نه یې په کومه دوسیه کي نوم او سزا قید سوه.
قوماندان صاحب یوازې ومسل؛ ځکه چي د ویلو له پاره یې څه نه درلودل.
په ښار او د طالبانو تر لاس لاندي ټولو سیمو کي امنیت ټینګ وو؛ او سړی
په جرأت سره ویلای سي چي طالبانو بس دغه یوه ښېګڼه درلوده او نور یې

هيڅ داسي څه نه درلوده چي د يوه ټولنيز نظام له پاره لازم وي. لوی ملاصاحب پر له پسې فرمانونه صادرول او له سهاره تر ماښامه يې خلک تهديدول. چا چي د هغه له اوامرو څخه سرغړونه کوله ډېر سخت مجازات کېدل. په يوه فرمان کي يې د ږيرو پرېښودلو امر کړی وو او ويلي يې وه چي د ږيري خريل کبيره ګناه ده او د ولاياتو او اولسواليو مسوولين بايد خلک د ږيرو پرېښودلو ته مجبور کړي او څوک چي ږيره خريي هغه ته دي سزا ورکړي. په داسي حال کي چي د اسلامي شريعت په هيڅ معتبر کتاب کي د ږيري خريل کبيره څه چي صغيره ګناه هم نه ده بلله سوې. ځکه چي کبيره ګناه د قرآن شريف له احکامو څخه سر غړونه ده او په قرآن شريف کي د ږيري په باب له سره ذکر او يا دونه نه ده سوې. په بل فرمان کي يې د سګرېټ څکول منع کړي او ويلي يې وه چي په آينده کي سګرېټ څکول مطلق بند دي. په جواز او نه جواز کي به څوک خبري نه کوي. په بل فرمان کي يې ويلي وه چي خلک بايد لمونځونه پر ټاکلو وختونو ادا کړي. ملايان به د سهار له لمانځه څخه وروسته دېرش دقيقې د مذهب سره سم د دين فرض احکام او عقايد تدريسوي او مقتديان مجبور دي چي د هغوی خبرو ته غوږ ونيسي او ورته کښېني.

ملايي کلتور له لويه سره په بچه بازي بدنام وو او ډېري زياتي کيسې به يې کېدلي. څرنګه چي طالبان زياتره او يا حتی تقريبا ټول مجرد خلک ول نو قوماندانانو او معتبرو طالبانو به په جبهو او مرکزونو کي پی مخي هلکان ورسره ساتل. لوی ملاصاحب دې خبري ته متوجه وو؛ خو کوښښونو يې چنداني نتيجه نه وه ورکړې او په دې برخه کي يې تر پرله پسې اخطارونو وروسته يو فرمان صادر کړ چي " که څه هم چي څو واره درته ويل سوي دي چي د طالبانو سره بايد په دلګيو او محاذونو کي لغړزني (بې ږيري) نه وي



او سه هم دا خبره پوره نه ده عملي سوې. لغړزني بيا هم درسره ليده کېږي او س بيا هم و هر مسوول و هر طالب ته زما امر دی چي د هر چا سره لغړ زنی وي بايد جواب يې کړي او په آينده کي بيا ويلو ته بايد ضرورت نه سي پاته او که دا وار هم اطاعت و نه سي نو مجبوراً به مجرم ته لازمه جزا ورکړه سي " دغه او دغه راز نور فرمانونه د طالبانو د رسمي جريدې په ۷۸۸ نمبر ګڼه کي خپاره سوي دي. طالبانو د خپلو فرمانونو په عملي کولو او د سګرټو او چرسو څکولو، عکس اخيستلو، موسيقۍ اورېدلو، ټلويزيون درلودلو او کتلو، لويو او فيشني وېښتانو پرېښودلو او هره برخه کي په سختي مداخله کوله. د خلکو وهل ټکول او سپکاوی کول، ښځو تهديدول او په بازارونو کي د زلميانو د وېښتانو قيچي کول د ورځي موضوع وه. يو غريب سړی مي وليدی چي د سړک پر غاړه يې د ټيپونو او راډيو ګانو د ترميمولو په ګناه دونه ډېر وهلی وو چي پښه يې ورماته کړې وه. هغه ماته وژړل او ويل يې خدای دي دا حکومت د روسانو کړي، خدای دي يې د يهودانو کړي، خدای دي يې پېر ته ګل آغا راولي، خو له دوی څخه مو دي خدای خلاص کړي.

په کندهار کي مي يوه ورځ يوه عجيبه صحنه وليده چي هم د تعجب، هم د خندا او هم د زړه سوي وه. د هرات دروازې څخه دباندي مي يو طالب وليدی چي له قهره يې ستر ګي سرې وې، بګړۍ يې په غاړه کي لوېدلې وه او په تناو تړلي ټلوېزيون يې ورپسي کشاوه. د ښار واړه ماشومان ورپسې وه؛ چا خندل او څوک همداسي چوپ ورپسي روان ول. ماته يې کټ مټ د خپل ماشوموالي هغه لېوني را په ياد کړل چي کله، کله به نيم بربنډ بازار ته راوتلي ول او موږ ماشومانو به ملنډي ورپوري وهلې او آزار به مو ورکاوه.

په کندهار کي د ورځو شپو په ترڅ کي د ښووني او روزني د رئيس دفتر ته، چي د معمول سره سم يو مولوي وو، ورغلم. هغه راته وويل چي د کندهار په

ټول ولایت کي، د لوی خدای په فضل، د ښووني او روزني کارونه سم پرمخ روان دي. البته د هر ښوونځي پوښتنه چي مي ورڅخه کوله ویل به یې چي هغه اوس بند دی ځکه چي حاجیان پکښې پراته دي. بالاخره یوازي د میرویس نیکه لیسه له حاجیانو څخه فارغه وه او هغې ته ورغلم. د ښووني او روزني رئیس راته ویلي وه چي په دغه ښوونځي کي تقریبا یو زر پنځه سوه شاګردان په درس لګیا دي. خو کله چي زه ورغلم نو ایله پنځوس شپېته تنه شاګردان مي ولیدل. په دې ترڅ کي مي یو عجیب صنف ولیدی چي ښایي په نړۍ کي به یې ډېر لږ مثال ولیده سي او ښایي د لوستونکي بېخي زړه ته ونه لوېږي. په هغه ټولګي کي یوې خواته ماشومان ناست وه چي عمرونه یې له اوو څخه تر نهو کالو پوري وه او بلې خواته ځوانان ناست ول چي زیاترو یې ږیري درلودلې او په زړه پوري خو دا وه چي دواړو ټولګیو ته یو ښوونکی ولاړ وو او بېل، بېل درسونه یې ورکول.

په اداره کي مي خپل د مکتب د وخت لایق استاد نورالحق خان ولیدی چي اوس یې هم د ریاضیاتو درس ورکاوه. له ادارې څخه د راوتلو سره، یوه ښوونکي را پسي را وځغاستل او راسره پر څنګ سو. په غوږ کي یې راته وویل چي جهاني صاحب دوی چي هر څه درته ویلي دي ټول یې دروغ ویلي دي یوه خبره به یې نه منې. نه مکتب سته نه تعلیم او تربیه سته؛ د دوی خبري او تبلیغات تشي پروپاګندې دي. یوه هفته مخکي یو طالب راغی له ټولګي څخه یې دباندي را وایستلم او راته ویې ویل چي که دي بله ورځ شاګردانو ته ویلي وه چي مځکه ګردې ده په... به دي لرګي در ومنډم.

په کندهار کي مي درې څلور ورځي تېري کړي وې چي یوه ورځ متوکل صاحب راته وویل چي اندیوالان دي راغلي دي. ما ویل څوک؟ ویل یې نبي مصداق، سیدمحمد کارواني او جنرال رحمت الله صافی له لندن څخه راغلي دي او د طالبانو په مېلمستون کي اوسېږي. سمدستي د هغوی لیدلو ته ورغلم. تر ستړي مسې او جوړ په خیر ویلو وروسته، د یوه ګړي خبرو له پاره، دباندي را ووتلو. دوی درېو واړو ماته ویل چي دوی ته داسي ښکاري چي د کندهار په سلو کي نیوي خلک له طالبانو څخه ناراض دي. ما ورته وویل چي دا لس فیصده راضي مو له کومه کړه. ما خو له کوټي څخه تر کندهار پوري یو سړی راضي نه دی لیدلی. دوی ویل دا خو سمه خبره سوه؛ ګواکي ته هم زموږ په عقیده یې او زموږ ملګری یې. دوی ویل زموږ وظیفه به دا وي چي طالبانو ته به ریښتیا، ریښتیا خبري کوو او حقیقت ته به یې متوجه کوو. البته ما د طالبانو د مقاماتو په مخ کي له دوی څخه یکي یوه د حقیقت خبره وانهورېده. موږ له متوکل صاحب سره یا هغه له موږ سره وعده وکړه چي سبا ماپښین به له ملامحمدعمر سره ګورو. سبا ماپښین مي متوکل صاحب ولیدی او هغه راته وویل چي دوی په ماپسي ډېر وګرځېدل؛ زه یې پیدا نه کړم نو د لندن ملګري، چي ټول په مېلمستون کي حاضر ول، ملاصاحب ته ورغلل او خپلي خبري یې ورته وکړې. دوی که څه هم چي زما سره ناځواني وکړه او پرته له ما ملاصاحب ته ورغلي ول خو کله چي مي پوښتنه ورڅخه وکړه چي ملاصاحب ته یې د خلکو د نارضاییت په باره کي څه ویلي دي؛ یوه هم سم جواب رانه کړ او ماته معلومه سوه چي، د کړي وعدې په خلاف یې، ملا صاحب ته اصلاً هیڅ نه دي ویلي او، د نورو عوامو او غوړه مالانو په څېر یې، د هغه د خوشالولو لپاره هر څه پر لار بللي دي.

کندهار ته زما د رسېدلو په اوومه یا اتمه ورځ مي له لندن څخه د راغلو مېلمنو سره یو ځای په الوتکه کي کابل ته حرکت وکړ. کابل ته د رسېدلو سره سم مو د طالبانو د اطلاعاتو او کلتور وزیر امیرخان متقي، چي یو جګ، نسبتاً چاغ او ډېر ښکلی ځوان وو، هرکلی وکړ او د ماښام تر ډوډۍ پوري له

هغه سره پاته سولو. مابنامنۍ مو ډېره ساده ډوډۍ وه او ما پخپله له ډېر خوند ورڅخه واخیست. د ډوډۍ تر خوړلو وروسته انټرکانټیننټل هوټل ته بوتلو. ما په سبا سهار له خپل هنرمند دوست او د افغانستان د ټلوېزیون او راډیو له سندرغاړي عبدالرحمن رحماني سره، چي کورنۍ اړیکي سره لرو، تماس ونیوی او له هغه سره په کور کي ډېره سوم. زما ملګري، چي په هوټل کي یې شپې وې، تقریبا هره ورځ مجبور ول چي په راډیو کي د طالبانو د نظام له پاره تبلیغ او مصاحبې وکړې او ما یکي یوه مصاحبه ځکه ونه کړه چي ریشتیا د دوی په کار نه وه او دروغ ما ویلای نه سوای.

کابل د مجاهدینو د تنظیمونو ترمنځ په جنګونو کي دونه خراب سوی وو، چي یو ښار ښایي د ګاونډي هیواد سره په جنګ او بمباریو کي هم دونه خراب او تباه نه سي. مجاهدینو پر دې بې مالکه ښار باندي دونه بېرحمانه ګولۍ اورولي وې چي هیڅوک به یې د دښمن پر ښار باندي هم ونه اوروي. د کابل ځیني سیمي خو په بشپړه توګه او په لوی لاس تباه سوي وې او ځیني سیمي یې لا یو څه د ګوزارې وې، خو داسي سیمه او حتی داسي وداني پاته نه وه چي د مجاهدینو ګولۍ پرې لګېدلې نه وي. په جرأت سره ویلای سم چي له کابل سره د مجاهدو جګړه مارانو په څېر جفا، په ټول تاریخ کي، هیچا نه وه کړې. زما په څېر افغانانو له پاره چي په کابل کي یې د پوهنتون او زلمیتوب د مستو شپو خاطرې ورڅخه درلودلې او د نازه به یې کابل جان باله دا غم لړلی حالت یوه وحشتناک خوب ته پاتېدی او بل یې په هیڅ توګه بیان نه سي کېدلای.

په کابل کي د لنډي اوسېدني په شپو ورځو کي د مرحوم رشادصاحب کورته ورغلم. زما په لیدلو یې له سترګو بې اختیاره اوښکي رواني سوې.



استاد ډېر قوي سړی وو؛ ما د هغه د اوښکو انتظار نه درلود. خو څرنګه چي هم د شاعرانه احساس او نازک زړه څښتن وو، هم د کابل وروستیو حالاتو زهیر کړی وو، هم یې عمر زیات سوی، هم یې د روغتیایي وضعیت چنداني مزه نه وه او هم یې زه څه باندي پنځلس کاله وروسته لیدلی وم نو اوښکي ډېري غیر طبیعي نه وې. په هغه ورځ، زما له ښې طالع، مرحوم ډاکټر محمود حبیبي، مرحوم وکیل صاحب نورمحمد خان او مرحوم عبدالخاق واسعي صاحب هم موجود ول. ټولو د طالبانو د نظام له اجرآتو څخه شکایت کاوه او هر یوه ویل چي دا حالت دوام نه سي کولای. محمود حبیبي په خپلو خبرو کي ویل چي که خدای مه کړه بیا پر کابل باندي یوه بله ټکه را ولوېده نو په خدای قسم دی چي که بیا د کابل په ښار کي څوک په کلونو پښتو واوري او یا په دې ښار کي کندهارۍ بګړۍ او څپلۍ ووینې. له طالبانو سره موږ په ګټه کي شریک نه یو خو په تاوان کي به ټول ورسره یو. څه وخت وروسته، چي محمود حبیبي او پوهاند رشاد دواړه ژوندي ول، د حبیبي صاحب پېش بیني ریشتیا سوه. هغه څه مو په سترګو ولیده چي ده یې له تصور کولو څخه وېره درلوده.

د کابل هر اوسېدونکي، دوکاندار او ټکسي والا د مجاهدینو د حکومت د څلورکلن وحشت او بربریت داسي کیسې کولې چي له سړي څخه به کندهار او په هغه ښار کي تېر سوی وحشت هېر سو. خلکو د بې ګناه انسانانو د وژل کېدلو، له ښځو څخه د تیو د پرې کېدلو، په سرونو کي د مېخونو د ټک وهل کېدلو، د کورونو او میکروریانونو د مالکانو د حلالولو، چور او تاړاک، بې ناموسیو او حتی د دارلمجانین د لېونیو ښځو په زور بې عزته کولو داستانونه بیانول. یوه خبره، بېله مبالغې، د کابل د تقریبا ټولو خلکو په خولو کي وه او هغه دا چي " خدا ډاکټر صاحب نجیبه

بیامرزه، به خدا چیزي را که گفت راست گفت. نجیب گفته بود که اگر مجاهدین به کابل بیایند درین شهر حمام خون جورخواهد شد و قسمیکه نجیب گفته بود همو طور شد"

په کابل کي مي دونه دربدري او فقر ولیدی چي په هیڅ صورت مي تصور نه سو کولای. هري خوا ته چي به سړی روان سو نو وږي او نیم بربنډ ماشومان به د سېل په شان پسي روان ول. له دوکان څخه دي سودا نه سوه اخیستلای. رستوران ته نه سوای ختلای. له جېبه دي پیسې نه سوای راایستلای. چا ته دي خیرات نه سو ورکولای؛ ځکه په هر صورت کي به دونه ماشومان او گدایي گر لویان پیدا سول چي مړول او چاره کول یې یوازي په خدای تعالی اړه درلوده. داسي حالت وو چي سړي ته ډوډۍ خوند نه ورکاوه. اخیر خپل وطن وو؛ او په هیڅ توگه پر دې حال نه پېرزو کېدی. صاحب منصبانو، مامورینو او تحصیلکرده کسانو گدایي کوله. نسبتاً ځوانو صاحب منصبانو او تحصیل کړو خلکو جوالي گري کوله، کراچۍ یې چلولې او یا که به یو څه خوشبخته وو او یو څو غیرانه به یې درلودل نو د مېوې یا زړو کالیو او ارزانه سامانونو د خرڅلاو ربړۍ به یې چلوله.

مجاهدینو پر کابل داسي حالات راوستلي وه چي تر دې بدتر اصلاً ممکن نه وه او کابل په خپل تاریخ کي هیڅکله داسي شرایط لیدلي نه وه. له کندهار څخه ډېرو تاجرانو او نسبتاً شتمنو کسانو خپل زکواتونه کابل ته لېږل؛ ځکه چي د کابل خلک، د مجاهدینو د حکومت په وخت کي، دونه ځپل سوي او خوار سوي ول چي د کندهار تر غریبانو او نېستمنو خلکو زیات مستحق گڼل کېدل.

کابل اوس بیرته نسبتاً اباد دی او ډېري ښې لوړي او ښایستې ودانۍ پکښي جوړي سوي دي؛ او د مجاهدینو د وخت د تباهیو آثار زیاتره ورک



سوي دي. مگر د هغوی د وحشت او بربریت د هغي دورې ټول عکسونه او ویډیو گاني پاته دي او سړی نه پوهېږي چي مجاهدین او د هغوی مشران څرنگه لا د جهاد او مجاهد په نوم افتخار کوي، لا په دې نامه نه شرمېږي او خلک هم ځکه هیڅ نه سي ورته ویلای، چي اوس یې هم بیرته د افغانستان د چارو واگي، پولیس او قانون ټول په لاس کي دي او لا د امریکایانو د لښکرو او قدرت له برکته هر یو تر پخوا سل چنده قوي سوي او سرمایه دار سوي دي.

په کابل کي مو له پنځو شپو تېرولو او د طالبانو له ځینو مقاماتو سره تر لیدلو وروسته د جلال آباد پر لور حرکت وکړ. په دې سفر کي د طالبانو مشهور هنرمند او شاعر فقیر محمد درویش د طالبانو په استازیتوب زموږ مېلمه پالنه کوله. له کابل څخه تر جلال آباد پوري د گړندي موټر څه باندي دوه ساعته لار مو، د سړک او پلونو د خرابۍ له امله، په تقریبا اتو ساعتونو کي ووهله. په جلال آباد کي مو له ماښامنۍ څخه وروسته په یوه نسبتاً لوی صالون کي مشاعره هم درلوده. ما د دې مشاعرې له پاره هیڅ تیاري نه درلوده او خپل "د مرغلرو امېل" په نوم یو آزاد شعر مي له یاده ولووست. په دې مشاعره کي ډېرو زیاتو طالب او غیر طالب ځوانانو برخه واخیستله. دونه ښکلي شعرونه مي واورېدل چي د کابل غم لړلی حالت یې را څخه هېر کړ. په هغه شپه مي یقین راغی چي دا مېړنی اولس د مرگ له پاره نه دی پیدا سوی. د پښتو ژبي شعر د باروتو په لمبو کي داسي وده کړې وه چي نوري ژبي یې د زرغونو پسرلیو د گلونو په لمنو کي نه سي کولای. زما یقین راغی چي تر څو جهان ژوندی وي د پښتو شعر او ادب به ورځ تر بلي ښکلی کېږي.

په سبا مو د انار گل په عنعنوي مشاعره کي برخه واخیستله. ځان مي دونه ښکمرغه احساساوه لکه چا چي مي تاج پر سر را ایښي او د ټول وطن د

پاچهی مبارکي یې راکړې وي. ما کندهارۍ لونګۍ تړلې او ږیره مې هم یو څه رسېدلې وه. هیڅ چا ته ځکه د پېژندلو نه وم چې شپاړس کاله مخکې مې له وطن څخه هجرت کړی وو. کله چې انانسر اعلان وکړ چې اوس به له لیرې ملکونو څخه راغلی مېلمه ښاغلی عبدالباري جهاني خپل شعر درته ووایي نو خلک چې زما ږغ او نوم یې د امریکا ږغ راډیو څخه ډېر اورېدلی وو، په تېره بیا زما څنګ ته ناست خلک، هک پک او ضمناً خوشاله سول. د نارنج ګل له پاره مې خاصه تیاري نه درلوده او خپله یوه بله غزل مې ورته ولوستله:

یوه لحظه دي مخ ته ودرېدم خدای په امان
پردېسو هیلو ته مې وژړېدم خدای په امان
زه لکه اوښکه بیا مې تمه د راتللو نسته
پر ښایسته باړخو دي ورغړېدم خدای په امان
که مې غرور که مې ځواني وه نذرانه مې کړله
پښو ته ولوېدلم و رژېدم خدای په امان
ستا د شغلې بلا ګردان سوم د پتنګ په رسم
تر سر دي وګرځېدم و تپېدم خدای په امان

ستا د نامه مینه مې وکړل د مرګ تر پولو
د دار په پړي درته ونښېدم خدای په امان
پر سر مې بلې کړې لمبې چې لاړي ورکي نه کم
چېرته پردې ولات کي وسوځېدم خدای په امان
زه د ګلونو په بستر کي نصیب نه منلم
لکه شبنم در څخه وغورځېدم خدای په امان
یوه سوم چې نوري مې د پلونو نخښې پاته نه دي



زه لکه سیوری دلته وهستېدم خدای په امان
بیا مې نوم د چا ماشوم خوبونه نه زنګوي
لکه کیسه له یاده ووتلم خدای په امان
نور جهاني ستا د محفل د یادولو نه دی
یوې برېښنا په شاني وځلېدم خدای په امان

په حاضرینو کي مې پر مرحوم محمد اکبر معتمد شینواري باندي، چې د پښتو ټولني او د علومو د اکاډیمۍ همکار مې وو، سترګي ولګېدې چې له دواړو سترګو یې د اوښکو لړۍ روانه وه او دغه راز مې دوه درې نور کسان هم ولیدل چې په سرو سترګو یې ژړل. معتمد صاحب مې په غېږ کي ټینګ ونیوی او دا مو وروستی دیدن سو؛ ځکه چې تقریبا یو کال وروسته د الوتکي د لوېدلو په پېښه کي وفات سو. د مشاعرې برخه والو، چې اکثر د ننګرهار، کنړ او لغمان او سېد ونکي ول، دونه مینه راکړه او هر یوه دونه په غېږ کي ونیولم چې د زړه په زور مې د اوښکو د بهېدلو مخ ونیوی.
د مشاعرې له ختمېدلو څخه وروسته مو کابل ته حرکت وکړ او په کابل کي مو له دوو شپو تېرولو څخه وروسته کندهار ته د پرواز نیت وو. په هوایي میدان کي د الوتکي سره نیژدې دونه ګڼه ګوڼه او دونه بې نظمي وه چې تقریبا هر څه له کنټروله وتلي وه. زموږ مېلمنو سره د طالبانو د فواید عامې وزیر او د علومو د اکاډیمي رئیس ولاړ وو. زموږ څخه لږ ها خوا ته څو ښځې، چې برقې (چادري) یې اغوستي وې، ناستي وې. یوه په قد ټیټ، ډنګر ژړ مخي طالب هغو ښځو ته څو ځله وویل چې له الوتکي څخه لیرې سي خو هغوی یې په خوله ونه کړه. وروسته یې یوه ښځه په لښته ووهله او ښځو ته یې داسي پوچ او سپک کلمات استعمال کړل چې د قلم پر ژبه نه راځي. لږ

کړی وروسته د دریو وژل سویو طالبانو تابوتونه هم را ورسېدل او داسې ښکارېده چې الوتکه دغو تابوتونو ته معطله ده. درې څلور ټیپان هم په الوتکه کې ځای پر ځای سول. الوتکې ته یو ډنګر طالب را پورته سو او د سورلیو سره ورسره مکتوبونه یې کتل. د فواید عامې وزیر ورته وویل چې زه وزیر فواید عامه یم. طالب په ډېر وچ آواز ورباندې چیغه کړه چې وزیرېې هر څوک چې یې مکتوب لرې کنه؟ وزیر صاحب زموږ په مخ کې ډېر خړ سو. الوتکې پرواز وکړ او زه د کندهار په هوایي ډګر کې له ملګرو څخه بېل سوم.

## له ملا محمد عمر سره لیدنه:

کندهار ته د رسېدلو په سبا متوکل صاحب راته وویل چې ماپښین یې له لوی ملاصاحب سره زما د ملاقات له پاره ترتیب نیولی دی. کله چې ماپښین له وعدې سره سم د متوکل صاحب دفتر ته ورغلم نو زما د پوهنتون د وختونو د درې متونو استاد سید خلیل الله هاشمیان مې هم ولیدی چې د ملاصاحب سره ملاقات کولو ته یې انتظار ایستی.

ملا محمدعمر یا لوی ملاصاحب یو عجیب مرموز شخصیت وو. د هغه ژوند او مرګ دواړه معمی وه. هغه له لومړۍ ځوانۍ څخه د شوروي د سرو لښکرو په مقابل کې په جهاد لاس پوري کړ او د مجاهدینو د طالبانو په ډله کې، چې اکثریت یې د ده په څېر پاک او سپېڅلي خلک وو ودرېدی. که څه هم چې له لومړي سره ډېر زړه ور سړی وو. په جنګونو کې یې یوه سترګه ړنده سوه او څو ځله وویشتل سو او زخمي سو؛ خو د یوه زړه ور سرګروپ په حیث پاته سو او د قوماندانانو په کتار کې یې چا نوم وانه ورېدی. د طالبانو له خوا خپاره سوي اطلاعات وایي چې د افغانستان څخه د شوروي قواوو له وتلو وروسته یې له خپلو ډېرو ملګرو سره یو ځای له جنګ څخه لاس



واخیست. وسلې یې په خاورو کې ښخې کړې او بیرته یې په امامت کولو او د ابتدایي دیني کتابونو تدریس ته مخه کړه. په افغانستان کې د نجیب الله د رژیم د سقوط سره سم د مجاهدینو آفت نازل سو. مجاهدینو، چې تر دې مخکې یې هم په خپلو جبهو، په تېره بیا ماله جات کې د نه ویلو جنایتونه کړي وه، د قدرت د نیولو سره سم یې په خلاص لاس قتلونو، غلاوو، سړي تښتونو، بې ناموسیو او هر څه ته لاس واچاوه. د دې مجاهدینو یو له ترټولو لویو جنایتکارانو څخه د صالح په نوم د سیاف د تنظیم یو قوماندان وو چې له نامه څخه یې د سنځري او سنګ حصار د علاقو خلک بېرېدل. بیا هم د طالبانو او د طالبانو له قوله خپاره سوي اطلاعات وایي چې ملامحمد عمر هم د صالح بدنامي پوستې ته په نیژدې علاقه کې امامت کاوه او یوه ورځ د سیمې خلکو د هغه د داسې جنایتونو او بې ناموسیو کیسې ورته وکړې چې د ملامحمدعمر وجدان یې د زغملو توان نه درلود. پر خپلو ملګرو یې ږغ وکړ، وسلې یې واخیستې، تر هر څه مخکې یې صالح په سزا ورساوه. وروسته یې د کندهار په بېلو بېلو سیمو کې د مجاهدینو بدنام قوماندانان یو په بل پسې تسلیم کړل.

البته خبره دونه ساده هم نه وه. د طالبانو سره د مجاهدینو د مرکزونو او وسلو په تسلیمولو او سیمو او ښارونو لاندې کولو کې د پاکستان د حکومت، په تېره بیا آی ایس آي بشپړه مرسته ملګرې وه. ما د امریکا ږغ راډیو د یوه خبریال په حیث په هغه وخت کې ټول جریانات تعقیب کړي او مرکې مې کړي دي.

ملامحمدعمر د خپل اووه کاله امارت په اوږدو کې یوه ورځ هم له کندهار څخه ونه ووت. ویل کېږي چې په هفته کې یې یو ځل د اخوندصاحب زیارت، چې د کندهار د ختیځ په تقریبا دېرش میله فاصله کې پروت دی، کاوه؛ او

نوریې نو له کور او دفتر له شاوخوا څخه چنداني حرکت نه کاوه. د دوه زره یو کال په پای کې، چې د کندهار سقوط یقیني سو، نو خپل واک یې د دفاع وزیر ملا عبیدالله ته ورتسلیم کړ. له طالبانو څخه یې هیله وکړه چې د هغه د امر اطاعت وکړي او پخپله تری تم سو. دومره ورک سو چې د کابل حکومت او د امریکا او پاکستان استخبارات د هغه له وفات څخه دري کاله وروسته په خبر سول چې ملاصاحب ډېر پخوا مړ سوی دی. کله چې د ملامحمدعمر د ژوند د وروستیو شپو ورځو په باب د ژورنالیستي بیتې ډېر کتاب خپور سو نو ایله دنیا خبره سوه چې ملامحمدعمر د پاکستان په روغتون کې نه بلکه پخپله په افغانستان کې، د زابل په ولایت کې، د امریکایانو پوځي اډې ته نیژدې اوسېدلی او په هغه ځای کې وفات سوی او خاورو ته سپارل سوی دی.

د ملاصاحب سره زموږ ملاقات په یوه عجیب او غریب ځای کې وو چې ما یې هیڅ تصور نه سو کولای. د ولایت په وداني کې تر زینو لاندي یې یوې تاریکي کوټې ته رهنمایي کړو. کوټې کړکۍ نه درلوده او یوازې د دروازې د نور په وسیله روښانه کېدله. د کوټې په پای کې د ناستو کسانو مخونه مې د تیارې له امله، هیڅ ونه لیدل. ملاصاحب پر یوه چارپایي ناست وو او زموږ له ورتللو سره راته ولاړ سو. زما سره تر روغبړ او جوړ په خیر، چې زیاتره ښهاري ته ورته وو، د هاشمیان صاحب واری سو. هغه د واره په غېږ کې ونیوی او پر چپه سترګه یې، چې د روسانو په جنګ کې ړنده سوې وه، مچ کړ. هاشمیان وویل چې په امریکا کې یې له ځان سره ژمنه کړې وه چې ملاصاحب به پر شهیده سترګه مچوي. هاشمیان صاحب وروسته ملاصاحب ته وویل چې په امریکا کې یې له هغه سره بیعت کړی دی او کندهار ته یوازې له اسلامي امارت او ملاصاحب سره د بیعت د تازه کولو له پاره راغلی دی.



ده خپلي مجلې پر انیستلې او ملاصاحب ته یې وویل چې په امریکا کې یې د هغه او د طالبانو د نظام په باب ډېر زیات مضامین لیکلي او خپاره کړي دي. زه شک لرم چې ملاصاحب به د هاشمیان په خبرو سم پوه سوی وي او که پوه سوی وي نو د هغه د کار او فعالیت په اهمیت به نه وي پوه سوی او یا به یې ښایي چنداني اهمیت نه ورته درلود.

د هاشمیان د خبرو له پای ته رسېدلو سره سم، ملاصاحب ماته مخ را واړاوه. ما د خپلو خبرو په سر کې وویل چې زه خوږې خبري نه لرم. ما له کندهار څخه تر کابل او جلال آباد پوري د طالبانو له نظام څخه هیڅوک راضي نه دي لیدلي. موږ د اسلام په دین نه پوهېږو او خلک هم د اسلام د دین له تطبیقېدلو او عملي کېدلو سره هیڅ ډول مخالفت نه لري خو هغوی د اسلام د دین په تطبیقولو کې ستاسي له سلوک څخه په عذاب دي. ما ورته وویل چې پرون سهار زه د کابل په هوایي ډګر کې ولاړ وم. ستاسي یوه طالب یوه ښځه په لښته ووهله او په داسي الفاظو یې ښکنځل ورته وکړل چې ما ته د مجلس ادب د هغو الفاظو د تکرار اجازه نه راکوي. څو ورځي مخکي مي ستاسي هغه فرمان لوستی دی چې د خلکو له وهل کېدلو سره مو مخالفت ښودلی دی؛ مګر هغه سړی چې خلک یې په وهلو کې وژلي دي پر هغه ځای باندي ناست دی او هغسي وهل کوي. ما ورته وویل چې پر دغه ځای چې تاسي ناست یاست دا د میرویس نیکه مسله او د احمدشاه بابا میراث دی. دا یوازې د خلکو او اولسونو په ملاتړ ساتل کېږي او ستاسي په مقابل کې د ګل آغا او اسماعیل خان د ماتېدلو علت دا وو چې هغوی د خلکو ملاتړ له لاسه ورکړی وو. که تاسي هم خدای مه کړه د خپلو خلکو ملاتړ له لاسه ورکړی نو د هغوی په سرنوشت به اخته سی. ما خپلي خبري د دې له پاره بس کړې چې ملاصاحب به ګوندي یو څه ووایي خو هغه هیڅ ونه ویل او

سمدستي ولاړ سو. یوه طالب یې مچۍ مخي ته ورته کښېښودلې او ده مور ته د خدای په اماني په توګه غېږه راکړه. دوې ورځي وروسته مې د پاکستان له لاري د امریکا پر لور حرکت وکړ.

ما په امریکا کي له ملاعباس ستانکزي، ملاعبدالحکیم مجاهد، مولوي وکیل احمد متوکل او په کابل کي د افغانستان بانک له رئیس مرحوم مولوي احسان الله، امیرخان متقي او له ګڼ شمېر طالب لیکوالانو او شاعرانو سره کتلي وه. دا ټول ډېر هوښیار خلک ول؛ ښې خبري یې زده وې او ښه تحلیلونه یې کول. سړی نه پوهېږي چي په دومره هوښیارو کسانو کي دومره ساده سړی، چي د هو او نه کلمه یې زده نه وه او یا به یې قصدا خبري نه کولې څرنګه د طالبانو د رهبر په توګه انتخاب سوی یا ټاکل سوی وو. آیا ملامحمدعمر په ریښتیا هم دومره مظلوم او معصوم وو چي زما د پوښتنو جواب یې لږترلږه په یوه جمله هم نه سوای راکولای؟ که مې پر یوه فرمان او یوه عریضه باندي د ده دوه غبرګ لاسلیکونه نه وای لیدلي، چي بېله شکه د یوه بېسواده سړي لاسلیکونه وه، نو به مې ګومان کولای چي هغه ته د نه خبرو کولو هدایت ورکړه سوی دی. خو زه یقین لرم چي هغه بېچاره، چي زما د ساده پوښتنو په مقابل کي ګونګی او بې جوابه پاته سو، په همدغه اندازه بېسواده او ناپوه سړی وو. لکه څرنګه چي د هغه مړګ څه باندي دري کاله پټ پاته سو؛ او حتی د افغانستان لویو استخباراتي ادارو ته یې هم پته ونه لګېده؛ د دونه لوی او مسوول مقام له پاره د هغه ټاکل کېدل به هم تر ډېره وخته پوري د اسرارو په پردو کي پټ وي.

په امریکا کي مې د طالبانو له نظام سره خپل مخالفت اعلان کړ او په مرکو کي مې وویل چي طالبانو یوازي ښه امنیت ټینګ کړی دی او نور نو خلک هیڅ نه لري. زموږ د یوه قومي مشر په قول چي امنیت خو تر بل هر ځای په



بندیخانه کي قایم وي؛ مګر بندیخانه خو څوک نه پر ځان او نه پر دوستانو پېرزو کولای سي.

له افغانستان څخه امریکا ته تر راستنېدلو وروسته لومړی غزل مې، چي هم یې د ګیلې، هم د درد او هم د خبرداري رنګ درلود ولیکله:

خالي دي میکدې نه سي چي زه بیرته راځم
خُماري دي پیالې نه سي چي زه بیرته راځم
یوسف مي د خوبونو د تعبیر پر لارو ورک دی
رڼا ورځي دي شپې نه سي چي زه بیرته راځم

لښکر د رقیبانو مي په سترګو دی لیدلی
کوڅې دي هدیرې نه سي چي زه بیرته راځم
وهده مي په سکروټو کي منزل ته رسېده وه
دا سرې لمبې سړې نه سي چي زه بیرته راځم
قسمت مي وزرونه ستا محفل کي دي سوځلي
دا شمعي دي تبارې نه سي چي زه بیرته راځم
جانانه ستا په سترګو لنډوم دا توري لاري
تیاره درنه ډېوې نه سي چي زه بیرته راځم
جنون مي ستا په کلي کي باران د کاڼو غواړي
خالي درنه کوڅې نه سي چي زه بیرته راځم
ازل او جهاني دی لېونتوب سره منلی
بېغمه زولنې نه سي چي زه بیرته راځم

تردې وروسته مې چي هر څه غزلي او نظمونه لیکلي دي نو په یوه ډول نه یوه ډول د افغانستان له حالاتو څخه شکایت انعکاس پکښې کړی دی. د

سباوون په تمه او وروسته د شپېلۍ په نوم شعري مجموعې مې د دغه راز شعرونو او نظمونو څخه ډکې دي. که زيات مثالونه راوړم نو يوازې به زه او شعر سره پاته سو.

طالبانو په کندهار کې د لومړني قدرت څخه نيولې بيا د امريکايي الوتکو او وسلو په مقابل کې د جنګ او قدرت تر بايللو پورې څه باندې اووه کاله پاچهي وکړه. هغوی، د خپل قدرت په دوره کې، خلکو ته يوازې امنيت ورکړ او هغه امنيت هم هره ورځ او هر ګړی د توپک او شلاقې تر سيورې لاندې وو. يوازې امنيت نه خلکو ته ډوډۍ او نه کار روزګار ورکولای سوای. طالبانو خلکو ته د امنيت د ورکولو په بدل کې له هغوی څخه هر ډول ازادي، چې انسان د اوبو او خوړو په څېر اړتيا ورته لري، اخيستې وې.

طالبانو که څه هم چې د مجاهدينو وحشت ته يې خاتمه ورکړه؛ خو خلکو ان له لومړۍ ورځې هغوی ته د شک په سترګه کتل. هغوی د افغانستان او د هغه هيواد د اولسونو د ترټولو لوی دښمن پاکستان، چې زموږ د هيواد د ټولو وروستيو بربادیو او تباهيو عمده عامل وو، د پوځيانو او استخباراتي اداري آی ايس آی پر اوږو او مستقيمه حمايه قدرت نيولی وو. خلکو د سر په سترګو وليدل چې هغوی د پاکستان د داخله وزير متقاعد جنرال نصيرالله بابر او د آی ايس آی د مامورينو کرنيل امام، مېجر ګل او پوځي سلاکارانو سره يو ځای، د سپين بولدک له لارې، کندهار ته ننوتل او د مجاهدينو قوماندانان يې يو په بل پسې وځغلول. هغوی د خپلو سختو قوانينو او احکامو د عملي کولو له پاره له وهلو ټکولو او بې آبه کولو څخه نيولې تر هر ډول وحشت پورې کار اخيست او بالاخره لا اداري فساد، چې په لومړي سر کې يې په ډېره بده سترګه ورته کتل، هم پکښې پيل سو. هغوی په داخل کې د خپلو سختو پاليسيو او وهلو ټکولو له امله، دونه منفور سول چې هرچا يې د سقوط او له منځه تللو خواست کاوه؛ او په بهر کې، لوېديځې نړۍ، په تېره بيا متحده ايالاتو، د هغوی د تجريدولو او ګوښه کولو له پاره هر څه وکړل خو له هغوی سره يې د خبرو او روغې جوړې او يا احتمالي پر لار کولو له پاره هيڅ ونه کړل. داسې ښکاري چې متحده ايالاتو د افغانستان له پاره خپلې نورې نقشې درلودلې او وروستيو پېښو وښودله چې امريکا له لويه سره له طالبانو سره د روغې جوړې خيال نه درلود. د طالبانو وروستی لېونتوب د باميان د مجسمو ورانول وه چې د ټولې نړۍ قهر او غوسه يې را وپارول او پر خپل تابوت باندې يې وروستی مېخ وواهه. ضمنا يې اسامه بن لادن ته، چې د مجاهدينو د مقاومت له کلونو څخه د هغوی د حکومت تر وخته يې د افغانانو په منځ کې ځای نيولی وو او امريکا په نړۍ کې خپل تر ټولو خطرناک دښمن بللی وو، هم پناه ورکړې وه او امريکا ته يې پر افغانستان باندې د يرغل کولو له پاره ښه پلمه برابره کړه. البته بن لادن پر افغانستان باندې د امريکا د بمباريو په لومړۍ مرحله کې د توري بوړې له لارې پاکستان ته وتښتېدی او باقي پاته قتل عامونه او د پښتنو پر سر او مال باندې تېرې د هغوی د خپل پلان سره سم عمليات وه. امريکا، د نړۍ د يوه زورور په حيث، د افغانستان د تباه کولو فيصله کړې وه له دې فيصلې څخه چا ګرځولای نه سوای.

### د دوه زره يو کال د سپټمبر يوولسمه:

د دوه زره يو کال د سپټمبر پر اوومه يوه ناڅاپي پېښه، چې تقريبا هيچا يې انتظار نه درلود، منځته راغله. د مجاهدينو د ايتلاف يا د طالبانو په مقابل کې د مقاومت مشر احمدشاه مسعود، په يوه مرموزه حمله کې، چې تر اوسه يې هم سم درک نه دی معلوم، ووژل سو. نړيوال لا د دې پېښې د علت او

ځرنګه والي په ځېړلو او عواقبو لګيا ول چي د مياشتي په يوولسمه ورځ د سه شنبې په سهار د نيويارک تر ټولو دوو جګو ودانيو سره، چي د نړۍ وال تجارتي بانک مرکز وو، دوې مسافر وړونکي الوتکي يو په بل پسي وجنګېدلې او ودانۍ چي د نيويارک د ښايست او عظمت له سمبولونو څخه شمېرل کېدلې په يوه ګړۍ کي له خاورو سره برابري سوې. ويل کېږي چي تر دريو زرو تنو پوري پکښې ووژل سول. په همدغه ورځ يوه بله الوتکه د امريکا د دفاع د وزارت په وداني پينټاګان کي ولوېده او يوه بله مسافروړونکې الوتکه د پينسيلوانيا په ايالت کي را وغورځېده يا را ورغورځوله سوه. د دې لويي پېښې د علتونو او ځرنګه والي په باب په سل ګونو مضامين او کتابونه ليکل سوي دي؛ خو چا داسي څه نه دي وړاندي کړي چي عمومي قناعت دي حاصل کړي. د امريکا د حکومت او د هغه د ملګرو هيوادونو رسمي نظر دا دی چي دا پېښه اُسامه بن لادن، چي امريکا خپل تر ټولو خطرناک دښمن بللی وو، طرح کړې او عملي کړې ده. دا چي دا پېښه ځرنګه منځته راغله هغه به راتلونکي ته پرېږدو خو دونه معلومه ده چي په دې پېښنو کي څلورو لويو مسافروړونکو الوتکو برخه درلوده او پکښې سپاره ټول نولس تنه ځان مرګي عربان ول چي اکثريت يې د سعودي عربستان اتباع وه.

د امريکا جمهور رئيس جورج بوش په يوه شپه خپل قضاوت بشپړ کړ، اُسامه بن لادن يې د دې حملو مسوول وباله او له طالبانو څخه يې د هغه د تسليمولو غوښتنه وکړه. طالبانو د هغه غوښتنه ونه منله؛ او د امريکا د دې ادعا په باب يې چي ويل يې د سپټمبر د يوولسمي حملې د اُسامه بن لادن کار وو، د ثبوت او اسنادو غوښتنه وکړه. امريکا نه اسناد درلودل او نه يې امريکا دونه کمزوری هيواد باله چي د طالبانو په څېر يوه کمزوري نظام ته



ځان مسوول او د اسنادو په وړاندي کولو مجبور وګڼي. نړيوالو، د امريکا متحدينو او ملګرو ملتونو هم په پټو سترګو د امريکا ادعاوي ومنلې او د هرډول مرستي وعده يې لا هم ورسره وکړه.

بوش افغانستان ته د جنګ اعلان ورکړ. د المان د بُن په ښار کي يې يوه ساختګي جرګه جوړه او د اولسمشر د ټاکلو له پاره يې حتی د خپلو ساختګي انتخاباتو د نتيجې په خلاف حامد کرزی، چي دا وخت يې د امريکا تر چتر او هدايت لاندي د روزګان په ولايت کي د طالبانو په خلاف، په اصطلاح، مقاومت پيل کړی وو، د راتلونکي اولسمشر په حيث وټاکی. امريکايانو د نومبر په مياشت کي پر افغانستان باندي بمبارۍ او حملې پيل کړې. امريکايانو ، په همدغو شپو ورځو کي، د مشرقي مشهور قوماندان حاجي عبدالحق لوګر ته واستاوه او هلته يې په طالبانو ووا‌ژه. ځکه چي ويل کيږي قوماندان عبدالحق په هر صورت تر حامد کرزي ځان مستحق باله او داسي احتمال موجود وو چي ښايي حامد کرزي ته ستونزي پيدا کړې. البته دا ټولي پېښې د ډېرو پټو او ژورو دسيسو محصول دي او ښايي ډېر کلونه لا څوک د قضيو په ماهيت پوه نه سي.

امريکايانو ټول هغه جنايتکاران او داړه ماران چي، د (۱۹۹۲م.) يم کال څخه تر (۱۹۹۶.م) کال پوري يې، د افغانستان او په تېره بيا کابل د تباهۍ او بربادۍ مستقيم مسووليت درلود او دا وخت يې د شمال د ايتلاف يا د بي بي سي راډيو په اصطلاح شمال ټلوالي نوم پر ځان ايښی وو، د ډيموکراسۍ او عدالت د ممثلينو او د سولي او کرارۍ د فرشتو د لښکر په حيث مخي ته واچول او په ټوله بې شرمي، بې وجداني او سپين سترګي يې بيرته هغه مظلوم اولسونه چي يوازي خدای يې ناره اورېدلای سوای د دوی ناولو منګولو ته وسپارل. اُسامه بن لادن، چي د دوی اصلي دښمن وو، د دوی د

خپلو مزدورو قوماندانانو حاجي زمان او حضرت علي څخه پاکستان ته وتښتېدی او د افغانستان د بې دفاع او بې صاحبه ملک بمبارۍ دوام وکړ. د انټرنیټ معلومات وایي چې امریکایانو د شلمې پېړۍ د وروستۍ لسیزې د نیمايي څخه د رواني پېړي د دوه زره یوولسم کال د مۍ تر دوهمې پورې، چې اُسامه یې د پاکستان په ایبټ آباد کې د یوې پوځې اډې څنګ ته وواژه، د هغه په پیدا کولو او وژلو څه باندې درې ټریلیونه ډالره ولګول. البته دا رقم د منلو وړ نه برېښي خو موږ باید چې د یوه مدرک په حیث اشاره قدر ورته وکړو. د اُسامه بن لادن له وژل کېدلو څخه څه کم دوې میاشتې وروسته، ټول هغه یوویشت کسان چې د هغه په وژلو کې یې برخه درلوده په یوه نظامي الوتکه کې د وردګو د ولایت پر فضا باندې را وغورځول سول او ټول ووژل سول. په دې کې هیڅوک شک نه سي درلودلای چې امریکا خپل دغه عسکر، د بن لادن د وژلو د اسرارو د ساتلو په منظور، په لوی لاس په یوه الوتکه کې کښېنول او په خپلو سرېو یې، چې د طالبانو نوم یې ورکړ، له منځه یوووړل.

امریکایانو د مزار شریف په قلعه جنګي کې تقریبا درې نیم زره تسلیم سوي طالبان او عربان په منتهی بېرحمي، په داسي توګه قتل عام کړل چې ټولي نړۍ یې په ټلویزیونونو کې ننداره کوله او د بشر د حقوقو او ډیموکراسۍ تر ټولو ستر مدافع نظام د هیچا پروا ونه ساتله. او باقي پاته زیات و کم څلور زره تسلیم سوي کسان یې مشهور جنایتکار رشید دوستم ته وسپارل او هغه یې په ډله ایزو قتلولو او ډله ایزو ښخولو خپله سینه یخه کړه. امریکایانو پر افغانستان باندي د ډالرو باران جوړ کړ. اداري فساد یې داسي درجې ته ورساوه چې افغانستان په نړۍ کي دوهم مقام خپل کړ؛ او دوه قرنه وروسته به هم ونه کړای سي چې د ظاهرشاه او داوُد خان د وخت د



اداري فساد درجې ته ورسېږي. د کوکنارو کښت او کرونده یې، چې طالبانو صفر ته رسولې وه، دونه زیاته کړه چې افغانستان په نړې کې د مخدره موادو په تولید او قاچاق کي، له کلونو راهیسي، لومړی مقام لري او دا کښت او کرونده، د امریکایانو د حضور له برکته ورځ تر بلي او کال په کال زیاتېږي. قومي، ژبني او نژادي دښمنۍ او بې اتفاقۍ یې، چې پخوا به هم موجودي وې، په لوی لاس، دونه زیاتي کړې چې بیرته کرار ول او پخواني حالت ته ګرزول به یې قرنونه وغواړي. د طالبانو او دولت ترمنځ جنګونه او د دې جنګونو له امله منځته راغلي بې امنیتي ورځ تر بلي زیاتېږي او اوس افغانستان د امریکا، روسیې، چین، هند، پاکستان، سعودي عربستان، ترکیې او نورو قوتونو ترمنځ د دښمنیو، رقابتونو او ګټو د ټکرونو میدان دی. اوس د سولي او کرارۍ کیلي، چې یو وخت فکر کېدی له امریکا سره ده، له هیچا سره نسته او له ټولو سره ده ځکه چې د سولي په لاره کي خنډونه او قلفونه تر شمېر زیات دي او په هماغه اندازه کیلۍ او د حل لاري چاري ورته په کار دي.

په افغانستان کي د مجاهدینو او طالبانو د نظامونو او بې نظمیو په وخت کي، چې د ټولي نړۍ توجه په هغه هیواد کي وحشت ته اوښتې وه، امریکایي مطبوعاتو او حکومت هر وخت ویل چې په افغانستان کي یې د کمونیستي نظام له چپه کېدلو څخه وروسته هغه هیواد ته شا واړوله او د دوی دغه کار په افغانستان کي د ټولو بې نظمیو او بربادیو علت سو. په داسي حال کي چې خبره اصلاً سرچپه ده. په حقیقت کي، د شلمي پېړۍ د وروستیو لسیزو څخه تر اوسه پوري، د افغانستان د ټولو تباهیو او بدمرغیو یو عمده عامل د هغه هیواد په ټولو چارو کي، د امریکا مستقیمي او غیر مستقیمي مداخلې دي. د مجاهدینو د تنظیمونو ټولو مشرانو د

افغانستان د کمونیستي نظام او په وروسته کي د شوروي اتحاد د سرو لښکرو په مقابل کي د امریکا او د هغه د متحدینو د پیسو او وسلو په زور مقاومت وکړ. او د مقاومت په جریان کي د امریکا یکي یو نازولی ضایع نه سو. وروسته یې د طالبانو په مقابل کي، د امریکا د وسلو او پیسو په زور، په اصطلاح د مقاومت سنګرونه تاوده وساتل. او پر هغه بې دفاع او بې صاحبه ملک باندي د امریکا د وروستي یرغل په نتیجه کي بیرته د امریکا هغه پخواني نازولي، چي په افغانستان کي د ټولو جنایتونو مسوول ول، قدرت ته ورسېدل او نن ټول د امریکا پر دسترخوان باندي ناست دي او د امریکا د ډالرو او مرستو له برکته، هر یو، د سل ګونو میلیونو ډالرو او ملکیتونو څښتنان دي او د امریکایي ډیموکراسۍ په سیوري کي خپلو جنایتونو، د مخدره موادو تولید او قاچاق، د ښځو او بشر پر حقوقو تېریو، اداري فساد او ټولو بدیو ته لا هم دوام ورکوي.

بده به نه وي چي دلته د مجاهدینو له پاره د امریکا د حکومت د استازي پیټر ټامسن د هغه کتاب یو څو ټکي را واخلو چي د افغانستان جنګونه تر عنوان لاندي یې لیکلی دی. پیټر ټامسن د خپل کتاب په پنځه سوه اووه نیوي یم او اته نیوي یم مخونو کي لیکي" د سي آی آې د نیژدې ختیځ د څانګي د رئیس مرستیال ګېري شروین د دوه زره یو کال د سپټمبر پر شپږویشتمه پنجشېر ته ولاړ او دا ځل یې په یوه تور بکس کي څلور عشاریه نهه میلیونه ډالره ورسره اخیستي وه. په هغه وخت کي، د افغانستان د طالبانو په مقابل کي د شمال ایتلاف تر ټولو غښتلې قوه وه. په دې جبهه کي اکثریت تاجیکان وه مګر احمدشاه مسعود د هر توکم خلک پکښې شامل کړي وه. د شمال د ایتلاف نوي مشر جنرال محمد قسیم فهیم، ډاکټر عبدالله عبدالله او د شمال د ایتلاف د استخباراتو رئیس انجنیر سرور عارف له



شروین څخه وغوښتل چي د ایتلاف د وحدت خیال وساتي او قوماندانانو او سیاسي مشرانو ته جلا جلا پیسې ورنه کړي.

شروین دا خبره ونه منله. هغه فهیم، عارف او عبدالله ته وویل چي دا د متحده ایالاتو پالیسي ده چي د شمال د ایتلاف ټولو قوماندانانو ته جلا جلا پیسې ورکړي؛ مګر د شمال د ایتلاف د چوکاټ له لاري همکاري ورسره ونه کړي. شروین او د سي آی اې نورو ټیمونو او د متحده ایالاتو قوماندانانو په دې توګه د شمال ایتلاف د امریکا تر مستقیمي اغېزې لاندي کاوه. شروین یو عشاریه اووه میلیونه ډالره فهیم، عبدالله او عارف ته ورکړل. جنرال عطا محمد ته یې دوه سوه پنځوس زره ډالره ورکړل او سل زره ډالره یې عبدالرب رسول سیاف ته ورکړل. متحده ایالاتو له دې وروسته فهیم ته د میاشتي پنځه میلیونه ډالره ورکول. د شمال د ایتلاف قوماندانانو او د افغانستان په نورو سیمو کي له قوماندانانو سره د متحده ایالاتو دغه راز جلا، جلا مرستو هغه یو ازیني پوځ کمزوری کړ چي دغه ایتلاف تازه جوړ کړی وو. په مطبوعاتو کي دا پوځي قوت د شمال په ایتلاف مشهور وو مګر په هغه کي داخلو تاجکو، اوزبکو، هزاره او پښتنو قوماندانانو هر یوه جلا جلا له امریکا څخه پیسې ترلاسه کولې او د هغوی له امر سره سم یې عمل کاوه"

## کابل ته زما دوهم سفر:

د دوه زره دوهم کال د جنوري دریمه یا څلورمه ورځ به وه چي زموږ د امریکا ږغ راډیو امریکایي آمر ریچارډ سکاټ راته وویل چي، په عاجل ډول، افغانستان ته تلای سې؟ ما سمدستي ورته وویل چي همدغه ګړی تیاریم. له هغې نېټې تر اوسه پوري زیات وکم پنځلس ځله، په رسمي او

شخصي توګه، افغانستان ته تللی يم.

له امريکا څخه کابل ته لا مستقيمي الوتني نه وې او له واشنګټن څخه ډهلي او له ډهلي څخه کابل ته ولاړو. د بګرام له هوايي ډګر څخه مستقيم د حامد کرزي د جمهوري رياست افتتاحيه مراسمو ته ورغلو. په هغه ورځ داسي ګنګوسې وو چي د شمال د ايتلاف ځيني مهم غړي په دې مراسمو کي ګډون ته نه حاضرېږي او امريکايانو يو په يو ګډون ته کولو ته مجبور کړي دي. تورن اسماعيل خان، چي وروسته سمدستي ستر جنرال سو، د شمال د ايتلاف تر ټولو مشرانو وروسته راغی او کرزي د خپلي وينا په منځ کي مخ ور واړاوه او په جګ آواز يې وويل "اونه برادرم اسماعيل خان آمد، خوش آمديد، خوش آمديد، مانده نباشيد، صفا آورديد، زنده باشيد" د وينا په منځ کي دا بېځايه خوش آمند، لکه څرنګه چي زموږ او د بل هر چا پر غوږونو بد ولګېدی، په هغه اندازه يې هم په نوي پيوند سوي حکومت کي سخت اختلافات څرګندول او هم يې د کرزي بېچارګي، بې وسي او کمزوري ښودله. کرزی په دې نوي مقام، چي ښايي، څه موده مخکي به يې، هيڅ انتظار نه درلود، دونه خوشاله او له خوښيه دونه مست وو چي دې خبرو ته يې چنداني توجه کولای نه سوه. خپله وينا يې په دې دعاييه بيت پای ته ورسوله.

الهی تو آن کن که انجام کار
تو خوشنود باشي و ما رستګار

يقيني خبره ده چي د کرزي صاحب دا دعا به نه وي قبوله سوې؛ ځکه چي د هغه حکومت په څه باندي دوولس کاله کي يکي يو داسي کار و نه کړ او يا يې د کولو وس پيدا نه کړ، چي په هغه دي يا خدای تعالی او يا د هغه بنده



ګان ورڅخه خوشاله سوي وي. له دې افتتاحيه غونډې څخه وروسته هغه په ارګ کي يو لوی بين المللي خبري کنفرانس ورکړ، چي ښايي تر دغي نېټې به يې په کابل کي ساری نه درلود. له کنفرانس څخه وروسته هر څوک په خپل کار پسې سو.

له اوږده سفر څخه ستړی ستومان وم؛ او په يوه هوټل کي مي، چي اوس مي نوم هېر دی، په ډېرو خواريو ځای پيدا کړ. هوټل د افغانستان د پيسو په تناسب، په غير منصفانه ډول، ګران وو. د يوې تياره او سړې کوټې له پاره يې سل ډالره راڅخه واخيستل او د ډوډۍ او چايو په بدل کي يې، چي انصافا يې نه ډوډۍ د خوړلو او نه يې چای د څښلو وې، دوولس ډالره را څخه واخيستل. په کابل کي، چي اوس حاضر د امريکا او ناټو له اووه لس کلن اشغال څخه وروسته د برېښنا چنداني درک نسته، په هوټلونو کي د برېښنا او تودو اوبو انتظار تمه کېدلای نه سوه. که مي له امريکا څخه سفري بستره راسره وړې نه وای ښايي تر سهاره مي له يخنيه خوب نه وای کړی. سهار د غسل کولو له پاره تودې اوبه نه وې او که موجودې هم وای نو له تشناب څخه بهر هوا دونه سړه وه چي تر غسل کولو وروسته زُکام او حتی سينه بغل کېدل حتمي وه. په سبا مي په انټرکانټيننټل هوټل کي، چي د طالبانو په وخت کي مي يوه شپه پکښې تېره کړې وه، د شناخته وزيرانو په وسيله، ځای پيدا کړ. که څه هم چي د کابل په دې نسبتاً لوکس هوټل کي هم د برېښنا او تودو اوبو چنداني درک نه وو، خو تر مخکني هوټل يې وضع ډېره سمه وه. لږترلږه اطاقونه يې يو څه پاک او ډوډۍ يې مطمينه وه. هغه نازولی هوټل چي تالارونه به يې په علمي کنفرانسونو او سيمينارونو ښکلي ول په دې حالت کي د ليدلو نه وو. د هوټل له دروازې څخه د ډوډۍ خوړلو تر ځايه پوري لوی لوی پلاستيکي لګنونه کتار پراته ول او له سهاره

ترمابنامه د اطاقونو د تشنابونو اوبه پکښې تویېدلې. په ځینو ځایونو کې خو د تشنابونو چټلې اوبه په دومره تېزۍ څڅېدلې چې په تقریبا یوه ساعت کې به یې لوی لګن ډک کړ او د لوښي د خالي کولو او بیرته راوړلو په وخت کې به یې د هوټل فرش لوند او چټل کړ. کابل لا هماغسې کنډواله وو او د ګوزارې له پاره یې چنداني کورونه نه درلودل. وزیران او زیاتره معینان، تقریبا ټول، په همدغه هوټل کې اوسېدل او د ډوډۍ او سبا ناري پر وخت به پر هر مېز باندې، کله، کله، درې وزیران ناست ول. ما ځکه په هغو شپو ورځو کې هوټل ته د وزیریستان نوم ورکړ. د وزیرانو اطاقونه، چې ځینو ته یې سویټونه ورکړي وه، زموږ نورو عادي مېلمنو تر اطاقونو نسبتاً بهتر وه. څرنګه چې ما په وزیرانو کې، څلور پنځه ملګري درلودل نو د تودو اوبو او هري ورځې غسل کولو ستونزه مې تر یوه ځایه حل وه.

کابل ته د سفر او د کرزي د اولسمشرۍ د پرانیستل کېدلو په دریمه ورځ ارګ ته ولاړم. جمهور رئیس کرزي، د خپل عادت سره سم، زما سره د یوه اولسمشر په حیث نه بلکه د یوه دوست په حیث ډېر تود او له خلوصه ډک سلوک وکړ. له خپلې رسمي چوکۍ څخه پورته سو او د مېلمنو په چوکیو کې راسره کښېناست. د کرزي په ښو صفتونو کې یو ښه صفت د هغه خانزادګي ده. په دفتر او کور کې د مېلمه دونه عزت کوي چې سړی فکر نه کوي دا به جمهوررییس وي؛ بلکه د یوه عادي کور به شکل لري. د جمهوري ریاست په وخت کې او له جمهوري ریاست څخه وروسته یې دفتر او کور له مېلمنو څخه ډک وو.

ما له کرزي صاحب سره وطني د زړه خواله کوله چې یو ناڅاپه قسیم فهیم، چې د کرزي په نوي جوړ سوي حکومت کې یې د دفاع د وزیر وظیفه درلوده، د اولسمشر دفتر ته را ننووت او دروازه یې، په ډېره بې نزاکتۍ، خلاصه



پرېښوده. په چوکۍ کې یې پښې اوږدې وغځولې او کرزي ته یې ویل چې "ازینجه تېر میشدم ما ګفتم یک پرسان شمارا کنم" هغه، لکه څرنګه چې بې پوښتنې او بې هدفه راغلی وو، یو څو بې ځایه او ګډې وډې خبرې وکړې او پر هغه دروازه چې راغلی وو بیرته ووت. جمهور رئیس کرزي، چې په څېره کې یې خپګان له ورایه ښکارېده، د هغه د دې بې نزاکتۍ او بېځایه راتللو په باب هیڅ ونه ویل. او موږ خپلو خبرو ته دوام ورکړ.

د کرزي یوه عجیبه اداره وه. امریکایانو، له لومړۍ ورځې، له ارګ څخه دباندې، د حکومت ریښتوني واک اختیار د شمال ایتلاف ته ورکړی وو او په ارګ کې د ننه، چې د کرزي پاچهي ګڼله کېدله، کرزي پخپله خپل ځان په کمزورو او غوړه مالو عناصرو احاطه کړی وو او په هغوی کې یکي یو داسې سړی نه وو چې د یوې ښې مشورې حساب ورباندې سوی وای. ګواکې سړی ټوله ګناه پر امریکایانو او خارجیانو نه سي اچولای بلکه، که د ارګ د کمزورو عناصرو له امله هر څه خرابۍ سوې وي نو ګناه یې د کرزي په غاړه ده. زه جمهور رئیس کرزي تر لس ځله زیات ماښامنۍ ته بللی یم او هر ځل مې د هغه په کور کې یو تر بل خراب مجلس لیدلی دی. ما هر ځل ویلي دي چې د کرزي صاحب په مجلس کې ناستو کسانو د یوه بېسواده اولسوال په مجلس کې د ناستي وړتیا نه درلوده. د کرزي صاحب د هري شپې د ماښامنۍ وخت، چې کېدلای سوای د پوهانو او سیالانو سره ګټوري خبري پکښې سوي وای؛ او یوه نیمه ښه مشوره یې هم اخیستې وای، له غوړه مالانو او نااهلانو سره تېرېدی.

## کابل ته زما دریم سفر:

د دوه زره دوهم کال د اپریل په میاشت کي، د امریکا رِږغ راډیو په داسي حال کي کابل ته ولیږلم چي وطن ته د ظاهرشاه د ستنېدلو آوازې ګډي وې. کډمي پخوا د ظاهرشاه د محبوبیت او نه محبوبیت په باب څه اورېدلي وه؛ اوس مي په خلکو کي د هغه محبوبیت د سر په سترګو لیدی. ما په کابل کي، له لس هاوو بېسوادو او با سوادو خلکو سره مرکې وکړې او د هیڅا له خولې مي د هغه په باره کي منفي نظر وانه ورېدی. د جنوبي پښتانه او کندهاریان او په عمومي صورت پښتانه او د کابل خلک ډېر ورته خوشاله ول. په اکبرخان مېنه کي د ظاهرشاه د کور د ترمیم کارونه په بېړه روان وه او په شاوخوا کوڅو کي د ورځي او د شپې ګزمې کېدلې. بالاخره د ظاهرشاه د راتللو ورځ را ورسېدله. زموږ د انتظار په خلاف، د کابل د ښهرنو څخه نیولې، تر اکبرخان مېني او بیا د کابل تر بین المللي هوايي ډګر پوري ټول سړکونه له خلکو خالي ول او یوازي موټرونه نه بلکه پیاده لاروي هم تلاښي کېدل. د شمال د ایتلاف لنډه غرو، چي پر موټرونو یې د احمدشاه مسعود لوی لوی عکسونه نښلولي ول، د ګل آغا شېرزي د ملګرو د موټرونو څخه د ظاهرشاه عکسونه شکولي او سورلیو ته یې سپکي سپوري ویلي وې. هوايي ډګر ته، د ظاهرشاه د هرکلي له پاره تر محدود هم لږ خلک راغلي وه او د میدان په یوه کونج کي، لکه د جنازې موټر ته چي انتظار باسي، پټه خوله ولاړ ول. په زړه پوري خبره خو داده چي داخله وزیر یونس قانوني د هوايي ډګر د امنیت او د خلکو د خاموش ساتلو وظیفه، د ظاهرشاه یوه طرفدار وزیر عبدالخالق فضل ته سپارلې وه او هغه هم په ډېره وفاداري خپله وظیفه سرته رسوله. فضل څو ورځي وروسته ماته پخپله، په ډېر افتخار، وویل چي قانوني صاحب خپلو منصبدارانو ته وویل چي نن ورځ زه ستاسي آمر نه یم بلکه ټول



امنیت او صلاحیت د فواید عامې د وزیر صاحب عبدالخالق فضل په لاس کي دی.

موږ خبریالان یې د یوه لاری، موټر باډی، ته پورته کړي وو او د لیري مو د ظاهرشاه د راتللو ننداره کوله. د غرمې پر مهال، یوه الوتکه کښېته سوه. ټولو فکر کاوه چي د ظاهرشاه الوتکه به وي؛ خو له هغې څخه هیڅوک راکښېته نه سو. بښه ډېر ګړی، ښایي پنځه شلو ښت دقیقې وروسته، به وه چي یوه بله الوتکه کښېنستله او ښه ګړی وروسته ظاهرشاه ور څخه کښېته سو. په میدان کي د منتظرو خلکو خواته، چي ښایي پنځه شپږ ساعته به یې انتظار ایستلی وو، په ورو ورو ګامونو روان سو. د جنوبي خلک، چي د اتڼ له پاره یې ترتیبات نیولي وه او ډول یا ډولونه یې شاته پراته وه، همداسي چوپه خوله او بې حرکته ولاړ ول. د شمال د ایتلاف د بدماشانو له وېري چا حرکت نه سو کولای. ظاهرشاه له راغلو خلکو سره د لاس روغبړ وکړ او د امنیتي کسانو په بدرګه د کور پر خوا رهي سو. ټول مراسم د یوه ژوندي مسافر او ګران او محترم مېلمه د راتللو او استقبال نه بلکه د یوې درنې او ویرجني جنازې په څېر تېر سول. د ماښام د اتو بجو د خبرونو پر وخت، چي باید د ظاهرشاه د راتګ رپوټ یې ورکړی وای، برېښنا قطع سوه. داسي ښکاري چي د ټلوېزیون په سټوډیو ګانو کي هم برېښنا قطع سوې وي ځکه چي په هغه شپه هیچا د ظاهرشاه د راتګ مراسم نه وه لیدلي.

ظاهرشاه به ډېري کمزوری، درلودلي وي؛ او د دې لوی علت دا وو چي هغه د خپلي پاچهۍ په لومړیو دېرشو کالو کي د ارادې کولو او مستقل تصمیم نیولو او عمل کولو له قوت څخه محروم پاته سوی وو. او ټول دېرش کاله یې د دیکتاتورو اکاګانو او د کاکا د زوی او اخښي سردار داؤد خان تر لاس لاندي تېر کړي وه. ګواکي د پاچهۍ نوم د ده وو او قدرت د هغوی په لاس

کي وو. کله چي ایټالیې ته مهاجر سو نو د بې قدرتۍ او کمزورۍ دا بد عادت یې، چي د یوه سیاستمدار له پاره تر ټولو لوی عیب او نقص دی، ورسره وساتی. په ایټالیه کي یې خپل ټول واک خپل زوم او د کاکازوی سردار عبدالولي ته، چي ښایي د ظاهرشاه د کورنۍ تر ټولو نالایقه، خودخواه او سرټمبه سړی به وو، وسپاره. ظاهرشاه په خپلو زامنو کي، لېترلږه، یو تن هم د سیاست له پاره ونه روزی. د هغه دوهم زوی شهزاده نادر خو هیڅ وخت د سیاست سړی نه وو او ټول عمر یې د موسیقۍ له هنر او ګیټار ږغولو سره تېر کړی وو. خو د هغه دوه نور زامن شهزاده احمدشاه او شهزاده میرویس مي څو څو ځله له نیژدې ولیدل. دا غریبان دومره بېچاره ول چي د سیاست په باب یې یوه کلمه تر خوله ایستلای نه سوای او میرویس خو دومره بې جرأته وو چي د سردار ولي په مخ کي یې له خولې څخه یوه خبره نه وتله او په مجلس کي به، لکه بې زړه ماشوم آرام، ناست وو.

امریکایانو، خپل ټاکلي جمهور رئیس حامد کرزي ته د قانونیت او مشروعیت بخښلو په منظور، د اضطراري لویي جرګې له پاره، چي ښایي له لومړي سره به یې په نظر کي درلوده، ترتیبات پیل کړل. افغانستان د سیاسي عجایباتو ملک دی او هره عجیبه یې په یوه کتاب خبرو ارزي. په دې سلسله کي دغه امریکایي لویه جرګه، چي د نورو مخکنیو او تر دې وروسته لویو جرګو په څېر، په هیڅ صورت د افغانستان د خلکو د ارادې ښکارندوی نه وه، یوه تراژیکه کمیډي وه. د جرګې په ټولو چارو کي د امریکایانو مستقیمي مداخلې د هغې اعتبار، که یې احیاناً درلودی، نور هم کمزوری کړ.

د جرګې (۱۵۰۰) تنه غړي، چي هیڅوک یې په انتخاب او د انتخاب په طرز خبر نه سول، د د دوه زره دوهم کال د جون پر لسمه د لویي جرګې په خېمه کي راغونډ سول. پیټر ټامپسن، چي د امریکا د فقید جمهور رئیس رانالډ ریګن



له زماني څخه د مجاهدینو د تنظیمونو له پاره د امریکا د حکومت خاص استازی وو، د افغانستان جنګونه په نوم کتاب شپږ سوه یو څلوېښتم مخ کي لیکي چي د دې یو زره پنځه سوه تنو څخه نهه سوه تنه د ظاهرشاه طرفداران ول او فیصله یې کړې وه چي د هیواد د راتلونکي مشرتابه له پاره به هغه ته رایه ورکوي. حقیقت دا دی چي خلکو د دې فیصلې حق هم درلودی ځکه چي یو خو یې د ظاهرشاه د واکمنۍ په وخت کي د امنیت او آرامۍ مزه لیدلې وه او بل دا چي د سر په سترګو یې لیدل چي د کرزي نظام، چي اساس او بنسټ یې پنجشیریانو جوړ او، مستقیما د امریکایانو له خوا رهبري کېدی. دوی تمه درلوده چي ظاهرشاه به ګوندي داسي نظام منځته راوړي چي د پردیو تر مستقیمي اغېزې به لاندي نه وي.

زه او د بي بي سي خبریال خپلو اک ساپې د جون پر نهمه د ظاهرشاه کورته ولاړو او له سردارولي سره مو مرکه درلوده. د بي بي سي خبریال له سردارولي څخه پوښتنه وکړه چي ظاهرشاه د هیواد د راتلونکي له پاره د رهبرۍ د مقام نیت لري کنه. سردارولي، چي په ژوند کي یې چا یوه هوښیاره خبره نه وه اورېدلې، سمدستي وویل چي حضوراعلیحضرت د ملت د ارادې تابع دی. د بي بي سي خبریال دوه درې ځله پوښتنه ورڅخه وکړه چي که ملت وغوښتل چي هغه دې د رهبرۍ رول پر غاړه واخلي نو د هغه جواب به څه وي. سردارولي، چي د ډیپلوماسۍ له ژبي سره هیڅ بلد نه وو، په زغرده وویل چي که ملت وغواړي نو حضوراعلیحضرت هم حاضر دی. بي بي سي راډیو په هغه ماښام دا مرکه څو څو ځله خپره کړه او لویه غوغا یې جوړه کړه. خپلواک غوښتل چي خبره سپینه کړي خو ظاهرشاه ته یې د جرګې د غونډې د جوړېدلو څخه مخکي داسي جنجال جوړ کړ چي که یې د بیرته پاچا کېدلو لږ ترلږه احتمال موجود وو هغه احتمال یې له منځه یوووړ. لویه جرګه، چي باید

د جون پر یوولسمه دایره سوې وای، یوه ورځ وځنډوله سوه.

خلیل زاد، د شمال ایتلاف او د کرزي کمپ ټول په یوه ورځ فعال سول. خلیل زاد د خبریالانو یو عاجل کنفرانس ور وباله او د خبریالانو د دې پوښتني په مقابل کي یې چي ویل یې امریکایان د ظاهرشاه په باب څه نیت لري ځوځو ځله وویل چي امریکایان د افغانستان د خلکو د ارادې درناوی کوي. البته خلیل زاد په دې ښه پوهېدی چي د خلکو اراده به لویه جرګه تمثیلوي او د لویې جرګې بشپړ واک د دوی په لاس کي دی. په هغه ورځ هم د کرزي دفتر ته د مرکې او خبرو له پاره ورغلم او هم مي ماپښین د ګلخانې د ماڼۍ په انګړ کي ولیدی. کرزی ټوله ورځ له خلیل زاد، خپل مشر ورور قیوم کرزي او نورو نیژدې طرفدارانو سره په ټلیفون کي لګیا وو. داسي ښکارېده چي د بي بي سي څخه خپرې سوي مرکې سخت وارخطا کړی دی؛ او د سمي فیصلې کولو لوری ورڅخه ورک دی. خپل ټول واک یې خلیل زاد ته، چي د هر څه واک یې درلود سپارلی وو. کله چي ماپښین د ګلخانې ماڼۍ ته ورغلم، کرزي تازه له قومي مشرانو غونډه پای ته رسولې وه او زه او کرزی د ودانۍ په انګړ کي تر منا یا چپرۍ لاندي کښېنستلو. د ماڼۍ په انګړ کي، زموږ څخه په یو څه لیري فاصله کي، یوه نسبتاً وړه خړه خېمه ولاړه وه چي زه یقین لرم امریکایان به پکښې ناست ول. دا چي مخکي به څوک ورته راغلي او وروسته به څوک ورته راغلي وي څه نه سم ویلای خو ګل آغا شېرزی او رشید دوستم مي ولیدل چي دواړه جوړه په خېمه ننوتل. لږ ګړی وروسته دواړه را ووتل او د ګل آغا خوله له خندا ډکه وه. حرکات دومره عاجل وه چي ګل آغا موږ ته متوجه نه سو او مخامخ له ودانۍ څخه ووت.

داسي ویل کېدله چي امریکایانو ظاهرشاه ته ویلي وه چي که هغه په لویه جرګه کي خپل ځان د افغانستان د رهبرۍ د مقام له پاره کاندید کړي نو د



شمال ایتلاف ګواښ کړی دی چي غرونو ته به پورته سي او بیرته به له سره جنګ پیل کړي. ظاهرشاه، چي نه یې عمر، نه یې روغتیایي حالت او نه یې طبیعت د دې تهدید د منلو او زغملو تقاضا کوله، د امریکایانو غوښتني ته تسلیم سو او د رهبرۍ له مقام څخه تېر سو. په هغه ماښام د ظاهرشاه په کور کي خبري کنفرانس جوړ سو. د کرزي د دفتر له خوا لیکل سوې ابلاغیه چي ظاهرشاه د رهبرۍ له مقام څخه د تېرېدلو او د ملت د پلار (بابای ملت) د لقب د منلو خبره پکښې سوې وه، د ظاهرشاه په یوه طرفدار سړي ولوستله. کرزی د ظاهرشاه خواته ورتېر سو؛ او ظاهرشاه، پرته له دې چي د هغه مخ ته وګوري، خپل ښی لاس ور پورته کړ او کرزي مچ کړ. د ظاهرشاه وضعیت د زړه سوي وو؛ ځکه چي په افغاني کلتور کي د یوه سپین ږیري او هغه هم د داسي یوه سپین ږیري چي یو وخت د دې ملک پاچاوو، په دغه اندازه سپکاوی پر هیچا ښه نه لګېدی.

د جون پر دوولسمه لویه جرګه دایره سوه. ظاهرشاه ډېر ناوخته جرګې ته راغی او په ډېر تکلیف یې ځان د ستېج مایکروفون ته ورساوه. په دغه وخت کي معلومه سوه چي د بیانیې متن ورسره نسته. هر څوک پوهېدی چي دا هم یو قصدي عمل دی. ظاهرشاه همداسي ناست وو. یوه سړي په تاخته وځغاستل او له موټر څخه یې بیانیه راوړه. کله چي ظاهرشاه د بیانیې په لوستلو پیل کاوه، د مایکرفون برق یې وربندي قطع کړ او هیچا د هغه له خولې یوه جمله او یوه خبره وانه ورېدله. دا صحنه د تېري شپې تر صحنې ډېره زړه دردوونکې وه. زما د خپل هیواد پر یوه سپین ږیري پاچا باندي، چي د زړه له کومي مي درناوی هم ورته درلود، دا حالت په هیڅ توګه نه پېرزو کېدی. امپریالیزم او ستر طاقتونه د کمزورو هیوادونو په سر، مال او عزت د هر ډول لوبو کولو جواز لري. د دې زړه دردوونکي صحنې څخه وروسته

کرزی، د دوو کلونو له پاره، د افغانستان قانوني! جمهور رئیس سو.

پيټر تامسن د خپل کتاب په شپږسوه دوه څلوېښتم مخ کي ليکي" متحده ايالاتو، د کرزي په ګټه، د افغانستان د مشرتابه د ټاکلو په مسله کي د ښکاره مداخلې په کولو سره يو نادر فرصت له لاسه ورکړ او افغانان يې پرې نه ښودل چي خپل مشر پخپله انتخاب کړي او هغه نړيوالو ته داسي ښکارند نه سي چي خارجيانو ورباندي تحميل کړی دی. په جرګه کي د خلکو روحيه ډېره بېخونده وه. ډېرو استازو له جرګې څخه وروسته شکايت کاوه چي دوی ته د مشر د انتخابولو له پاره فرصت ورنه کړه سو. يو ځل بيا او دا ځل امريکايانو، دوی پرې نه ښودل چي د خپلي خوښي سره سم مشر انتخاب کړي. درې مياشتي وروسته په نوي ډهلي کي د افغانستان سفير مسعود خليلي راته وويل چي د لويي جرګې له يو زر پنځه سوه وکيلانو څخه زر تنه خپلو کليو ته ولاړل او ټولو ويل چي لويه جرګه عادلانه نه وه او د مشر انتخابولو فيصله امريکايانو وکړه. د لويي جرګې په دغه جريان کي د امريکايانو ښکاره مداخلې کرزی د امريکايانو د ګوډاګي په حيث معرفي کړ...

پيټر تامپسن ليکي چي د متحده ايالاتو ډيپلوماټانو ويل چي خليل زاد د کرزي په حکومت کي هر کاره دی او هيڅ کار د هغه بې مصلحته نه کېږي؛ او کرزی هسي په نامه جمهور رئيس دی. خليل زاد په هفته کي شپږ ورځي د جمهوري رياست په قصر کي ډوډۍ خوړله او هره ورځ به يې تر ماښامه له کرزي او د هغه له سلاکارانو سره ليدل. کرزي هيڅ داسي فيصله ونه کړه چي په هغې کي خليل زاد مداخله نه وي کړې. امريکايي ډيپلوماټانو ويل چي خليل زاد کړی، ورځ لګيا وي او کرزی د خپلي خوښي سره سم کارونو ته هڅوي.



يوه تجربه کار لوېديځ ډيپلوماټ وويل چي د خليل زاد دغه سلوک د کرزي دريځ ډېر سخت کمزوری کړ. ډېرو افغانانو هغه ته د امريکايانو د ګوډاګي په سترګه کتل او دې کار د هغه مشروعيت او قانونيت ته صدمه ورسوله"

## د کرزي حکومت:

د کرزي د حکومت په باب دومره ليکني سوي دي چي زما هره جمله او هره کلمه اضافه ښکاري خو زه به هم د خپلو سترګو ليدلي يو څه اضافه کوم. لکه مخکي چي مي وويل له ارګ څخه دباندي ټول واک د شمال د ايتلاف په لاس کي وو او پخواني جمهور رئيس برهان الدين رباني، تقريبا يو کال، په بشپړه سپين سترګي، د ارګ دوهم لمبر قصر اشغال کړی وو او هيچا ښوررولای نه سوای. هغه کوم رسمي مقام نه درلود مګر هره ورځ او شپه يې مراجعين تر کرزي زيات وه. يوه ورځ زه د کرزي صاحب په دفتر کي هغه ته منتظر وم او په دفتر کي څو تنه نور حکومتي مقامات، چي زياتره پښتانه وه ، ناست وه. کرزی صاحب، په داسي حال کي چي خوله يې له خندا ډکه وه او بېخي يې ټولولای نه سوای، دفتر ته را ننووت او په ډېره خوشالي يې پر حاضرينو زېری وکړ چي استاد اجازه راکړه چي صلاح الدين ته په حکومت کي چوکۍ ورکړم. دی دومره خوشاله وو لکه د ماشوم جېب چي چا له شيريني ډک کړې وي خو ما ته د ده پر بېچارګۍ او کمزورۍ باندي افسوس ودرېدی. رباني لا څوک وو چي يوه برحال جمهور رييس ته يې د خپل زوی د مقررولو اجازه ورکوله. اصول خو دادي چي رباني بايد له کرزي څخه مننه کړې وای!

يوه بله ورځ مي له کرزي صاحب سره کافي چښله. زه د هغه د کار د مېز پر مخامخ ورته ناست وم او نور کسان د مېلمنو په چوکيو کي ناست ول. په دغه وخت کي د امنيت مرستيال، چي بارکزی بلل کېدی او پخپله پنجشېری وو،

دفتر ته ننووت. د رسم تعظیم څخه وروسته یې د کرزي صاحب په مخ کې یو کاغذ کېښېښود او د استقلال د ورځې په مناسبت یې د پنځلسو تنو له پاره د جنرالۍ غوښتنه کړې وه. کرزي صاحب کاغذ ولووست او بارکزي ته یې پورته وکتل. دا څرنګه مکتوب دی؟ د جنرالیو غوښتنه دې کړې ده مګر د اشخاصو نوم قدر هم نسته. زه چاته جنرالي منظوره کړم؟ بارکزي په ډېره سپین سترګي هغه کاغذ لیري کړ او بل کاغذ یې، چې د تقریبا پنځوسو تنو له پاره د جنرالیو غوښتنه پکښې سوې وه، د هغه مخې ته کېښېښود. کرزي ورته وویل داسي نه وي چې دا ټول کسان د یوې منطقې وي.

نه خیر

نفر اول از کجاست؟

از پنجشیر است صاحب.

نفر دوم از کجاست؟

از پنجشیر است صاحب.

نفر سوم از کجاست؟

از پروان است.

نفر چهارم از کجاست؟

نمیدانم.

بارکزي بیا هم سپیني سترګي ونیولې او کرزي صاحب ته یې وویل چې موږ به پر دې دواړو لیستونو باندي کار وکړو او بل ځل به بشپړ لیستونه، چې ټول مکمل شهرتونه، رتبې او قومونه پکښې درج وي، درته راوړو. ما په حکومتي ادارو کي لږ و ډېر کار کړی وو خو هیڅ وخت مي د یوه لوی آمر په مقابل کي د یوه مادون او مامور دومره غلط اجرآت او سپین سترګي نه وه لیدلې. کرزي صاحب ډېره پراخه حوصله درلوده.

یوه بله ورځ زه او زلمی هیواد مل د کرزي صاحب په دفتر کي ناست وو او



له هغه سره مو، د معمول سره سم، د غره او د وره کیسې کولې. په دې وخت کي د دفتر رئیس سرور صالحي دفتر ته را ننووت او د عسکري رسم تعظیم څخه وروسته یې وویل چې رئیس صاحب! آمرصاحب اسماعیل خان رخصتېږي. کرزی سمدستي له ځایه ولاړ سو. ماته یې مخ را واړاوه او ویل یې یوه دقیقه. په ډېر تلوار له دفتره ووت. زما له ډېره قهره پر سترګو توره شپه سوه ویل مي د خدای پار دی! دا څه حال دی. د هرات والي د چا زوی دی چې جمهور رئیس د خدای په اماني له پاره ورته کښته کېږي. هیواد مل ویل وروره ته د څو ورځو مېلمه راغلی یې دلته هره ورځ داسي لس کیسې پېښېږي. کرزی صاحب، په داسي حال کي چې چینه یې باد اخیستې وه او ساه یې په اوږو شړله، دفتر ته راستون سو او لکه هیڅ چې پېښ سوي نه وي ویل یې ښه څه مو ویل؟

اداري فساد به پخوا هم موجود وو؛ خو پر افغانستان باندي د امریکا او ناټو د قواوو د یرغل او اشغال له برکته، په لږه موده کي، دونه پراخ سو چې په نړۍ کي یې دوهم مقام خپل کړ. د هیواد داسي برخه نه وه چې فساد پکښې موجود نه وو. فساد دونه عام سو چې کرزي یوه ورځ په خپله وینا کي له مامورینو څخه غوښتنه وکړه چې زه پوهېږم چې تاسي رشوتونه اخلئ. مګر دا پیسې بهر ته مه وړئ او په خپل هیواد کي یې لګوئ.

په دې اړه کیسې دونه زیاتي دي چې یو بشپړ کتاب ورباندي لیکل کېدلای سي. خو یوه کیسه چې زما له پاره ډېره په زړه پوري وه هغه دا چې زموږ د امریکا ږغ راډیو همکار مرحوم اکبر ایازي، یوه دوره، کابل ته ولاړ او کله چې بیرته راستون سو نو ما پوښتنه ورڅخه وکړه چې څه عجایبه دي ولیده. ده راته وویل چې ګل اغا شیرزی، چې دا وخت به ښایي د ښار جوړولو وزیر وو، په ښوونځي کي د ده همصنفي وو. دی په کابل کي د هغه د لیدلو دپاره

د هغه کورته ولاړ. د کور په مېلمستون کې بلا ډېر خلک ناست ول. د غرو او د ورو خبري کېدلې. په دې مایین کې یو سړی د ګل آغا شېرزي یاور ته، چې هغه هم تورن جنرال سوی وو، ور نیږدې سو ویل یې په کندهار کې مې د مځکي دعوه ده. زما خپله مځکه زورواکانو را څخه لاندي کړې ده. په محکمه او ښاروالي کې ډېري پیسې راڅخه غواړي. ته وزیر صاحب ته ووایه چې که دغه دعوه راخلاصه کړي. یاور په ډېر لوړ آواز، چې ګل آغا هم اورېدی، سړي ته وویل عجیبې خبري کوې!! د حاجي وزیر صاحب کار په خپل وزارت کې بند وو، په خدای قسم دی چې په پیسو مې ورخلاص کړ.

په کندهار کې د منډیګک ماڼۍ، چې د دولتي مهمانخانې حیثیت لري، ګل آغا په کندهار کې، د خپل ولایت په وخت کې، په خورا ډېرو پیسو آباده کړه. په دې ودانۍ ډېري زیاتي پیسې لګېدلي دي. البته د نورو ډېرو دولتي پروژو په څېر، د دې پروژې لګښت هم نه چا ته معلوم او نه به معلوم سي. د قاسم په نوم، یو د منځني عمر سړی، د دې مهمانخانې یو مستخدم دی، چې د معتبرو مېلمنو د مهمانداري وظیفه لري. کندهار ته زما د یوه سفر په ترڅ کې، زه په دې مېلمستون کې اوسېدلم. دا وخت اسدالله خالد د کندهار والي وو. د والي مرستیال محمد قادري، په مېلمستون کې زما د هستوګني په سبا زما د لیدلو او احترام کولو له پاره راغی. ښه ګړی سره کښېناستلو او له هري خوا مو خبري سره وکړې. ده وعده وکړه چې سبا به بیا زما لیدلو ته راځي. په سبا سهار چې له مهمانخانې څخه را ووتلم. قاسم د باندي ولاړ وو. ما پوښتنه ورڅخه وکړه چې معاون صاحب څه سو؛ زما سره یې وعده کړې وه؟ قاسم را ته وویل چې معاون صاحب خو ولاړ. ما ویل چېري ولاړ. قاسم ویل بستره یې په شاکړه کابل ته ولاړ. ده زه برطرفه کولم ما دی برطرفه کړ. ما ویل څرنګه؟ ویل یې والي صاحب راته وویل چې مرستیال قادري ته ووایه چې



نور دې په دفتر کې ونه وینم. چټک به له کندهاره وزې. معاون صاحب هم سمدستي د کندهار هوایي میدان ته ولاړ.

په زړه پوري اجرآت وه. د والي مرستیال لومړی بست مامور دی چې مقررول او برطرفه کول یې، قانوناً، یوازي د جمهور رئیس په صلاحیت کې دي. والي لړ تر لړه هغه ته د برطرفۍ مکتوب نه لیکي. په تلیفون کې پخپله نه ورته وایي بلکه د یوه مېلمستون د عادي منتظم په خوله یې برطرفه کوي او د بازخواست سړی نسته. دا چې دا ډول غیرقانوني اجرآت وه هغه په هر صورت. په زړه پوري خبره دا ده چې کله مې په کابل کې له منورینو او ځوانانو سره دا خبره مطرح کړه او حتی په بهر کې مې د دې پېښې په باب د لیکنو او د عاملینو د رسوا کولو تهدید کاوه هغوی په ډېره حوصله مندي غوږ راته نیولی وو او داسي یې را فهمول چې په افغانستان کې نن سبا داسي پېښې کیږي چې دا یوه پېښه به دې زړځله هېره سي. سر مه پسي ګرځوه هسي چټي به د چا خوا در څخه بده سي او ګټه به هم ونه کړي.

## د تحقیقاتو او د هیات د ټاکلو کلتور:

د (۱۹۸۰م.) د لسیزي وروستی کال به وو چي په کندهار کي د مجاهدینو مشهور قوماندان، حاجي لطیف، د ګل آغا شېرزي پلار، چي په کندهار کي په حاجي غونډی مشهور وو او په غربي مطبوعاتو کي یې د کندهار د زمري لقب ګټلی وو، یو ناڅاپه وفات سو او داسي ویل کېدله چي ګویا چا زهر ورکړي دي. البته دا خبره، لکه د دغه راز قتلونو په باب نوري ډېري خبري، همداسي پټه پاته سوه. ما د امریکا د غږ راډیو د یوه خبریال په حیث، د حاجي لطیف د مشر زوی ګل آغا څخه، چي دا وخت ګواکي د مجاهدینو قوماندان وو، د هغه د پلار د ناڅاپي مړیني د څرنګه والي په باب پوښتنه وکړه. ده راته وویل چي حاجي بابا ته یې زهر ورکړل. د هغه دوه تنه قاتلان مو، چي ظاهر او نادر نومېدل، دواړه اعدام کړل. تحقیقات چالان دي. دوه تنه قاتلان، یا مشکوک قاتلین، دواړه اعدام سوي دي. تحقیقات به له چا څخه کېږي؟ په دې یوازي ګل آغا پوهېدی. دا چي د مجاهدینو د حکومت په زمانه کي به، چي د افغانستان د تاریخ تر ټولو توره او له درد او غم څخه ډکه دوره ده، څو سوه ځله دا ډول تحقیقات سوي وي سړی څه نه سي ویلای. خو د امریکایانو د نظام سره دا کلتور ځکه ژوندی پاته سو چي د هر قاتل، غله او جنایتکار شاته د یوه زورواکي لاس وو او تحقیقات یې پر مخ تللو ته نه پرېښودل او اصلاً د رېښتونو تحقیقاتو سړی موجود هم نه وو.

د کرزي د حکومت به لا دوې میاشتي نه وې تېري سوي چي د شمال د ایتلاف یوه لوی بدماش جنرال دین محمد جرأت، چي اوس هم سترجنرال دی، د انتقالي حکومت د هوایي ټرانسپورټ وزیر ډاکټر عبدالرحمن، په سپینه ورځ، د ټولو خلکو په مخ کي، په الوتکه کي، په چاړه وواهه، قتل یې کړ، مړی یې له الوتکي څخه لاندي را وغورځاوه؛ ټولو خلکو هغه ولیدی چي لاسونه یې سره او چاړه یې په لاس کي وه. مګر جرأت په هماغه الوتکه کي حج ته ولاړ. د حج!! د فریضې تر اداکولو وروسته د یو څو ورځو له پاره په عربستان کي پاته سو او بیرته سرې سترګي راستون سو. هغه د رباني او، د کرزي په انتقالي حکومت کي د داخله وزیر، یونس قانوني نازولی وو. د چا پلار به څه ورته ویلي وای؟



جرأت د سترجنرالۍ مقام ته ورسېدی او لږ وروسته یې د کابل بګرام پر لویه لاره باندي لوی څارنوال عبدالجبار ثابت، د خلکو په مخ کي چپه کړ. ویې ډباوه؛ او هغه بېچاره خپله شنه او تپې سوې ملا او زخمونه په ټلوېزیون کي ښکاره کړل. بېچاره څارنوال فکر کاوه چي ګوندي څوک به یې غم وخوري او په داد به یې ورسیږي. د هغه پر فریاد به چا غوږ نیولی وای او د جرأت او په حقیقت کي د قانوني او د شمال د ټلوالي، چي شاته یې د امریکا او ناټو قوت ولاړ دی لاس به چا پیچلی وای. برعکس، څارنوال غریب، څو ورځي وروسته، په ټلوېزیون کي جرأت وباخښه او لا یې په عذر او زاریو د روغي جوړي غوښتنه هم ورڅخه وکړه. تحقیقات پای ته ورسېدل!

د کرزي د حکومت څخه شپږ میاشتي وروسته، د لویي جرګې په سبا سهار، د فواید عامې نوی ټاکل سوی وزیر، حاجي قدیر، چي د شمال د ایتلاف ډېر نیژدې او وفادار ملګری وو، د کار له پیل کولو څخه مخکي د خپل دفتر سره نیژدې وویشتل سو. قاتلان، پر موټرسایکلونو سپاره، وتښتېدل. د هغوی د پیداکولو او محاکمې ته د راکشولو له پاره تحقیقات لا هم روان دي.

د دوه زره شپاړسم کال په وروستیو شپو ورځو کي، د کندهار ولایت په والي کي، په یوه مرموزه چاودنه کي، د کندهار د مامورینو په شمول، د متحده عربي اماراتو سفیر او څوارلس تنه ډیپلوماتان قتل سول. د پېښي په باب تحقیقات روان دي او یوه باصلاحیته هیات ته، چي د اولسمشر د ملي

امنیت سلاکار یې مشري کوي، د تحقیقاتو وظیفه سپارله سوې ده. اوس
چي حکومت د هري پېښي په باره کي د تحقیقاتو او د هیات د ټاکلو خبره
یاده کړي نو داسي څوک نسته چي په خندا یې بدرګه نه کړي.

## ملي سرود:

د دوه زره دریم کال د فبروري میاشت به وه چي د کرزي صاحب کشرورور
احمد ولي کرزي، چي دا وخت د کندهار او شاوخوا سیمو او ولایتونو تر
ټولو قدرتمند سړی وو، په کانټینینټل هوټل کي راته وویل چي کرزی صاحب
غواړي ته ملي سرود ولیکې. ما په هغه شپه د ملي سرود یوه خاکه، چي
ښایي دېرش بیته به کېدله، و لیکله او په سبا سهار مي د کرزي صاحب دفتر
ته وروړه. په دفتر کي ډاکټر اشرف غني، زلمی هیوادمل او وکیل اسحق
زَی، چي لومړی نوم مي یې هېر دی، ناست ول. کرزي صاحب ته مي وویل
چي دا د ملي سرود لومړی خاکه ده او دوی کولای سي چي له دې متن څخه
د خپلي خوښي او پالیسۍ سره سم بیتونه انتخاب کړي. که یې چیري کوم
بیتونه کمول او په عوض کي یې نور غوښتل ما ته به و وایي. کرزي صاحب د
ملي سرود متن زلمي هیوادمل ته، چي د کلتوري چارو سلاکار او مسوول
وو، وسپاره او هغه زما لیکلی متن، په خپل نوبت، د ملي سرود د ارزیابۍ
کمېټې ته، چي مشر یې اعظم رهنورد زریاب وو، په پښتو ژبه نه پوهېدی،
خو د متن د ارزیابي کولو ادبي صلاحیت او واک یې درلود! وسپاره. د ملي
سرود د تصویبېدلو او ثبتېدلو کار تقریبا څلور کاله ونیول او په دوه زره
شپږم کال کي وړغول سو. حکومت، د ټولي نړۍ د دود او دستور په خلاف،
ما ته هیڅ حق الزحمه رانه کړه او ما یې هم غوښتنه نه ده کړې. په داسي حال
کي چي ما نه له هیچا څخه د حق الزحمې او امتیاز غوښتنه وکړه او نه مي



ملی سرود د حق الزحمې یا کوم امیتاز په منظور لیکلی وو خو پر حکومت
مي دومره حق درلود چي د ملي سرود د احترام او درناوي په خاطر یې د
افتتاح د مراسمو په ورځ کابل ته ور بللی وای، چي ویې نه بللم. د ملي سرود
د تصویبېدلو او خپرېدلو د دونه ځنډ د علتونو په باب او چي لا د شمال د
ایتلاف زورواکانو او طرفدارانو تر اوسه هم په رسمیت نه دی پېژندلی او بړده
لیکنه موږ له موضوع څخه لیري کوي. ښه به دا وي، چي د موضوع سره سم،
خپل د سترګو لیدلو او په غوږونو اورېدلو حالاتو کیسې ته را وګرځو.
کرزي صاحب، د خپلو مهربانیو په سلسله کي، یوه شپه ماښامنۍ ته وبللم
او کله چي د ډوډۍ مېز ته ولاړو او زه د معمول سره سم د ده څنګ ته
کښېنستم نو مخ یې زما خواته کړ او په داسي توګه یې، چي بل چا چنداني
ږغ نه اورېدی، راته وویل چي جهاني صاحب خلک د حکومت په باب څه
وایي؟ ما پر ته له دې چي یوه شېبه دي فکر وکړم په جواب کي مي ورته وویل
چي خلک وایي خدای دي مه په بدو مه په ښو حکومت ته اړباسه. زه یقین
لرم چي زما خبري پر کرزي صاحب باندي ډېره بده اغېزه وکړه خو د خپل
طبیعي زغم څخه یې کار واخیست او تر څو ثانیې ځنډ وروسته یې راته
وویل چي ریشتیا هم دغسي خوده. ریشتیا ته راته ووایه چي د کومو ادارو
څخه خلک ډېر زیات شکایت کوي. ما ورته ویلای سوای چي له ټول
حکومت څخه؛ مګر له حیا څخه مي کار واخیست او په جواب کي مي ورته
وویل چي د داخله وزارت او د عدلیې له وزارت څخه. ځکه چي د خلکو ډېر
زیات سروکار له همدغو دوو وزارتونو سره وي.
یه یوه مجلس کي مي داکیسه کوله. یوه چا سمدستي را ږغ کړه چي دا خو
دي سم کار نه دی کړی. ما ورته وویل چي که زه کرزي ته د چوکۍ او امتیاز
له پاره ورغلی وای نو دونه بې عقل نه وم چي داسي بېځایه خبره دي وکړم.

زه پوهېدم چې ښه کار مې نه دی کړی. هغه یو جمهور رئیس وو او زه یې په خپل کور کې مېلمه کړی وم؛ مګر په یوه خبره خوشاله وم چې داسې خبره مې ورته کړې وه چې بل هیچا نه وه ورته کړې. آخر د یوه مشر غوږ ته څوک ریښتیا ورسوي؟ یو څوک خو به ریښتیا ورته وایي. په وطن کې دونه ناخوالې وې چې شمېرې یې ترحساب تېر وو او زه یقین لرم چې نه چا د کرزي تر غوږونو پورې د چا آواز رساوه او نه هغه غوښتل چې داسې آواز واورې چې خوږ مجلس یې ورتریخ کړي.

پر افغانستان باندې د امریکا او ناټو د یرغل او د افغانستان د اشغال څخه کال یو نیم وروسته د خال خال بې امنیتیو رپوټونه خپرېدل، خو چنداني د اندېښنې وړ بې امنیتي لا نه وه راغلې. تر دوه زره پنځم کال پورې مې، څلور پنځه واره له کابل څخه کندهار او له کندهار څخه تر هلمند او چمن پورې په موټرونو کې سفرونه وکړل. زما ښه په یاد دي چې زه، په کندهار کې د امریکا ږغ محلي خبریال فضل الرحمن، په کندهار کې د بي بي سي راډیو محلي خبریال عبدالنافع همت د بي بي سي د خبریال میرویس افغان سره د هغه په موټر کې، چې د مخ پر هینداره یې د بي بي سي راډیو نښان هم نښلول سوی وو، د ماښام د لمانځه پر مهال، د ارغنداب د ناګهان کلي ته ولاړو. هلته مو عبدالنافع همت کښته کړ او بیرته مو د ښار پر لور حرکت وکړ او له هیچا سره د امنیت په باب اندېښنه قدر نه وه.

یو کال وروسته، د دوه زره پنځم کال په اوړي کې، د خپلو ټولو ملګرو او دوستانو د اعتراضونو په خلاف، له طالبانو سره د میوند د شهیدانو زیارت ته ولاړم. زموږ محلي خبریال فضل الرحمن، چې زما د دې سفر سره سخت مخالف او اندېښمن وو، د میوند اولسوال ته ټلیفون کړی وو او هغه ته یې ویلي وه چې جهاني صاحب له خطرناکو خلکو سره میوند ته درغلی دی؛ ستا



دې توجه وي. اولسوال په جواب کې ورته ویلي وه چې جهاني صاحب دې خدای پخپله وساتي. دا یوه هفته کېږي چې زه پخپله د اولسوالۍ څخه بهر نه یم وتلی. د اولسوال خبره به ځکه پر ځای وه چې د میوند په اولسوالۍ کې طالبانو او یا د هغوی طرفدارو ځوانانو زما تود هرکلی وکړ. په یوه سماوار ډوله رستوران کې یې ډوډۍ راکړه او ټول په ګډه د میوند د شهیدانو زیارت ته ولاړو؛ مګر ما نه د اولسوالۍ په بازار او نه په شاوخوا کې یکی یو عسکر او پولیس ولیدی.

## زما د ژوند غمجنه پېښه:

د همدې کال د جون پر پنځه ويشتمه زما د ژوند تر ټولو لويه تراژيدي او ويرژلې پېښه منځته راغله. زما ښکلې مېرمن، چې زما ليلا وه او زما د ډېرو شعرونو او غزلونو د هينداري او الهام حيثيت يې درلود، په کندهار کې، ځوانيمرګه سوه. د رازونياز په نوم شعري مجموعه، چې ډېر زيات غزلونه او شعرونه مې د هغې په وير او ياد کې ليکلي دي، د غربي ګلونه شرقي لمنې په نوم يو کتاب مې چې له انګليسي کلاسيکو ادبياتو څخه منظومې ترجمې دي او دغه راز د پښتو په سور او تال کې د غربي سندرو شرنګ په نوم بل کتاب مې، چې د انګليسي سندريزو شعرونو يا ليريکس منظومې ترجمې دي د هغې نامه او ياد ته وقف کړلې. ما ګومان نه کاوه چې زما په زړه کې به دونه قوت موجود وي چې د غم تر دونه درانه بار لاندې به بيا هم ژوند ته دوام ورکړم. ما فکر نه کاوه چې زه به په ژوند کې بيا شعر وليکم، بيا به د کتاب مخ وګورم او بيا به حتی قلم په ګوتو کې ونيسم. خو خدای دونه قوت راکړ چې په ټولو اولادونو، مړندو او دوستانو کې مې هېڅ يوه اوښکه و نه ليده. د غمونو ټول زهر مې يو ازې وخوړل؛ او يوازې يوه ورځ مې د خپلې مور په مخ کې په دومره جوش او لوړ آواز ساندي وويلې چې هغه عاجزه او بې وسه مخلوق مې، چې د زړه ټوله مينه يې ماته راکړې وه، په هماغه جوش راسره وژړوله. د ښکلې معصومې ياد مې تر او سه ژړوي او چې تر څو ژوندی يم ژړوي به مې.

ځه بې خونده ورځې شپې دي چې بې تا يې تېرومه
ځه ترخې د ژوند شېبې دي چې بې تا يې تېرومه
ځه خوږمن زخمي خيالونه ځه د سوزه ډک يادونه



ځه د اوښکو فوارې دي چې بې تا يې تېرومه
نه په خپلو وينو سور يم نه خيام يم نه منصور يم
ځه بې شوره غرغرې دي چې بې تا يې تېرومه
نه پتڼ غوندي سوځېږم نه پانوس رنګه بلېږم
ځه سرې سرې لمبې دي چې بې تايې تېرومه
نه محفل سته د يارانو نه شرنګې د مطربانو
ځه بې سوزه ترانې دي چې بې تايې تېرومه
نه مستي له سترګو پاځي نه جامونه ورته ناڅي
ځه بدرنګې پيمانې دي چې بې تا يې تېرومه
ماته مه وايه چې ولاړم تل به ويني درته ژاړم
ځه چې پاته دي ترخې دي چې بې تايې تېرومه
نه به بيا جهاني راسي نه به بيا ازل پخلا سي
په نصيب کې مې تيارې دي چې بې تا يې تېرومه

***

زه چې ستا په غمو پايم ستا غمونه دي ژوندي وي
ستا په ياد نظمونه وايم ستا يادونه دي ژوندي وي
پر لګړه به يې وړمه افسانې د شپو تر کلي
بس چې زه پکښې تنهايم ستا نکلونه دي ژوندي وي
چې يو زه يم يو دي غم وي زړه قلم د سترګو نم وي
چې مې اوښکې پکښې پيا يم ګرېوانونه دي ژوندي وي
هره شپه دي غلا کومه له لحده تصويرونه
ته مې خوب زه دي معنی يم تعبيرونه دي ژوندي وي
نه فرياد مې څوک خبر کړي نه زګېروی مې چا ته يوسم

پټ په زړه کي په غوغا يم پرهارونه دي ژوندي وي
جهاني به درلېږمه جنازې د وزرونو
ته دي شمع زه بورا يم ستا خيالونه دي ژوندي وي

***

تصوير دي په لېمو کي زنګومه چي ته نه يې
پر شونډو دي خيالونه مچومه چي ته نه يې
دانه دانه يادونه دي پر زړه باندي را اوري
تعبيرته دي خوبونه درلېږمه چي ته نه يې
له شپو سره دي يووړې د پانوس زريني وړانګي
وزر به مي تر کومي شمعي وړمه چي ته نه يې
نه رنګ راځي قلم ته نه مي شرنګ له ستوني وزي
غزل به د چا ستړګو ته ليکمه چي ته نه يې
له شپو سره دي يووړې د پانوس زريني وړانګي
وزر به مي تر کومي شمعي وړمه چي ته نه يې
ماتم ته مي راغلي دي وعدې د ديدنونو
دا توري شپې به چاته سپينومه چي ته نه يې
ما خپل د مزار لاري درښودلې تا ژړله
دا زه چاته اوښکي تويومه چي ته نه يې
لا څو به جهاني خوري د فلک د ستم غشي
دردونه به په چا ټکورومه چي ته نه يې

***

راځه چي نن دي پر هجران باندي غزل وليکم
يو څه پر تا يو څه پر ځان باندي غزل وليکم



د خپلو هيلو له لحد سره مي ونښېږم
د خپلو جنون پر نيستان باندي غزل وليکم
هره شېبه مي د ښلتون په اوښکو ولمبوم
ستا د خيالونو پر پېزوان باندي غزل وليکم
ستا د ښکلا د ځوانيمرګو ارمانونو په ياد
په پسرلي کي پر خزان باندي غزل وليکم
د تورو وريځو په کوګل کي مي لمبه لمبه سم
نن د ازل پر شبستان باندي غزل وليکم
دانه دانه اوښکي ستا تصوير ته وژړوم
د خپل قسمت پر ورک جهان باندي غزل وليکم
ستا د نيمګړو سفرونو کيسه وسپړمه
هم پر منزل هم پر کاروان باندي غزل وليکم
د خيال په کور کي مي تېښه د آزر ورنګوم
په خپل تندي کي پر جانان باندي غزل وليکم
جهاني ځمه له قلم څخه کسات اخلمه
په زړه ظالم پر شنه اسمان باندي غزل وليکم

***

کشکې زه يو بت تراش واى؛ هغه نظم دى چي زما د زړه د جوش يوه برخه ښيي

له تېشې به مي تراشلې ښايسته لکه سپوږمۍ واى
تکه سپينه لکه واوره بند پر بند ښايسته غوټۍ واى
لکه ته چي ښايسته وې بس همداسي ګلالۍ واى
هره شپه خوب ته راتللاى زه ملوک ته مي بدرۍ واى
د هنر تېښه په لاس کي ستا پر ښنو مي ساه ختلاى
کشکي زه يو بت تراش واى له مرمرو مي تراشلاى

***

زه او ته وای نیمه شپه وای پر جهان تیارې خپرې وای
ما دي سپین مخ ته کتلای ستا دي دواړې سترګې سرې وای
ما د خیال په شیش محل کي دربنودلي خزانې وای
تا په سرو وریښمینو ګوتو را اخیستي دُردانې وای
د خیالونو په تالونو د سپوږمۍ بام ته ختلای
کشکي زه یو بت تراش وای له مرمرو مي تراشلای

***

کشکي تل د وصل شپه وای کشکي تور مخ د هجران وای
لاس تر غاړه سره ناست وای یو مو کور یو ګورستان وای
او یا ته ممتازمحل وای او یا زه شاه جهان وای
زما دي عمر وای د خضر خزانې د هندوستان وای
ستا په نوم مي تر قیامته محلونه جوړولای
کشکي زه یو بت تراش وای له مرمرو مي تراشلای....

د میرمني له وفات څخه څه باندي دوه کاله وروسته مي د کندهار له یوې ډاکټرې پېغلې سره، چي ریحانه نومېږي او دا وخت یې د پاکستان د کراچي په ښار کي د مور او پلار سره یو ځای، د مهاجرت شپې ورځې تېرولې، واده وکړ. هغې په ټلیفون کي خپل ماما قاري صاحب سلطان محمد ته، چي په نیویارک کي یې ژوند کاوه، خپل وکالت ورکړ او ما هم خپل یو دوست، عبدالجبار قریشي چي په نیویارک کي اوسېدی، د وکیل په حیث ورته معرفي کړ. پر ته له دې چي د خپلي راتلونکي میرمني عکس قدر دي وګورم له هغې سره مي، په غیاب کي، نکاح وتړله. په زړه پوري خبره دا ده چي د ریحانې د سپین ږیري پلار په شمول د هغې تقریبا ټولي کورنۍ پېژندلم خو



ریحانې، چي زما د ژوند ملګرې کېدله، زما نوم قدر اورېدلی نه وو. اوس څه باندي یوولس کاله کېږي چي په امریکا کي یو ځای ژوند سره کوو. که د انتخاب او خوښۍ مسلې ته، چي زموږ په منځ کي هیڅ مطرح نه سوه، وګورو نو باید چي ډېري ستونزي مو درلودلای؛ خو الحمد لله چي تر دغه ګړیه پوري ژوند په خوښي تېرېږي. زه د خپل ژوند باقي شپې ورځي او احتمالاً کلونه پر ګوتو شمېرم. د یوې نامعلومي راتلونکي لاري ځارم. ګورو به چي قسمت لا څه راوړي.

سره له هغه چي ټولو ځوانانو ته مي دا توصیه ده چي د ژوند د هري ورځي او هري شېبې حساب په خپل لاس کي واخلي. د هري لاري پر انتخابولو باندي غور وکړي او د ژوند پر کړلېچونو باندي هر ګام په حساب پورته کړي؛ ما، له ورو کوالي څخه، چي د ژوند په مفهوم نه پوهېدلم، بیا تر سپین ږیرتوب پوري، خپل ژوند قسمت ته سپارلی وو. زه هغو زلمیو ته چي زما له شاعرۍ او لیکوالۍ سره مینه لري وصیت کوم چي د شاعرۍ او لیکوالۍ په لاره کي ما تعقیب کړي. ځکه چي زه په خپله انتخاب کړې لاره ویاړم او په ټول ژوند کي پر یکي یوه بیت او یوې جملې باندي پښېمانه نه یم. خو د ژوند په نامعلوم سفر کي زما لاره وانه خلي. خپل سرنوشت د قسمت نامعلوم لاس ته ونه سپاري او پر هره شېبه باندي د خپلواکو انسانانو په څېر خپل واک وچلوي.

## سیاسي دریځ:

که څه هم چې ما په سیاسي فعالیتونو کي عملا برخه وانه خیستله او د ځواني او پاخه عمر په کلونو کي له هیڅ تنظیم او حرکت سره یو ځای نه سوم، خو د لیکنو له لاري مي هر وخت سیاسي دریځ درلود. په اصطلاح ښه ته مي ښه او بد ته مي بد ویل. په افغانستان کي مي د پرچمیانو، مجاهدینو، طالبانو او په وروسته کي د امریکا او ناټو له یرغل څخه وروسته د شعر او نثر له لاري خپل دریځ څرګند کړی دی. په دې لړ کي مي په افغانستان کي د (۲۰۰۹م.) کال د جمهوري ریاست په انتخاباتو کي، چي ډاکټر اشرف غني د جمهور رئیس حامد کرزي په مقابل کي کاندید وو، د اشرف غني په ګټه، «چاته به رایه ورکوو» تر عنوان لاندي یو مضمون خپور کړ او په هغه مضمون کي مي د اشرف غني څرګنده طرفداري وکړه. اشرف غني په هغه ځل رایه ګیري کي نه یوازي ناکام سو بلکه ډېري لږي رایي یې وګټلې او له کرزي، عبدالله عبدالله او ډاکټر رمضان بشردوست څخه وروسته یې څلورم مقام ترلاسه کړ.

تر ټولو مهمه خبره خو دا ده چي ما په ژوند کي په عملی سیاست کي یو ګام هم نه دی پورته کړی. خو په افغانستان کي د څه باندي دېرش کلنو غمیزو په جریان کي یوه شېبه هم هم چوپ نه یم پاته سوی او د شعر او قلم په ژبه مي، هره شېبه، په خپل اند، د خپل بې پناه او ځپلي اولس د ګټو ملاتړ کړی دی. په امریکا کي تر ډېرو اوسیدنکو افغانانو مي افغانستان ته زیات سفرونه کړي او هر ځل مي د منورینو او ځوانانو سره د لیدنو کتنو او ادبي ناستو کي د برخي اخیستلو تر څنګ د روانو ناخوالو پر ضد خپل ږغ پورته کړی دی. په وروستي یوه کال کي مي درې ځله افغانستان ته سفرونه کړي او بیلو بیلو ولایتونو ته تللی یم. البته زما وروستني سفر، چي د اکتوبر د



څوارلسمي څخه د نوامبر تر لسمي پوري یې دوام درلود، له نورو مخکنیو سفرونو څخه توپیر درلود.

په وروستیو سفرونو کي زما څخه ځینو کسانو، په تېره ځوانانو، هیله کړې وه چي یوازي د شعرونو په لیکلو او ادبي فعالیتونو بسیا نه سم او په سیاسي ژوند کي برخه واخلم. که څه هم چي زما ټولو خواخوږو ملګرو ماته هر وخت ویلي او اوس هم راته وایي چي په افغانستان کي سیاست یو بدنام کسب دی او له سره تر پایه، د خلکو پر مالونو، سرونو او حتی ناموس باندي د کرغېړنه دوکانداري ده او هسي نه چي خپل ګټلی نوم به پکښې بایلې. خو کله چي سړی د افغانستان د زورېدلو اولسونو اوسني حالت ته ګوري، په زغرده ویلای سي چي په سلو کي سل خلک ناراض دي او یوازي هغه کسان راضي او خوشاله دي چي له اوسني نظام څخه ناروا ګټې ترلاسه کوي، نو زما په څېر یو سپیڅلی او پر اولس مین شاعر څرنګه بې طرف پاته کېدلای سي.

د (۲۰۱۱م.) کال د دوبي په موسم کي، په جرمني کي د خپل یوه خواږه او څه باندي څلویښت کلن اشنای، مرحوم عوض درګي، د فاتحې په مراسمو کي د برخي اخیستلو له پاره د فرانکفورټ ښارته ولاړم. زما دې وروستي سفر له ټولو مخکنیو سفرونو څخه توپیر درلود. د سفر په ترڅ کي مي په هالینډ، بلجیم، لندن او د جرمني د فرانکفورټ، هامبورګ او مونشن په ښارونو کي په زیات و کم لسو ورو او لویو سیاسي مجلسونو کي برخه واخیستله. په تقریبا هر مجلس کي ډېرو زیاتو افغانانو او دوستانو چې په سیاست کي فعالي ونډې اخیستلو ته وهڅولم. ما هم په ټولو مجلسونو کي اروپا میشتو منورینو ته وعده ورکړه چي زه به د افغانستان د جمهوري ریاست په راتلونکو انتخاباتو کي مشروط کاندید یم. یعني که مي د تېر ځل

په څېر د ملاتړ له پاره کوم بل کاندید پیدا نه کړنو زه به پخپله میدان ته کېږم، ځکه چې د هیڅ ډول مسولیت او هیڅ ډول تهدید څخه وېره نه لرم او د وینې تر وروستي څاڅکي پورې ولاړیم.

پر ما ګران او پر ما مین، ځوان احمد ولي اڅکزی، چې په تنکۍ ځوانۍ کې یې پښتو ژبې ته دونه خدمتونه کړي دي، چې مونږ خلکو په سپینه وېره نه کړي او نه مو په وس پوره دي، له ډېر لیرې ځایه څخه، زما لیدلو ته، د فرانکفورټ ښار ته راغلی وو. په هغه ورځ یې، زما له بدي طالع، موټر هم خراب وو او د کوم بل ملګري څخه یې موټر امانت اخیستی وو. په فرانفکورټ کې یې، د سیند پر غاړه د قدم وهلو په ترڅ کې، زما په غاړه کې لاس را واچاوه او راته وې ویل چې ستا مرګ به زما له پاره د ژوند تر ټولو غم لړلې پیښه وي. هغو کسانو چې ستا سره د هر ډول مرستو ژمنه کړې ده؛ تا د مرګ تر خولې پورې بدرګه کوي؛ خو هلته چې شاته وګورې نو پر میدان به یوازې ولاړ یې. زه پوهیدم چې ځوان احمد ولي جان ریشتیا وایي. خو ما له خلکو سره ژمنه کړې وه او باید چې افغانستان ته تللی وای. د اکتوبر د میاشتې په نیمایي کې کابل ته ولاړم. مخکې له هغه چې د سیاست په عملي ډګر کې د مرګ او ژوند خبره راسي او په نظر کې نیول سوېو کارونو د عملي کولو په لاره کې دي، یو ګام پورته کړو هغو کسانو چې زما سره یې د هر ډول مادي او معنوي مرستو ژمنه کړې او کاندیدلو ته یې تشویق کړی، د مرستې کولو پرځای راته ټکولی او کابل ته یې بللی وم، وم هیڅ مرسته ونه کړه. حتی د کابل په ښار کې یې یوازي پرېښودلم. د حج او بهر ته د تللو په پلمه راڅخه وتښتېدل.

ځوان شاعر او ژورنالیست هارون حکیمي او شاعر، لیکوال او ژورنالیست لال پاچا آزمون، چې پخوا یې هم زما سره د ولایاتو په سفرونو



کې ډېره ګټوره اندیوالي کړې وه، په دې ځل کلتوري سفرونو کې راسره ملګري وه او زمونږ د سفرونو خوند یې دوه چنده کاوه. د هلمند ولایت په هوایي ډګر کې د نورو هرکلي کونکو تر څنګ، چې د ګلونو ګېډۍ او امیلونه ورسره وه، د ولایت د هزاره ورونو د کلتوري ټولنو درې څلور مشران هم حاضر وه. ما خپلو ټولو دوستانو ته وویل چې تر زړهاوو پښتنو هرکلي کوونکو او د ګلونو تر ګېډیو او امیلونو د دې دریو څلورو هزاره ورونو حضور زیات ارزښت درلود. ځکه چې دا زما د ملي یووالي د مفکورې مستقیمه ترجماني وه. د هلمند ولایت په انګړ کې د شپې په مشاعره کې یوه هزاره ورور پښتو شعر ولوست. په چک چکو او احساساتو بدرګه سو او د وطن پالنې له احساساتو ډکه خاطره به مې هیڅ وخت له یاده ونه وزي.

د هلمند ولایت په دوه ورځني سفر کې شاعر، لیکوال او ژورنالیست زاهد شاه انګار او د پښتو ژبې وتلی شاعر او لیکوال نورالحبیب نثار را سره ملګری وو. نورالحبیب نثار مې، که څه هم چې اوس هم ځوان دی، څه کم شل کاله مخکې په پېښور کې هغه وخت لیدلی وو چې په سر کې یې یو سپین وېښته هم نه وو او په هغه ځواني کې د پښتو په شعر کې لکه ستوری ځلیدی. له لیدلو څخه یې ډېر خوښ سوم. خدای دې وکړي چې بیا بیا سره ووینو. زاهد شاه انګار د هلمند د مشاعرې په ماښام یو قیمتي ریکارډر، چې ده ویل ډېرې زیاتې مرکې یې پکښې ثبت کړې وې، ورک کړ. که څه هم ده ډېره هیله درلوده چې ګوندې بیرته به یې لاس ته ورسي. خو مونږ ټولو ورته ویل چې له ریکارډر څخه لاس پرې مینځي. ځکه هغه چا چې در څخه وړی دی حتماً یې په کار وو او بیا یې نه راوړي.

دې ټولو شاعرانو او لیکوالو دوستانو راته ویل چې له سیاست کولو څخه مایوس نه سم او باید چې ټول افغان لیکوالان او شاعران په سیاست کې

برخي اخیستلو ته وهڅوم. دوی ټولو ویل چې که شاعران، لیکوالان او ژورنالیستان په سیاست کې برخه وانه خلي او یوازې د شعرونو، مضامینو او رپوټونو په لیکلو بسیا سي نو میدان یوازې حاکمو داړه مارانو، قاتلانو او وطن پلورونکو ته پاتیږي. دوی ټولو ماته ویل چې د افغانستان په زرهاوو ځوان لیکوالان، شاعران او ډېر زیات اولسي کسان ستا په شخصیت اعتماد او باور لري او ته باید، د هیواد د یوه ملي نهضت په ګټه، له دې باور څخه استفاده وکړې. ریشتیا هم، په افغانستان کې سیاسی دوکانداریو او پرله پسې بې رحمانه دسیسو، پر یوه بل باندی، اعتماد او باور دونه له منځه وړی دی چې سړی یې د زعامت بحران بللای سي؛ زما په عقیده د زعامت بحران د ټولني په سیاسي ژوند کې تر بل هر راز بحران خطرناک دی؛ او د ډېر وخت له پاره د یوې متحدي جبهې د جوړېدلو امکانات له منځه وړي. دغه ګړی، د هغي عمومي عقیدې په خلاف، چې وایي په افغانستان کې، په اصطلاح، قحط الرجال دی، د ساینس، تخنیک، اجتماعیاتو او سیاست په ډګر کې دونه پوهان او ماهران لرو چې ښایي د افغانستان په تاریخ کې مو چنداني نه وي درلودلي. خو له بده مرغه چې دغه پوهان یا دونه بې وسه دي چې څوک یې پر سورنا غوږ نه نیسی؛ یا د زعامت د بحران ښکار دي او تړلي لاسونه ناست دي او یا چې یې څه په وس پوره دي هغوی سپېڅلي شخصیتونه، خوږمن زړونه او د وطن پالني احساسات نه لري. ګواکي:

چې دستار تړي هزار دي      د دستار سړي په شمار دي

په زړه پوري خبره دا ده چې د اروپا منورینو، چې ما، نه پوهېږم ولې، ډېر زیات حساب ورباندي کړی وو، د اروپایي هیوادونو په ټولو څه باندي لسو مجلسونو کې زما د سیاسی دریځ هرکلی کړی وو او ما ته یې د مادي او معنوي مرستو وعدې راکړي وې، تر هغه وروسته او افغانستان ته زما د سفر په ترڅ کې، زما څخه یوه ټلیفوني پوښتنه هم نه ده کړې چې جهاني



صاحب! ستا خبري تر کومه ځایه ورسیدلې؟

موږ، له بده مرغه، عادت کړی دی چې په افغانستان کې د هر ډول اجتماعي او سیاسي حرکت شا ته د خارجي لاسونو او مرستو څرک لګوو. ما ته په افغانستان کې ځینو کسانو په زغرده وویل چې وروره که د امریکا مرسته در سره نه وي نو هسي خپل سر مه خوږوه. زه، په دې برخه کې افغانان، تر ډېره ځایه، حق په جانب بولم. ځکه چې په دې وروستیو لسیزو کې چې هر ډول سیاسی حرکت پیل سوی دی شا ته یې بهرني لاسونه ، مرستي او دسیسې ورسره وي. او چې بهرنۍ مرستي ورسره نه وي هغه حرکتونه یا سمدستي یا ورو ورو ناکام سوي او له منځه تللي دي. خو که د سیاست او سیاسي حرکتونو په برخه کې د افغانانو دغه راز سلوک تغییر ونه کړي او هر وخت یې سترګي خارجي مرستو ته نیولي وي نو سړی راتلونکي ته چنداني هیله من کېدلای نه سي. په دې کې شک نسته چې افغانستان اوس په داسي حالت کې دی چې د بهرنیانو له سیاسي، پوځي او مالي مرستو پر ته ژوند نه سي کولای. خو موږ باید په ځان کې دا جوهر ولرو چې بهرنیان زموږ مرستو ته را ودانګي نه دا چې موږ پر بهرنیانو او ګاونډیانو باندي کچکول وګرځوو؛ لومړی د هغوی غلامي او مزدوري ومنو او بیا د سیاست میدان ته راسو. که داسي وکړو نو د خپل تاریخ غم لړلي پېښې به تر قیامته تکرارو او د غم لړلو پېښو لړۍ به تر ابده دوام لري.

ما اروپا ته د خپل سفر په ترڅ کې، په هالینډ کې له مرحوم عبدالرحیم هاتف سره وکتل. له هغه څخه مي په عملی سیاست کې د خپلي برخي اخیستلو په باب مشوره وغوښتله. د هغه خبري، لکه څرنګه چې زه د ځوانۍ له وخته ورسره بلد وم، ټولي پر واقعیتونو او غښتلو منطقي دلایلو ولاړي وې. د هغه د خبرو خلاصه دا وه چې وطن له لړمانو او مارانو ډک دی او په اوسنۍ

وضع کي تغییر راوستل به بنایي زما په وس پوره نه وي او که حتی قدرت هم ونیسم د هغه څه عملي کول به، چي زه یې غواړم، اسانه نه وي.

د اکتوبر په میاشت کي مي، افغانستان ته له تللو څخه مخکي محترم ډاکټر صاحب عبدالستار سیرت ته ټلیفون وکړ او د خپل نیت د عملي کولو په برخه کي مي سلا ورسره وکړه. سیرت صاحب راته وویل چي په سیاست او انتخاباتو کي د برخي اخیستلو په باب هر سړی خپل اختیا لري خو دی په افغانستان کي انتخاباتو ته عقیده نه لري. ځکه چي په افغانستان کي ټول انتخابات پر غبن، زور او خیانت ولاړ دي. دوستم، فهیم او د هغوی په څېر نور کسان په انتخاباتو کي دوه سوه میلیونه ډالره په دونه پوره زړه لګوي چي موږ دوه سوه افغانۍ نه سو لګولای. ده په خندا راته وویل چي د جمهوري ریاست په تېرو انتخاباتو کي دوستم، چي د ده په څېر یو اوزبیک دی، تر ده ډېري رایي وړي وې او له دې څخه د هر څه قیاس کولای سي.

په اروپا کي ډاکټر عبدالصمد حامد ته، چي له ډېره وخته مي ورسره پېژندل او سخت درناوی مي ورته درلود او دا وخت ډېر ناروغه وو او لږه موده وروسته وفات سو، ټلفون وکړ او خپل نیت مي ورسره شریک کړ. هغه په زغرده راته وویل چي پښتو ژبه زما شاعری ته تر سیاست زیات ضرورت لري. هسي نه چي خدای مه کړه بېځایه ضایع سم. ځکه پر خزانو باندي پراته ښاماران به ماته هیڅ وخت اجازه رانه کړي چي له ناروا ګټو څخه یې محروم کړم.

په کابل کي، په هغه کور کي چي زه مېلمه وم، یوه ورځ غلام نبي فراهي، چي دا وخت د اطلاعاتو او فرهنګ د وزارت مرستیال وو، او ماته یې د یوه کشر ورور حیثیت درلود، زما لیدلو ته راغی او په زغرده او روښانو الفاظو یې راته وویل چي که په سیاست کي د فعالي ونډي اخیستلو او حتی د



جمهوري ریاست لپاره د ځان کاندیدولو په باره کي فکر کوم نو باید چي په کابل کي لږ ترلږه دغه ډول څلور کورونه ولرم. دلته چي د چا له کوره هره شپه پلوونه او له جیبه، هره ورځ، ډالرونه نه راوزي څوک یې پر سورنا غوږ نه نیسي. ده راته وویل چي که امریکایانو وعده راسره کړې وي نو څه نه سي ویلای او که نه وي نو هسي به ځان ستړی او حتی خوږ کړم.

د ده وروستی مشوره دا وه چي علي احمد جلالي هم ځان کاندید کړی دی، او د ده په فکر، له هغه سره زما ملګرتوب به تر بل هر چا وړ وي. د ده په خوښه او مشوره مي له جلالي صاحب سره د خبرو نېټه وټاکله. په سبا چي یې کورته ورغلم شاه محمود میاخېل، چي د جلالي د داخله وزارت په وخت کي یې معین وو، هم هلته تر ما مخکي راغلی وو. جلالي صاحب د یوه ټیم د جوړولو په باب ډېري عمومي خبري وکړې او تر پایه یې ونه ویل چي بالاخره به ځان کاندیدوي او کنه. څه موده وروسته یې ځان کاندید کړ او له خپلي فطري محافظه کاری سره سم یې په ډېر حساس وخت کي، یعني د کاندیدی د رسمي اعلانولو په ورځ، میدان پرېښود او دوبی ته ولاړ. خپل ډېر طرفداران یې، چي ده ته یې د امید سترګي نیولي وې، مایوس کړل. زه هم چي الحمدلله په رسمي ډول میدان ته نه وم راوتلی، بیرته خپل کورته ولاړم. او د خپلو سپین ږیرو مشرانو او ځوانو دوستانو مشوره مي عملي کړه.

زه، د دې ټولو خبرو سره، سره، بیا هم پر خپل هوډ ولاړ یم. په عملي او نظري سیاست کي به، د وخت له تقاضا سره سم، برخه اخلم. که نور هیڅ نه لرم نو دا یو خوار ځان خو به سل ځله قربان کړم او د وینو تر وروستي څاڅکي پوري په افغانستان کي د یوه عادلانه نظام د ټینګیدلو او اوسني فاسد حکومت او اداري د لیري کولو له پاره به، چي د افغانستان د ټولو خلکو پر اوږو یو دروند بار دی، په تش لاس جنګیږم. ما د ملي یووالي او په هیواد کي

د نسبتاً عادلانه انتخاباتو د کېدلو له پاره ټولو سیاسي ډلو او د هیواد او خلکو په درد خوږمنو منورینو ته د یو کېدلو بلنه ورکړې ده. خو تقریباً هیڅ مي پر آواز غوږ نه دی نیولی؛ او یوازې دوو یا درېو کسانو مي د ملي یووالي د طرحي ملاتړ کړی دی. تر اوسه خو نه د یوې متحدي غښتلي جبهې د جوړېدلو څرک لګېدلی دی او نه په میدان کي د داسي غښتلي کاندید پېدا لګېږي چي سړی دي د اوسني فاسد نظام د لیري کولو، سولي او امنیت د ټینګولو او عدالت د قایمولو په برخه کي زړه ورباندي وتړي او د روښانه راتلونکي په اړه دي حساب ورباندي وکړي. زموږ د هیواد ځوان او د پاخه عمر منورین، د دې پر ځای چي د خپل اولس دردونو او کړاوونو ته، چي له بې امنیتی څخه نیولې تر بې عدالتی، لوږي او بیکاری څخه کړېږي، توجه وکړي له سهاره تر ماښامه د یوه بل پر لیکنو او درېځونو باندي په انتقاد کولو او حتی په غندلو او دښمنیو لګیا دي. که په اروپا، امریکا او افغانستان کي منورین په دغه اوسني شکل پاشلي وي نو د محترم سیرت صاحب خبره ډېره پر ځای ده چي سړی په افغانستان کي انتخاباتو ته چنداني تمه نه سي کولای؛ او چي انتخابات وسي نو نتیجه به یې له دې څو کالو څخه چنداني توپیر ونه لري. په افغانستان کي وروستیو تراژیکو سیاسي جریاناتو او پېښو ثابته کړه چي په افغانستان کي هم حکومت د خپل اساسي قانون په خلاف او هم هیواد بېله پارلمانه چلېدلای سي.

اشرف غني په (۲۰۱۴م.) کال کي بیا جمهوري ریاست ته کاندید سو. دا ځل یې د افغانستان د اولسونو مشهور قاتل عبدالرشید دوستم، چي صبغت الله مجددي، د خپل تش په نامه دوه میاشتني قدرت په وخت کي د خالد بن ولید لقب ورکړی وو، د خپل لومړي مرستیال او سرور دانش د دوهم مرستیال په حیث وټاکی. زما له پاره بیا هم تر ټولو ښه انتخاب اشرف غني



وو خو د دوستم له امله مي، په هیڅ لیکنه او مرکه کي، د هغه څرګند یا ضمني ملاتړ ونه کړ. انتخابات، لکه څرنګه چي انتظار یې ایستل کېدی، اشرف غني وګټل. عبدالله نتایج ونه منل. د شمال ایتلاف، د اشرف غني د جمهور رئیس کېدلو په صورت کي، غرونو ته د پورته کېدلو او جنګ د پیلولو ګواښ وکړ. او په دې توګه نتایج جنجالي سول. اشرف غني د امریکا د خارجه وزیر جان کېري تر فشار لاندي او یا ښایي په خپله خوښه، عبدالله، د اساسي قانون څخه په څرګنده سرغړونه، د اجراییه رئیس په حیث قبول کړ. په دې توګه یو دوه سری حکومت منځته راغی چي د اجراییه ریاست د وظایفو لایحه یې تر پایه معلومه نه سوه. دا تر پایه څرګنده نه سوه چي عبدالله په حکومت کي څووم مقام لري. که هغه دوهم مقام لري نو د جمهور رئیس مرستیال دوستم څووم دی. دغه راز د اولسمشر د دوهم مرستیال او د اجراییه رئیس د دوو مرستیالانو مقامونه هم یو ډول مغشوش او مجهول وه. تر دې چي لا را تېر سو نو اولسمشر یو څه وخت وروسته د احمد شاه مسعود ورور، ضیاء مسعود، چي په اداري فساد او غلاوو یې ډېر پراخ شهرت پیدا کړی وو، د ښې حکومتولۍ د رئیس په حیث تعین کړ او څو ورځي وروسته یې فرمان صادر کړ چي هغه د اولسمشر د دریم مرستیال حیثیت لري. بده به هغه وخت پېښه سوې وای چي عبدالله هم دریم مرستیال ټاکلی وای. که څه هم چي، د جان کېري د وعدې په اساس، باید په شپږو میاشتو کي یوه لویه جرګه رابلله سوې وای، او د ملت د استازو له خوښي سره سم، اجراییه ریاست په صدارت تبدیل سوی او یا لغو سوی وای. خو چي حکومت په کار پیل وکړ بیا چا د لویي جرګی او د صدارت نوم په خوله رانه ووړ. دوه سري حکومت خپل کار ته دوام ورکړ. او ټول عمر یې، د ملي وحدت د حکومت تر غولوونکي نامه لاندي، کله په ښکاره او کله په پټه، یوه سر د بل سر پر ضد

کار وکړ.

په هر صورت، اشرف غني د (۲۰۱۵م.) کال د جنوري په میاشت کې د اطلاعاتو او فرهنګ د وزارت مقام راته پیشنهاد کړ. څرنګه چې زه په خپله د افغانستان له هر ډول دولت سره د همکارۍ کولو طرفدار یم، ځکه چې له دولتي قدرته پرته سړی هیڅ هم نه سي کولای. د هغوی بلنه مي ومنله. یوه میاشت وروسته مي افغانستان ته حرکت وکړ او د (۲۰۱۵م.) کال د اپریل په میاشت کې مي، په اولسي جرګه کې تر ټولو کاندید وزیرانو د لږو رایو په ترلاسه کولو سره، ایله د اعتماد رایه ترلاسه کړه او په کار مي پیل وکړ. دا چې ولې مي تر ټولو وزیرانو کمي رایي ترلاسه کړې، د وزیر کېدلو او له اولسي جرګې څخه د باور د رایي د ترلاسه کولو په اړه مي یوه خاطره لیکلې او چاپ ته سپارلې ده.

که څه هم چې د دې ترخې خاطرې او ترخې شپې څخه اوس څه باندي پنځه کاله تېر سوي دي خو د افغانستان د حکومتي ادارې او پارلمان په چارو کي تقریبا هیڅ تغییر نه دی راغلی؛ ځکه یې یادول او راوړل بې ګټې نه بولم او هغه کسان یې لوستلو ته رابولم چې غواړي د افغانستان د تاریکي راتلونکي د روښانولو په هلوځلو کي برخه واخلي.



## یوه ترخه او نه هېرېدونکې خاطره:

د (۲۰۱۵م.) کال د جنوري په میاشت کي جمهور رئیس ډاکټر صاحب اشرف غني په ټلیفون کي بلنه راکړه چې د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت قبول کړم. د دوی غوښتنه مي ومنله؛ ځکه چې دا مي د هیواد کلتور ته د خدمت کولو له پاره یوه مناسبه موقع وبلله. د هغوی د غوښتني په اساس تقریبا یوه میاشت وروسته د فبروري په میاشت کي کابل ته ولاړم او د معمول سره سم مي د خپلو دوستانو، په تېره بیا د کندهار د ولایتي شورا د غړي او زما دوست حاجي اغالالي دستګیري په غوښتنه او مرسته د پارلمان د وکیلانو، په اصطلاح جهادي مشرانو او نورو قومي او سیاسي خلکو په لیدلو او کورونو ته په ورتللو پیل وکړ. د شپاړسو کاندید وزیرانو ترمنځ هره ورځ د وکیلانو سره د لیدلو مسابقه شروع وه او تر ټولو بریالی وزیر هغه وو چې تر ټولو زیات وکیلان یې لیدلي ول. ښایي ډېرو کاندید وزیرانو په خپلو کورونو او رستورانونو کي وکیلانو ته مېلمستیاوي هم کړي وي. زه الحمدلله یوازینی وزیروم چې تر ټولو لږو وکیلانو ته ورغلی وم او هغه مي هم زیاتره د حاجي اغالالي په احترام، چې اخلاص به یې هیڅ وخت هېر نه کړم، لیدلي دي. ډېرو وزیرانو به ډېرو وکیلانو او په اصطلاح جهادي مشرانو ته ډېري وعدې او یا نغدي پیسې ورکړي او یا منلي وي؛ خو ما هیڅ وکیل ته، چې ځینو خویې زما د یو ځل ورتللو ارزښت نه هم درلود، نه وعدې او نه نغدي پیسې ورکړې؛ ځکه خو مي، په اولسي جرګه کي، تر ټولو وزیرانو، د باور کمي رایي ترلاسه کړې.

د اپرېل پر څلورمه، په پارلماني چارو کي د دولت وزیر غلام نبي فراهي، چې زما د ښېخي ډېري زمانې دوست دی، سهار وختي په ټلیفون کي راته وویل چې ماښام ته له هیچا سره وعده ونه کړم؛ ځکه چې یوه مهم ځای ته ځو.

په هغه ماښام یې راته وویل چې د ماښامنۍ له پاره د اولسي جرګې د لومړي مرستیال حاجي ظاهر قدیر په کور کې مېلمانه یو. د ماښام اووه بجې شاوخوا په شېرپور کې د حاجي ظاهر قدیر کور ته ورغلو. پر سړکونو او په کور کې دننه دونه زیات موټرونه ولاړ ول چې د پیاده تللو لاره نه کېده. په لوړ منزل کې، کوټې ته له ننوتلو څخه مخکې له ټولو کاندید وزیرانو څخه ټیلیفونونه واخیستل سول او موږ د مجلس کوټې ته رهنمایي سوو. مجلس ایله پیل سوی وو چې د کور خاوند وویل چې کور یې تر ترمیم لاندې دی نو بهتره ده چې د ده بل کور ته ولاړ سو. موږ ته یې خپل ټیلیفونونه بیرته را کړل او په نیژدې ساحه کې یې یوه لوی کور ته بوتلو (مطلب به یې حتماً موږ ته په یوه معتبره سیمه کې د خپلو دوو لویو کورونو او ډېرو زیاتو نوکرانو رابښودل وه) زموږ څخه یې بیا ټیلیفونونه واخیستل او ټول وزیران یې په یوه نسبتاً وړه کوټه کې ځای کړو.

په دې کور کې مو، د ډوډۍ خوړلو په شمول، څه باندې دوه ساعته تېر کړل. خبرې ټولې حاجي ظاهر وکړې. کاندید وزیرانو یوه بل ته کتل؛ که چا د یوې نیمې خبرې د کولو جرأت کړی وي ذهن ته مې نه راځي. زه پخپله دومره هک پک وم چې په خپلو غوږونو مې باور نه سو کولای؛ سم لکه د پېریانانو په کور کې چې ناست وم او بې مفهومه ږغونه او انګازې مې تر غوږ کېدلې.

حقیقت خو دادی چې زه تقریباً یو ساعت د حاجي ظاهر د خبرو په مطلب نه پوهېدم؛ تر څو چې هغه موږ ته وویل چې په اولسي جرګه کې کابینې ته د اعتماد رایه له سختې ستونزې سره مخامخ ده. اولسي جرګه پر بېلو ډلو وېشل سوې ده؛ د ډېر غټ اکثریت کاندید وزیرانو د ردېدلو احتمال لیده کېږي او که دا کار وسي نو هم د جمهور رئیس حیثیت ته صدمه رسېږي او هم



یو داسې بحران منځته راځي چې سړی نه پوهېږي څه به پېښه سي. ده وویل چې جمهور رئیس درې څلور ځله ورغوښتی دی. تر زنې یې لاس ورلاندې کړی او په زاریو او عذر یې ورته ویلي دي چې د ماما زویه! هر ډول چې کېږي حل یې کړه! حاجي ظاهر، د ډوډۍ خوړلو څخه وروسته، د چایو د څښلو په وخت کې ایله په زغرده وویل چې ورونو او خویندو! په اولسي جرګه کې د نغدو پیسو څخه د کار اخیستلو پرته د رایو اخیستل امکان نه لري. ده وویل زه پوهېږم چې ټول کاندید وزیران دونه پیسې نه لري چې وکیلانو ته یې ورکړي او رایې په واخلي. په دې ترڅ کې یې یو ځل موږ ته مخ را واړاوه او ډېر حق په جانب یې راته وویل تاسې څه فکر کوئ؟ زه په مفته د اولسي جرګې لومړی مرستیال سوم؟ ما د دې چوکۍ د ګټلو له پاره درې سوه او یا زره ډالره ولګول. حاجي ظاهر وویل چې د هر وکیل د رایې تر لاسه کولو له پاره له پنځو څخه تر لسو زرو ډالرو پورې اړتیا ده؛ په دې حساب باید هر کاندید وزیر، د اعتماد د رایې تر لاسه کولو له پاره، له پنځوسو څخه تر سلو زرو ډالرو پورې ولګوي. ده وویل زه پوهېږم چې ټول کاندید وزیران دا پیسې نه سي پرې کولای؛ ما د هغو وزیرانو له پاره چې پیسې نه لري، دغه ګړی په خپل موټر کې یو میلیون ډالره نغد راوړي دي (خدای دې وکړي چې څوک یې وانه وري او موټر مې را څخه غلا نه کړي ځکه چې ډېرې پیسې دي که څه هم چې موټر مې په سم ځای کې درولی دی) هر وزیر چې هر څومره پیسو ته ضرورت ولري زه یې ورکوم نور وزیران چې خپلې پیسې لري هغوی دې خپله چاره وکړي.

د شپې نهه نیمې، لس بجې به وې چې مجلس ختم سو او موږ ته یې خپل ټیلیفونونه را کړل. زه دومره تر ذهني فشار لاندې وم چې کړۍ شپه مې د سر له درده خوب ونه کړ او ښه مې په یاد دي چې تر سهاره مې درې ځله د سر د

درد گولۍ وخوړې. ما په دومره سپین سترګې د دومره چټلو خبرو د اورېدلو تصور نه سو کولای. د اولسي جرګې لومړي مرستیال د شپاړسو تحصیل کرده وزیرانو، چې اکثریت یې مافوق لیسانس ول، په څومره زړه ورتیا د اولسي جرګې د فساد خبري کولې او په څومره سپین سترګې یې زموږ څخه د فساد غوښتنه کوله. دا خبري ښايي زما له پاره نا بلده وې ځکه یې دونه بده اغېزه را باندې وکړه چې کرۍ شپه یې خوب را څخه وتښتاوه. ځکه چې وروسته مې له هیڅ وزیر څخه وانه ورېدل چې د هغې شپې د خبرو په باب یې یا منفي تبصره کړې او یا یې تعجب کړی وي.

په سبا ، یعني د اپرېل پر شپږمه نېټه، د سهار پر نهو بجو په کارته پروان کي، د اجراییه رئیس ډاکټر صاحب عبدالله کي په کور کي غونډه وه. په دې غونډه کي، چې ما ګومان کاوه ډاکټر صاحب به هم تشریف لري، یوازي موږ شپاړس کاندید وزیران حاضر وو. د اقتصاد وزیر عبدالستارمراد، چې د مجلس مشرتوب یې کاوه، موږ ټولو ته وویل چې ټلیفونونه خاموش کړو او لیري یې کښېږدو. وروسته پخپله وزیر صاحب، د تېري شپې د خبرو په ادامه، یو څه اوږدې خبري وکړې. کاندید وزیرانو زیاترو تر ژبې لاندي او مبهمي خبري وکړې، چې زه یې چنداني په مطلب پوه نه سوم. د سرحدونو او قبایلو د چارو کاندید وزیر محمدګلاب منګل وویل چې موږ له یوه ترخه واقعیت سره مخامخ یو. په پارلمان کي اکثریت وکیلان خپلي رایي په پیسو خرڅوي. د ده د معلوماتو له مخي په حاضرو وزیرانو کي یوازي د حج او اوقاف وزیر وکیلانو ته پیسې نه دي ورکړي نور نو ټولو وزیرانو د پیسو په زور رایي تر لاسه کړي دي. د ښوونې او روزنې وزیر اسدالله حنیف بلخي وویل، جهاني صاحب ولي چوپ دی؟ ما ویل له امریکا څخه کابل ته له روانېدلو مخکي مې ویلي دي چې که دوه سوه میلیونه ډالره ولرم، چاته به،



د رایي له پاره، دوه ډالره ورنه کړم. کله چې کابل ته را ورسېدم، یوه سرمایه دار ملګري مې ځیګر راته وټکاوه او راته وې ویل چې د پیسو کار په ده اړه لري؛ هغه ته مې عین خبره کړې ده او دلته هم زما هماغه خبره ده. زه ملا نصرالدین نه یم چې خپل ځان ته به په سلو زرو ډالرو رایي اخلم او بیا به نو په وچه تنخوا ګوزاره کوم؛ او نه بل څوک ملا نصرالدین دی چې ما ته سل زره ډالره راکړي او بیرته یې په څو چنده را څخه ونه غواړي. زما هغه یوه خبره ده، حتی جمهور رئیس ته به اجازه ورنه کړم چې زما له پاره چاته پیسې ومني. زما له څنګه ښځینه کاندید وزیراني ناستي وې او په یوه سلا یې وویل چې د جهاني صاحب خبري تاییدوي؛ ځکه چې دوی یوه هم دونه پیسې نه لري چې رایي ورباندي واخلي. مجلس تقریباً بې نتیجې پای ته ورسېدی او د غرمنۍ له پاره موږ د اولسي جرګې د وکیل حاجي هاشم په کور کي ډوډۍ خوړلو ته روان سوو.

د شپې خبري، د حاجي ظاهر قدیر د انتظار په خلاف، ډېري پټې پاته نه سوې. (دیوار موش دارد، موش ګوش دارد) موږ د وکیل صاحب په کور کي غرمنۍ پای ته رسولې وه چې له ټلوېزیون څخه د پارلمان مستقیم جریان خپور سو. په اولسي جرګه کي د حاجي ظاهر قدیر او د پروان د وکیل حاجي الماس زاهد تر منځ خبري ترخې سوي وې او حاجي الماس د تېري شپې جریان او له کاندید وزیرانو سره د هغه په کور کي د خبرو موضوع او له هغوی څخه د ټلیفونونو د قیدولو خبره را میدان ته کړه. هغه وکیلان چې په موضوع نه وه خبر د ټولو خولې وازي پاته وې. په زړه پوري خبره دا ده چې ظاهرقدیر پر ټول جریان منکرسو او وې ویل چې ستا ټولي خبري بېځایه او غلطي دي. کاندید وزیرانو، چې له دغې اولسي جرګې څخه به یې لا وروسته د اعتماد رایي تر لاسه کولې، نه څه وویل او نه څه ویلای سوای؛

ځکه چې نه چا خصوصي او نه عامه پوښتنه ورڅخه وکړه.

تاکل سوې ده چې تقریبا یو کال وروسته (چې البته څه باندي دوه کاله یې واخیستل) د اولسي جرګې له پاره انتخابات وسي. اوس نو که حکومت په دغه شکل جوړ سوی او پارلمان یې په دغه توګه اجرآت وکړي نو زه یقین لرم چې په راتلونکي کي به هیڅ مثبت تغییر رانه سي. بیا به همدغه فاسد وکیلان، همدغه فاسده اولسي جرګه جوړوي او هغه اولسي جرګه به بیا همدغه یا بل فاسد حکومت ته رایه ورکوي. په داسي حال کي چې د افغانستان د اوسنۍ فاسدي او غیر قانوني حکومتي اداري په زور نسکورول یوازي د هیواد غمیزه اوږدوي او بیا به د لس ګونو زرو بېګناه افغانانو سرونه ورغړي، خو ترڅو پوري چې په اولس، په تېره بیا منورینو، کي اجتماعي او ملي شعور پیدا سوی نه وي او ترڅو پوري چې منورینو یو اغېزمن اپوزیشن جوړ کړی نه وي انتخابات به هیڅ یا چنداني ګټه ونه کړي او بیا به همدغه آش او همدغه کاسه وي.

له اولسي جرګې څخه د باور د رایي ترلاسه کولو څخه وروسته مي په کار پیل وکړ. د اشرف غني په حکومت کي خو به عجیب او غریب اجرآت هره ورځ کېږي او مثالونه یې دومره ډېر دي چې د لوستونکو حوصله ختموي. له موږ شپاړسو وزیرانو څخه مخکي نیمه کابینه جوړه وه او په موږ یې ګواکي کمبود پوره کړ. د کار د پیل کولو سره سم، چې مي راسته او چپه لاس لا نه وو پېژندلي، د اشرف غني د امر په اساس، د وزارتونو د سل ورځنیو اجرآتو او د راتلونکو سلو ورځو له پاره د پلان جوړولو فعالیتونه پیل سول. دې ناڅاپي امر په ټولو وزارتخانو کي داسي هیاهوی جوړ کړی وو چې سړی یې په تمامه معنی غوبل او اندوخر بللای سي. د وزیرانو او سلاکارانو چې هر څه دروغ په وس پوره وه هغه یې وویل. سل ورځني کارونه یې اولسمشر ته تقدیم کړل او د راتلونکو سلو ورځو وعدې یې ورکړې. نه یم خبر چې اولسمشر به دا چېري زده کړي یا اورېدلي وه خو لویه هنګامه یې جوړه کړې وه. په سفارتخانو کي چې به مېلمستیاوو ته ولاړو نو سفیرانو او د سفارتونو عالي رتبه مقاماتو به هم زموږ د سلو راتلونکو ورځو د پلانونو په باب پوښتني راڅخه کولې. هر وزیر خپل د اجرآتو رپوټ یو ځل، دوه ځله او حتی درې ځله د جمهور رئیس او د هغه د ورسره سلاکارانو په مخ کي، د ښوونځي د شاګردانو په څېر لوستی. که به د وزیر طالع خرابه وه، یا به جمهور رئیس په ښه موډ کي نه وو او یا به یې له وزیر سره له لویه سره جوړه نه وه، نو د وزیر صاحب له پاره د عرصات د میدان تر سوال و جواب کمه خبره نه وه. پر وزیر بېچاره به خولې راماتي وې او دونه تکلیف به یې لیدلی وو چې خپلو سیالانو ته په کیسه کولو به شرمېدی. دا رپوټونه وروسته په کابینه کي لوستل کېدل او یوه ورځ له سهاره تر ماښامه پوري دې کار ته خاصه سوې وه. هغه وزیر نر وو چې د ارقامو په وړاندي کولو کي یې پخپله یا سلاکارانو مهارت درلود او د رپوټ په وړاندي کولو کي به یې له کمال څخه کار واخیست. وروسته هر وزیر مجبور وو چې، په خپل نوبت، دا رپوټ په یوه خبري کنفرانس کي وړاندي کړي او د خبریالانو پوښتنو ته جوابونه ووایي.

د لومړیو سلو ورځو د فعالیتونو او د رتلونکو سلو ورځو د پلانونو د رپوټونو د ورکولو سره سم، چې اولسمشر د ځینو رپوټونه په ورین تندي او د ځینو په تریو تندي او حتی، د خپل عصباني حالت سره سم، په بې نزاکتي قبول کړل، دا لومړۍ هنګامه هم پای ته ورسېده او په دې وروسته څلورو کالو کي بیا د سل ورځنیو کارونو او راتلونکو سلو ورځو د پلانونو نوم چا نه دی اورېدلی. د اشرف غني د حکومت ټول اجرآت همداسي دروا خله. د خپلو خبرو د رالنډولو له پاره به یې دوه مثالونه درکړم.

د دوه زره شپاړسم کال د جنوري په میاشت کې د جمهور رئیس له دفتر څخه احوال راغی چې اولسمشر، خارجه وزیر او ګڼ شمېر نور وزیران د قزاقستان پایتخت استانې ښار ته ځي. ځانونه تیار کړی او ډېر فوق العاده تاوده لباسونه درسره واخلی چې هلته ډېره سخته یخني ده. دوې یا درې ورځې وروسته هغه تاکلې نېټه را ورسېده او هوایي ډګر ته ولاړو. په هوایي ډګر کې مې له یوه تاجر حاجي محمد یونس مهمند څخه، چې په دغه سفر کې راسره ملګری وو او له نیژدې مې پېژاند، پوښتنه وکړه چې تاسي خو د خپلو تجارتي کارونو او قراردادونو له پاره ځی. زه نه پوهېږم چې ما ولې ورسره بیایي؟ حاجي محمد یونس ومسل او راته وې ویل چې پر جمهور رئیس باندې ګران یې ځکه دي ورسره بیایي. خبره مې په ټوکو واخیستله او یو ګړی وروسته الوتکې ته پورته سوو. د استانې ښار، تر هغه چې ما یې تصور کړی وو، څو چنده سوړ وو. ما په خپل ټول ژوند کې، هیڅ وخت دومره یخ نه وو احساس کړی. ښایي د ساتنې ګراد منفي دېرش درجې به وه. له الوتکې څخه تر ترمینل پورې تقریبا دوه درې سوه میتره لاره وه. فکر مې نه کاوه چې ژوندی یا سالم دې ورسېږم. په هر صورت، لږ وخت وروسته هوټل ته ورسېدو.

په سبا سهار، د ورځې د یوولسو بجو په شاوخوا کې، د جمهوري ریاست قصر ته ولاړو. له ښه ډېر انتظار څخه وروسته، د جمهو رئیس غني او د قزاقستان د جمهور رئیس تر منځ خبري پای ته ورسېدلې او موږ وزیران یې یوه لوی صالون ته رهنمایي کړو. د منلو خبره نه ده، چې زه په دغه صالون کې خبر سوم چې د قزاقستان سره یو کلتوري قرارداد، چې طبعا مخکې خبري ورباندې سوې دي، لاسلیکوم. یو ګړی وروسته زما نوم یاد سو. د قرارداد د لاسلیکولو مېز ته ولاړم او قرارداد مې، له ټولو رسمي تشریفاتو سره سم لاسلیک کړ. په قرارداد کې



څه وه؟ تر اوسه هم نه یم خبر. ځکه چې ما ته وروسته هم چا کاپي رانه کړه. ښایي د اطلاعاتو او کلتور وزیر ته به له قزاقستان غوندې یوه مهم ګاونډي هیواد سره د کلتوري قرارداد په اړه خبرېدل لازم نه بلل کېده او وظیفه به یې یوازې د قرارداد لاسلیکول وه. په زړه پورې خو دا وه چې د قرارداد له لاسکیک کېدلو څخه وروسته هوټل ته ولاړو او هلته، زموږ سره ټللي خبریالان، را باندې را وګرځېدل. د راډیو او ټلوېزیون مایکونه یې خولې ته راته ونیول او د لاسلیک سوي قرارداد په باب یې پوښتني را څخه پیل کړې. قرارداد په څه باره کې وو؟ مهمې مادې یې څه وې؟ د افغانستان له پاره یې څه مشخصه ګټه درلوده؟ تاسي زما د هغې ورځې او هغه ګړې د حالت په باب تصور کولای سی. اوس که زه ورته ووایم چې ما اصلاً قرارداد لیدلی نه دی او لاسلیک کړی مې دی. دا د حکومت له پاره څومره لویه بدنامي او زما له پاره شخصا څومره لویه بې آبي وه. له امریکا ږغ راډیو سره د اووه ویشتو کالو کاري تجربو او خپلې نطاقۍ او زړه ورتوب مرسته راسره وکړه. د مرکزي اسیا په سیمه کې مې د افغانستان پر ستراتیژیک اهمیت او وروسته د دواړو اسلامي هیوادونو تر منځ د هر ډول اړیکو په تېره بیا کلتوري اړیکو د اهمیت په باره کې دونه خبرې ورسره وکړې چې خبریالانو ته مې د مشخصو پوښتنو له پاره نور ځای پرې نه ښود. په دې توګه مې ځان د خبریالانو له شره خلاص کړ او هغوی بېچارګان مې له خپل بېځایه لکچر څخه بېغمه کړل.

له دې څخه درې میاشتې وروسته یوه ورځ د اجراییه رئیس عبدالله عبدالله د دفتر څخه ټلیفون راته وسو ویل یې درې ورځې وروسته ایران ته سفر دی. ځان مې تیار کړ. د ټرانسپورټ وزیر او څو تنه نور وزیران او د پارلمان وکیلان هم راسره ملګري ول. تهران ته ولاړو او په سبا سهار له هوټل څخه د باندې په یوه لوی صالون کې د قراردادونو د لاسلیک کولو له پاره حاضر سوو. دا بېخي د منلو خبره نه ده او که یو وخت زما دا لیکنه چا لوستله حتماً به یې مبالغه وبولي،

چي په هـ ـغه وخت کي خبر سوم چي زه هم قرارداد لاسلیکوم. یو ګړی وروسته د ایران د کلتور وزیر میز ته حاضر سو او زما د انتظار په خلاف، په خارجه وزارت کي سیاسي معین حکمت خلیل کرزی ور وړاندي سو او د دواړو هیوادونو ترمنځ یې د کلتوري همکاریو په باب قرارداد ورسره لاسلیک کړ. زما سره ملګرو وزیرانو ماته هېښ هېښ کتل او حق په جانب هم وه که څه هم چي په افغانستان کي، په تېره بیا د اشرف غني په حکومت کي، دا خبره باید ډېره عادي واخیستله سي. خو د اطلاعاتو او کلتور د وزیر په مخ کي، حتی د اشرف غني په حکومت کي هم یو څه نا بلده او نا پېښنه کار وو. د دې قرارداد له لاسلیکېدلو څخه وروسته د ایران د یوه بل وزیر نوم یاد سو او زما نوم یې ورسره یاد کړ. زه تر مخکي ځل دا ځل ډېر هک پک سوم. د کلتوري همکاریو په باب قرارداد لاسلیک سوی وو. اوس یې ولي وروبللم. که ګورم چي د سپورټ په باره کي د دواړو هیوادونو تر منځ د همکارۍ قرارداد دی چي نه یې ما، د پخوا په څېر یوه ماده لوستې وه او نه یې زما سره کومه اړه درلوده. قرارداد مي لاسلیک کړ. بخت دونه یاري راسره وکړه چي په دې سفر کي خبریالان راسره تللي نه ول او یا یې لږ ترلږه ماته آزار رانه کړ.

د اشرف غني او عبدالله حکومت، چي دوی د ملي وحدت د حکومت نوم ورکړی وو، له لومړۍ ورځي د ملي اختلاف حکومت وو. د دې حکومت لوی نقص دا وو چي پخپله د خپل اساسي قانون په خلاف، د امریکا د خارجه وزیر جان کېري په مستقیمه قومانده منځته راغلی وو، او باید چي سم نه وای چلېدلی. په هفته کي، چي باید معمولاً یو ځل د کابینې غونډه سوې وای، دوه ځله غونډه کېدله، چي تر اوسه پوري هم هغه شکل دوام لري. په زړه پوري خبره دا ده چي اوس یې پخپله اشرف غني هم دوه سری حکومت بولي او وایي چي بیا به هیڅ وخت دوه سری حکومت جوړ نه کړي.

د دوو کابینو یوازینی نقص دا نه وو چي د وزیرانو وخت ضایع کېدی او د غونډو په شکل، پروسیجر او اجرآتو کي، پرته له دې چي د عبدالله په کابینه کي



اشرف غني او د هغه مرستیالان نه حاضرېدل او د اشرف غني په کابینه کي به عبدالله او د هغه مرستیالان حاضر ول، نور کوم توپیر نه لیده کېدی. د اشرف غني لومړی مرستیال رشید دوستم مي د یو کال او اتو میاشتو وزارت په جریان کي یوازي دوه ځله ولیدی. چي زړه به یې سو د کابینې او جمهوررییس له اجازې پرته به یې جنګي دریشي په ځان کړه او جنګ ته به روان سو او چي له جنګه به راستون سو د خپلو اندېوالانو سره به له سهاره ترماښامه په نشه کي ډوب وو.

د دوستم په دفتر یا قصر کي د دروازې له عسکر څخه نیولې تر ده پوري په استثایي توګه یو غیر اوزبیک موجود نه وو. د دانش او محقق په دفترونو کي یوازي هزاره ګان کښنته پورته کېدل او د بل توکم سړی یا نه وو او یا لږ ترلږه ما نه دی لیدلی. د اشرف غني په ټوله شاوخوا کي یوازي د ده سړي او طرفداران راټول ول او د عبدالله دفتر یا قصر سپیدار باید طبعا د هغه له ملګرو څخه ډک وای. د اشرف غني په طرفدارو وزارتونو کي د عبدالله امر چا نه مانه او د عبدالله په طرفدارو وزارتونو کي، چي ماته معلومات سوي دي، هم دغه حال وو. دې ته وایي د ملي وحدت حکومت.

د اطلاعاتو او فرهنګ د وزارت په کارونو کي ارګ او پخپله اولسمشر دونه مداخله کوله چي زه یې بالاخره د یوه وزیر په حیث بې صلاحیته کړی وم او حتی تر دې حده چي په ټلیفون کي یې ماته د سرپرستو رئیسانو د مقررولو امرونه کول. په داسي حال چي ده پخپله د سرپرستانو د ټاکلو بندول غوښتي وه او یوه ورځ یې په کابینه کي نور وزیران تهدید کړل چي که په دوو هفتو کي د خپلو ټولو سرپرستو رئیسانو پر ځای دایمي او رسمي رئیسان د منظورۍ اخیستلو له پاره معرفي نه کړي دوی به برطرفه کړي او حتی څارنوالۍ ته به یې معرفي کړي. د وزارت له کارونو سره مي علاقه ډېره کمه سوه او له اولسمشر څخه مي څو ځله وغوښتل چي که زما څخه وزارت واخلي او د سولي په پروسه کي مي، چي زه ډېره زیاته علاقه ورسره لرم او فکر کوم چي په دغه کار کي موثریم، فعال کړي. په دې اړه مي په یوه مضمون کي، چي په انټرنیټ کي مي خپور کړ، ټول بیان کړی دی. بېځایه یې نه بولم چي هغه مضمون کټ مټ را نقل کړم.

## د سولي کيسه

په افغانستان کي د کلونو راهيسي، په تېره بيا د (۲۰۰۵م.) ميلادي کال څخه وروسته، چي پر حکومت باندي د خلکو باور ورځ په ورځ سست سوی او په مقابل کي د طالبانو قواوي هره ورځ تر بلي غښتلي سوي دي، جنګ روان دی. د (۲۰۱۴م.) ميلادي کال په پای کي د امريکايي قواوو او د هغوی د متحدينو، چي د (۲۰۰۱م.) ميلادي کال د نومبر په مياشت کي يې پر افغانستان باندي يرغل پيل کړی او د طالبانو نظام يې نسکور کړی وو، ډېره زياته برخه له افغانستان څخه ووتل. طبيعي خبره ده چي له هيواد څخه د لوېديځو قواوو د وتلو سره جنګونو زور واخيست او د (۲۰۱۵م.) کال د اکتوبر په مياشت کي يې د لومړي ځل له پاره د کندوز په ښار يوه لوی او ستراتيژيک ښار ته سقوط ورکړ او څه باندي يوه هفته يې د ښار د اوو اتو اولسواليو او د کندوز ولايت ته څېرمه نورو زياتو کليو او لارو کنټرول واخيست. له دې څخه تقريبا درې څلور مياشتي مخکي د بدخشان ولايت څخه د طالبانو او داعش د ډلي د قوي کېدلو خبرونه راتلل؛ او د وردوج او يمګان په څېر مهمو او ستراتيژيکو اولسواليو د څو ځله نيول کېدلو رپوټونه راغلل. طالبانو له دغو اولسواليو څخه ډېري زياتي وسلې او مهمات ترلاسه کړل. ژوندي عسکري ونيول او په يوه پېښه کي خو يې د اتلسو نيول سويو عسکرو سرونه غوڅ کړل. د (۲۰۱۶م.) کال په مني کي کندوز يو ځل بيا سقوط وکړ او د ولايت بې دفاع خلک يې يو ځل بيا په وينو او لمبو کي کښېنول.

د (۲۰۱۵م.) کال د اکتوبر او نومبر په مياشتو کي د کندوز او بدخشان د



ولايتونو ترڅنګ د تخار ، بغلان او فارياب د ولايتونو پوځي وضع هم خطرناکه سوه. د (۲۰۱۶م.) کال په مني کي د تېر کال پېښي، په څو چنده خراب شکل، تکرار سوې. طالبانو څو ځله مهمي اولسوالۍ ونيولې او د جنګونو په نتيجه کي ډېر زيات مالي او ځاني تلفات ورسېدل. د جمهور رئيس لومړي مرستيال، جنرال عبدالرشيد دوستم، د شمالي ولايتونو د کرارولو او سولي د ټينګولو له پاره هغې سيمي ته څو ځلي سفرونه وکړل. دوستم کله د لويو لارو د داړه مارانو په څېر مول وهلی او کله يې عسکري جامې په ځان کي وي، لکه ميندِه غويي رمباړي وهي؛ او چي هر ځل په سيمه کي تر پوځي عملياتو وروسته را ستون سي، د اولسواليو او ولاياتو وضع تر پخوا لس چنده نوره خرابه سي. د هغه د ګليم جم ملېشه، چي له مسلکي غلو او قاتلانو څخه جوړه ده، د شمالي ولايتونو کلي او بانډې، په تېره بيا پښتني سيمي، چي نه له ځانونو څخه د دفاع توان لري او نه په دولت کي غمخور لري، ولوټي، اوسېدونکو ته يې راز راز تکليفونه ورکړي؛ حتی د خلکو پر ناموسونو باندي د تېريو رپوټونه راځي او لا دوستم فکر کوي چي حکومت او هيواد يې د خدمتونو پوروړي دي.

د جنوبي او جنوب لوېديځو ولايتونو وضع، چي له پخوا څخه هم ښه نه وه، تر شمالي او شمال ختيځو ولايتونو هم خرابه سوه. طالبانو څو ځله د لښکرګاه او قلات په څېر مهم ښارونه محاصره کړل او نيژدې وو چي د کندوز په څېر سقوط ورکړي. که د دې تباه کونکو جنګونو په باره کي د خلګو آوازې او تحليلونه او حتی پېښو ته د ډېرو نيژدې کسانو خبري ومنو نو دا بېګناه، بې دفاع او غريب هيواد، چي هيچا ته يې تاوان نه دی رسولی، د لوېديځو قدرتونو د يوې پراخي او ظالمانه دسيسې ښکار او قرباني دی.

په داسي حال کي چي د سولي د ټينګولو له پاره هيڅ موثر قوت يا کار نه

کوي او یا یې نه سي کولای، د جنګ په جریان کي، کله، کله، داسي آوازې او خبرونه اورېدل کېږي چي سړی یې په منلو او نه منلو پوري حیران وي. د زابل ولایت پخواني امنیه قوماندان روغ لېوني څو ځله په عامه وویل چي د ده په ولایت کي د طالبانو او امنیتي قواوو د تودو جنګونو په سیمه کي، په هغو ځایونو کي چي د طالبانو تر کنټرول لاندي دي، هیلي کوپټرونه کښته کېږي او وروسته بیرته والوزي. هغه وویل چي دا الوتني ډېري شکمني ښکاري او باید چي پوښتنه یې وسي. البته په دې باب هیڅ تحقیقات ونه کړل او یا یې کولای نه سوای او په عوض کي امنیه قوماندان د خپلي وظیفې څخه لیری کړه سو. د هلمند، اوروزګان، زابل، کونړ او نورو پښتني سیمو په باره کي دغه راز آوازې پخوا هم اورېدلي سوي وې خو دا لومړی ځل وو چي د حکومت یوه عالي رتبه امنیتي مقام دغه راز ادعا وکړه. له دې څخه ډېر مخکي، پخواني جمهور رئیس حامد کرزي څو ځله وویل چي طالبان په هیلي کوپټرونو کي شمالي سیمو او بدخشان ته انتقالېږي؛ خو زیاترو خلکو دا خبره د امریکا او کرزي د اختلافاتو محصول وبلله.

د پکتیا ولایت، چي نسبتاً ارام او د جګړو څخه په څنګ وو، د ولایتي شورا استازو مجیب الرحمن څمکني، سردار خان ملنګ زي او نورو د روان (۲۰۱۶م.) کال د نومبر د میاشتي پر اووه لسمه په خپلو تلوېزیوني مرکو کي وویل چي د جاني خېلو، ډنډ پټان، څمکنیو او نورو اولسوالیو امنیتي وضع د څو هفتو راهیسي خرابه ده او د جاني خېلو اولسوالي خو د طالبانو په محاصره کي ده. مرکزي حکومت نه د اولس او نه د خپلو محاصره سویو پوځیانو پر چیغو غوږ نیسي، بلکه موږ او د اولس نور خلک په سترګو وینو چي طالبانو او وسله والو مخالفینو ته په هیلي کوپټرونو کي وسلې او مهمات وړل کېږي او ورځ تر بلې غښتلي کېږي. سردار خان ملنګ زي وویل



چي جمهور رئیس ته یې پخپله دا خبره کړې ده؛ چي جمهور رئیس یې ږغ وانه وري نو دوی به بل چا ته ورسي؟

په اولسي جرګه کي د نورستان د ولایت وکیل مولوي احمد الله موحد د (۲۰۱۵م.) کال د نومبر پر شپږویشتمه د طلوع نیوز سره په مرکه کي وویل چي امنیتي چارواکو هغه مرستي چي د جنګ ځپلو او له خپلو کورونو څخه بېځایه سویو خلکو له پاره لېږلي سوي وې، هغو سیمو ته یووړې، او یا یې په لوی لاس پر هغو لارو باندي انتقال کړې چي د طالبانو تر کنټرول لاندي وې. مرستي طبعا د طالبانو لاسته ورغلې او هغوی یې لږ تر لږه د یوه کال له پاره اکمال کړل. دغه راز پېښې او آوازې سړی د سولې پر جریان او هلو ځلو باندي نور هم بې باوره کوي. داسي ویل کېږي چي د نورستان د ولایت په سلو کي نیوي سیمي د طالبانو په لاس کي دي. د وایګل د اولسوالۍ بشپړ کنټرول د طالبانو سره دی؛ هلته یې له ډېره وخته راهیسي مرکز جوړ کړی دی او له هغه ځایه نورستان او شاوخوا سیمو ته اوامر صادروي او جنګي او قضایي اجرآت کوي؛ خپلې محکمې لري او تر حکومتي ادارو لس چنده چټک او د خلکو له خوښي سره سم کارونه مخ ته وړي. د نورستان وکیل مولوي موحد وایي کله چي له امنیتي چارواکو څخه د دې کار د علت پوښتنه وکړو هغوی وایي چي د طالبانو سره یې ځکه زور نه رسېږي چي نه کافي وسلې او مهمات لري او نه د جنګ په وخت کي اکمالات ورته رسېږي. اوس نو د یوه هیواد په جنګونو کي چي امریکا مستقیمه برخه ولري او له حکومت سره یې د ناټو او ټولي لوېدیځي نړۍ مالي او تخنیکي ملاتړ ملګری وي او هغه خپل عسکر اکمال نه کړای سي، موږ به چا ته ورسو؟

البته دا هغه خبري دي چي د جنګ له تقریبا ټولو جبهو څخه، په یوه او بل شکل اورېدلي کېږي. خبره دې ځای ته ورسېده چي د اولسي جرګې د رئیس

لومړي مرستیال ظاهر قدیر د (۲۰۱۵م.) کال د نومبر پر پنځه ویشتمه د اولسي جرګې په غونډه کې وویل چې د داعش له ډلو سره د افغانستان دولتي مقامات همکاري کوي او دی په دې باره کې اسناد لري. البته د ده دا ادعاوي هم حکومتي مقاماتو او هم د اولسي جرګې ځینو استازو رد کړې. نه ده، د دومره لویې ادعا د ثبوت له پاره اسناد وښودل او نه چا، په جدي توګه، ورڅخه وغوښتل.

که خبرې په دغه شکل دوام وکړي نو د جنګ په جبهو کې د قواوو انډول، ورځ په ورځ، د طالبانو یا د حکومت د دښمنو او مخالفو قواوو په ګټه تغییر کوي. دغه راز تبصرې او رپوټونه، څرګند اداري فساد، چې په نړۍ کې دوهم او دریم مقام لري او د حکومت د مشرانو ترمنځ سخت اختلافات د سولې د ټینګولو له پاره بې اراده ګي، د عسکرو، امنیتي قواوو او، په عمومي صورت، ټول اولس روحیات ورځ په ورځ کمزوري کوي.

هغه کسان چې له افغانستان څخه د وتلو توان لري، یا وتلي او یا د وتلو په حال کې دي. ماته د داخله وزارت یوه عالي رتبه مامور په یوه مېلمستیا کې وویل چې هره ورځ، په اوسط ډول، اوه زره پاسپورټونه اخیستل کېږي. په دې کسانو کې، چې په قانوني او غیرقانوني توګه له افغانستان څخه د وتلو او اروپا او نورو ځایونو ته د ځانونو د رسولو کوښښونه کوي او اکثریت یې له سختو بدمرغیو سره مخامخ کېږي، په سلو کې پنځه نیوي ځوانان دي. افغانستان په نړۍ کې یو له تر ټولو ځوانو هیوادونو څخه دی چې په سلو کې پنځه شپېته کسان یې له څوارلسو څخه تر پنځه ویشتو کالو پورې عمرونه لري. خو له بده مرغه، چې هره ورځ یې په سل ګونو ځوانان بهر ته تښتي، یا د مخدره موادو استعمال ته مخه کوي او یا د بېکارۍ او د تهدیدونو له کبله له افراطي ډلو سره یو ځای کېږي.



## د سولې له پاره ناکام کوښښونه او بې هدفه هلې ځلې:

افغاني او بهرنیو قواو یا ونه سو کړای یا یې ونه غوښتل چې د طالبانو د تو‌ت د پر له پسې زیاتېدلو مخه ونیسي. پخواني جمهور رئیس حامد کرزي د (۲۰۱۰م.) میلادي کال د سپتمبر پر پنځمه نېټه د سولې کمېټې یا د سولې تراژیکه کمېډي پیل کړه. د سولې د عالي شورا په نوم یې یوه اویا کسیزه ډله، چې وروسته یې غړي وار په وار زیات سول، جوړه کړه او رهبري یې برهان الدین رباني ته، چې د طالبانو تر ټولو سخت دښمن وو او په هیڅ توګه یې د سولې سره علاقه نه درلوده، وسپارله. د سولې د شورا د مشرتابه نور غړي هم، چې له پنځو څخه تر پنځلسو زرو ډالرو پورې تنخواوې ورته وټاکلې سوې، زیاتره د مجاهدینو د بېلو بېلو ډلو مشران او د طالبانو مخالفین او په وروسته کې هغه باد رېږه طالبان ورباندې زیات سول چې طالبان له دوي پرته له بل هر چا سره خبرو ته تیار ول. جمهور رئیس حامدکرزي په دې توګه ډېرو کسانو ته ډېر لوړ امتیازات، چې د امریکا له خزانې څخه راتلل، ورکړل او د سولې د دې تراژیکي کمیډۍ په پیل کولو سره یې د سولې او جنګ مسوولیت ګواکي له غاړې وا ړاوه؛ او ډېر کسان یې له ځان څخه راضي کړل. د سولې د عالي شورا رئیس یو کال وروسته د طالبانو په هغه ځانمرګي برید کې چې تر اوسه یې سم درک نه دی معلوم ووژل سو او د معمول سره سم یې میراث ځوان زوی صلاح الدین رباني ته ورسېدی. د سولې په اصطلاح عالي شورا، چې نه یې د جنګ د میدان د تودولو او نه یې د جنګ د اور په وژلو او یا د سولې په ټینګولو کې تاثیر ښودلی دی د حکومت او امریکا په پرېمانه او بې حسابو پیسو خپل ژوند ته تر هغه وخته دوام ورکړ چې د عالي شورا رئیس یې د ملي وحدت!!!! په

حکومت کې د خارجه وزیر په حیث وټاکل سو. د سولې عالي شورا هم له دې سره ولاړه او د سولې له پاره د بل ناکام کوښښ، یا بهتره ده ووایو، بلې دسیسې له پاره کار پیل سو.

نه پوهېږم چې چا به د ملي امنیت د شورا سلاکار حنیف اتمر ته ویلي وه چې جهاني هم په مجلسونو کې درسره شامل کړی. حنیف اتمر د پنجشنبې په ورځ و د غرمې پر مهال په خپل دفتر کې یو مجلس جوړ اوه چې په هغه کې به د دفاع وزیر معصوم ستانګزي، د مالیې وزیر اکلیل حکیمي، د پارلماني چارو وزیر غلام نبي فراهي، د اداري امورو رئیس سلام رحیمي، د امنیت په چارو کې سلاکار وزیر ډاکتر اکرم خپلواک او سلطان زوی برخه درلوده. د (۲۰۱۵م.) کال د ډسمبر میاشت به وه چې حنیف اتمر د سولې د عالي شورا د بیرته ژوندي کولو او فعالولو خبره رامنځته کړه. له دې طرحې سره، طبیعي ده، هیچا مخالفت ونه کړ او ورپسې لومړۍ خبره د سولې عالي شورا د رئیس وه. حنیف اتمر د دې وظیفې له پاره تر ټولو مستحق او لایق سړی یونس قانوني وباله. له لږ بحث څخه وروسته یې، له ما پرته، د مجلس توافق تر لاسه کړ. خو په بل مجلس کې معلومه سوه چې یونس قانوني یوازې د سولې عالي شورا د ریاست په جګه تنخوا، چې له نورو امتیازاتو پرته، د میاشتې شل زره ډالره کېږي، قناعت نه لري او ډېر زیات امتیازات غواړي. د هغه له نومول کېدلو څخه صرف نظر وسو؛ او حنیف اتمر په بل مجلس کې د پیر سید احمد ګیلاني خبره مطرح کړه. ما ورته وویل چې موږ هسې خلک خوشالوو او که ریشتیا سوله غواړو. په دغه وخت کې د مالیې وزیر اکلیل حکیمي مجلس ته را ننووت. حنیف اتمر سمدستي هغه ته وویل چې موږ د سولې د عالي شورا د رئیس د ټاکلو په باب خبري کولې او اوس حاضر د پیر صاحب نوم طرح دی. هغه وویل چې موږ خلک خوشالوو او که ریشتیا سوله



غواړو. مجلس په یوه سلا وخندل. کله چې حکیمي د خندا د علت پوښتنه وکړه نو دوی ورته وویل چې جهاني صاحب دغه ګړی همدغه سوال وکړ.

پیر سید احمد ګیلاني نیوي کلنۍ ته ورلنډ دی. د دومره زاړه عمر تر څنګ یې د روغتیایي حالت مزه هم نسته او د بل چا په مرسته کښېني او ولاړېږي او د خپلې فطري ګونګۍ ژبې تر څنګ یې، چې د سولې په چارو کې خبرو او منطق ته معمولاً ډېره زیاته اړتیا وي، له طالبانو سره هیڅ وخت ښې اړیکې نه دي درلودلې. د ده تر څنګ، د پخواني جمهور رئیس حامد کرزي دوهم مرستیال، کریم خلیلي، چې د طالبانو وینو ته تږی ناست دی او هغوی یې هم له نامه څخه نفرت لري، د مرستیال په توګه ورته وټاکل سو او د پیر نیږدې سلاکاران په همدغه ترتیب، د چټلو سیاسي معاملو د پر مخ بېولو او ټاکلو اشخاصو د خوشالولو له پاره، یو په بل پسې تعین سول. البته زه لکه، د حنیف اتمر، په پېشنهاد چې دې مجلس ته بې دلیله ور شامل کړه سوی وم همداسې د حنیف اتمر له خوا په پټه خوله له لیسته ولوېدلم؛ ځکه چې زما حضور دوی ته هسې سرخوږی جوړ اوه نوره کومه ګټه یې نه ورته کوله.

په افغانستان کې د سولې د ټینګولو خبره ډېره ساده هم نه ده. د جنګ او ستونزو کیسه څه کم څلوېښتو کلونو ته رسېږي او که د پاکستان د صدراعظم ذوالفقار علي بهوټو په وخت کې د هغه هیواد د پوځي استخباراتو د ادارې آی ایس آی سره د حزب اسلامي د مشر ګلبدین حکمتیار، د حزب اسلامي د بل مشر مولوی محمد یونس خالص، د جمعیت اسلامي د مشر برهان الدین رباني او د دوی د انډیوالانو د نوکرۍ او مزدورۍ څخه یې را پیل کړو نو کیسه تر څلوېښتو کلونو هم اوړي. په دې دومره اوږده موده کې د افغانستان د داخلي جنګ مسلې د یوه نه رغېدونکي پرهار شکل اخیستی دی؛ او له پاکستان، ایران، هند او چین

څخه نیولې، تر شوروي اتحاد، او اوسني روسیې، متحده ایالاتو، لوېدیځو قدرتونو او عربي نړۍ پورې هر یوه د خپل زور او توان سره سم د خپلو ګټو، خوندي کولو او خپلو بچیانو د روزلو، ساتلو او لویولو له پاره ورېږ او لویې ځالګۍ جوړې کړې دي. که د سولې د ټینګولو له پاره هر اقدام کېږي نو په افغانستان کې د داخلي دښمنیو او مخالفتونو، اداري فساد او د سولې د ټینګېدلو په مخ کې د یو عالم خنډونو تر څنګ د دې ټولو لویو او وړو قدرتونو ګټې به په نظر کې نیولې کېږي. البته دا هم په هغه صورت کې چې د سولې د ټینګولو سره خارجیان ریښتونې علاقه ولري او په داخل کې له چا سره د افغانستان پر مظلومو خلکو زړه سوی او د سولې د ټینګولو ریښتونې اراده موجوده وي.

په افغانستان کې د سولې د ټینګېدلو غم هیڅ وخت له هیچا سره نه وو. په لنډه توګه باید ووایو چې په سوله کې هیڅ وخت ناروا پیسې یا نه وي یا ډېرې لږې وي. په جنګ کې ډېرې روانې وي. ښارونه تباه کېږي، خلک وژل کېږي، په زرهاوو او کله په میلیونونو، خلک مهاجر کېږي. پر مهاجرینو باندې د ملګرو ملتونو بېلې، بېلې مؤسسې خپل تجارتونه کوي او د ښارونو په تباه کېدلو او خلکو په قتلېدلو کې لېوان چاغېږي؛ نوي قراردادونه کېږي، رشوتونه اخیستل کېږي؛ د کوکنارو او بنګو کروندې هره ورځ تر بلې زیاتېږي. په افغانستان کې دننه د عالي رتبه مقاماتو جېبونو ته پیسې ور روانې وي؛ د امریکا او ناټو جنرالانو ته په میلیونونو او په بهر کې د لوېدیځې نړۍ مافیایي کړیو او پانګه والو ته په سوو میلیونه ډالره ور رسېږي. په داسې حالت کې به سوله څوک ولې غواړي؟ هغه بې وزلې او مظلوم خلک چې د جنګ او جنایتونو له لاسه کړېږي، هغوی د سولې په راوستلو کې اغېزه نه لري. هغه کسان او قدرتونه چې د سولې په راوستلو کې اغېزه لري، هغوی سوله نه غواړي، ځکه چې په سوله کې یې هیڅ ګټه نشته.



## د سولې له پاره زما خپلې بې نتیجې هلې ځلې:

د (۱۳۹۵م.) کال د حمل په میاشت یا د ۲۰۱۵ کال د اپرېل په میاشت کې مې د اطلاعاتو او کلتور د وزیر په حیث کار پیل کړ او د هماغه کال د ثور د میاشتې د نیمایي په شاوخوا کې یوه ورځ محمد امین باوري، چې څه موده یې د وزارت د نطاق په حیث کار کاوه، ټلیفون راته راووړ او کرار یې وویل چې یو طالب غواړي ستا سره خبرې وکړي. ما باوري صاحب ته وویل: چې جواب یې کړه، ورته ووایه چې نسته. زما یې د طالبانو سره څه کار. یوه ورځ وروسته هغه کس بیا ټلیفون وکړ او باوري صاحب ورته وویل چې وزیر صاحب نسته. په هماغه ورځ یې دریم ځل ټلیفون وکړ او دا ځل زه مجبور سوم چې په ټلیفون کې خبرې ورسره وکړم. خپل ځان یې شېرآغا معرفي کاوه، چې حتماً به مستعار نوم وو او ما ته یې وویل چې غواړي د سولې په باره کې له حکومت سره ورغېږي. ما ورته وویل چې زه نه د سولې سره کار لرم او نه په دې حساسه موضوع کې د خبرو صلاحیت او واک راسره دی. زه د اطلاعاتو او فرهنګ وزیر یم. که دوی څه خبرې لري نو باید چې د امنیت له شورا، دفاع له وزارت او داخله وزارت سره یې طرح کړي.

شېراغاجان دوه درې ځلې نور هم ټلیفون راته وکړ او بالاخره مې د جمهور رئیس سره عاجل وخت واخیست او پر موضوع مې خبرې ورسره وکړې. جمهور رئیس دونه خوشاله سو چې ما یې تصور هم نه سو کولای. هغه راته وویل چې د سولې په باره کې مې هر څه له لاسه کېږي هغه وکړم. ده راته وویل چې ما ته یې ځکه د سولې په کوښښونو کې د برخې اخیستلو بلنه نه سوای راکولای چې ویل یې زما صحت به د دونه کار اجازه را نه کړي. ما ورته وویل چې که د سولې په لاره کې د سلو ګامونو څخه د یوه ګام په اخیستلو کې اغېزه ولرم زما د غه افتخار بس دی. زه د وزارت له پاره نه یم راغلی؛ زه خدمت ته

راغلی یم. که فکر کوی چې زه دواړه کاره نه سم کولای نو وزارت راڅخه واخلئ؛ او یوازې مې د سولې د هلو ځلو کارونو ته ور خوشې کړئ. جمهور رئیس په ډېر صمیمیت رخصت کړم او راته وې ویل چې د سولې په لاره کې خپلو هلو ځلو ته دوام ورکړم او دی ضمناً غواړي چې د کندهار څخه ځینې کسان په حکومت کې شامل کړي. زه ډېر وروسته پوه سوم چې زما د هلو ځلو او سولې سره د مینې په لاره کې د حرکتونو د بې نتیجې کېدلو یوازینی او تر ټولو مهم علت زما بې اندازې پاکي او سپېڅلتیا وه. له حنیف اتمر څخه نیولې تر اولسمشر، د دفاع تر وزارته، د سولې تر عالي شورا، تر امریکا او خارجي موسسو او سفارتونو پورې ټول منافقت او غولول کوي. له سولې سره یوازې د افغانستان مظلوم اولسونه، چې هره ورځ د جنګ په لمبو کې سوځي، مینه او علاقه لري. ما له طالبانو سره مخ په مخ خبرې نه دي کړي؛ ځکه نو د هغوی د نیت په باره کې څه نه سم ویلای. زه نه سم ویلای چې هغوی هم د سولې لوبه روانه کړې ده او که په ریشتیا سوله غواړي.

ما په سبا سهار وختي، د کندهار د ولایتي شورا غړي او زما پخواني اشنای، حاجي آغا لالي دستګیري ته ټیلیفون وکړ او خپل دفتر ته مې، د خبرو له پاره، را وباله. هغه ته مې وویل چې په کندهار کې د طالبانو سره د تماسونو په ټینګولو کې مرسته راسره وکړي. حاجي آغالالي ځیګر راته وټکاوه او اطمینان یې راکړ چې یوازې به مې نه پرېږدي. څو ورځې وروسته د جانان په نوم یوه بل تن، چې وروسته یې ځان د مولوي عبدالقیوم ذاکر سړی معرفي کړ، تماس راسره ونیوی او ویل یې چې غواړي زما سره وګوري. ما امنیت ته خبر ورکړ او هغوی راته وویل چې لومړی خو بهتره ده چې د دوی په دفترونو کې ورسره وګورم او که نه وي نو د سرینا هوټل، چې ډېر ښه امنیتي تدابیر لري، د دغه راز کتنو له پاره ډېر مناسب ځای دی.



جانان، د عمومي طالبانو په خلاف، لویه ږیره نه درلوده، توره بګړۍ یې نه وه تړلې. میانه قده، نسبتاً ډنګر ځوان وو، خندانه څېره یې درلوده او ځان یې د مولوي عبدالقیوم ذاکر د خپلوانو او نیژدې باوري کسانو څخه معرفي کاوه. ده وویل چې پخپله د حکومتي مشرانو سره د لیدلو ارزو نه لري او غواړي اولسمشر اشرف غني ته دا پیغام ورسوي چې مولوي قیوم ذاکر د هغه سره مخامخ خبرو کولو ته تیار دی. ما ایله دوې میاشتې وروسته جمهور رئیس ولیدلای سو. کله چې مې هغه ته د مولوي قیوم ذاکر نوم یاد کړ نو له خوشالیه له خپلې چوکۍ څخه پورته سو او راته یې وویل چې په هره توګه کېږي له هغه سره د ده د ملاقات زمینه برابره کړم ځکه چې زه غواړم سوله راولم او سوله له مخامخ خبرو کولو پرته ممکنه نه ده (د یادولو وړ ده چې دا وخت لا جمهور رئیس او د هغه استخباراتي ادارو ته دا پته نه وه چې ملامحمد عمر وفات سوی دی؛ په داسې حال کې چې د هغه له وفات څخه تقریبا درې کاله تېر سوي وه) له دې څخه تقریباً یوه نیمه میاشت وروسته اولسمشر غني په ارګ کې د لوی اختر په مناسبت وینا کې ملامحمد عمر ته د سولې د خبرو بلنه ورکړه او پاکستاني استخبارات یې په ځان پورې وخندول. ډاکټر صاحب عبدالله د وزیرانو په شورا کې په یوه ډول ریشخندي لهجه وویل چې زموږ اولسمشر داسې یوه سړي ته چې له مړینې یې درې کاله تېرېږي د سولې د خبرو بلنه ورکړې ده؛ که له ده سره سلا سوې وای نو ده به د دغې بلنې مشوره نه وای ورکړې. ما سوال وکړ چې د دفاع او داخله وزارتونه او زموږ امنیتي ادارې په سل هاوو میلونه ډالره بودجه او دسترخانونه لري، په زرهاوو او په سل هاوو زره افراد او مامورین لري، هغوی څرنګه او ولې دا اطلاع نه وه تر لاسه کړې. جمهور رئیس به دا معلومات له چا څخه اخیستي وای؟ البته، ډاکټر صاحب عبدالله هیڅ جواب

را نه کړ او اصلاً یې جواب راکولای هم نه سو.

د پاکو خلکو یو لوی عیب دا وي چې ټولو خلکو ته په خپله هینداره کې ګوري. فکر کوي چې نور خلک به هم تل ریښتیا وایي او یا به بې ضرورته دروغ نه وایي. زه په دې حساب نه د افغانستان په حکومت کې د وزارت لپاره، چې ټول نظام یې په دروغو چلېږي او نه د سیاست لپاره وړ سړی وم. ما باید د سولې په چارو کې اصلاً لاس وهلی نه وای. ځکه چې پر دې مسله باندې تر بلې هرې موضوع بې رحمانه تجارت روان دی. ما د سولې په باب خپلې طرحې او د طالبانو سره ټلیفوني خبرې د دفاع له سرپرست وزیر معصوم ستانکزي، د اولسمشر د ملي امنیت سلاکار حنیف اتمر او ځینو نورو کسانو سره شریکې کړې. ما د امریکا د سفیر سره دوه ځله، د هغه له مرستیال سره یو ځل، د انګلستان له سفیري سره دوه ځله او د کاناډا له سفیري سره دوه ځله په افغانستان کې د سولې په باب خبرې وکړې. ما هر چا ته ویل چې د سولې له پاره څوک ریښتوني ګامونه نه اخلي؛ ځکه چې په سوله کې د هیچا ګټه نشته. ما دوی ټولو ته ویل چې که د سولې د ټینګولو له پاره ریښتونې اراده موجوده وي سوله ممکنه ده. ما دوی ټولو ته ویل چې زه د ځان له پاره هیڅ نه غواړم؛ زما له محبوبیت څخه د وطن او سولې په ګټه استفاده وکړئ. ما دوی ټولو ته ویل چې زه تیار یم د هلمند غرونو او د طالبانو تر کنټرول لاندې سیمو ته ولاړ سم؛ او که په دې لاره کې ووژل سم دا افتخار مې بس دی.

ما عمر خوړلی دی نور څه نه غواړم. داخلي مقاماتو د همکارۍ ژمنه راسره وکړه او سفیرانو، چې دا ټول جنګ او سوله په دوی اړه لري، راته وویل چې د سولې او جنګ خبرې د افغانستان خپل داخلي موضوعات دي؛ خو دوی د سولې د ټینګېدلو په برخه کې، چې د افغانستان، سیمې او نړۍ



په خیر ده، خپل وس نه دریغوي.

څه موده وروسته بیا هم جانان کابل ته راغی او ما بیا هم په سرینا هوټل کې ورسره وکتل. دا ځل هغه راته وویل چې که سعودي عربستان او ترکیه د مولوي ذاکر او د جمهور رئیس تر منځ د لیدلو په برخه کې تضمین کوي نو مولوي ذاکر د هغه سره کتلو ته حاضر دی. ما هغه ته په خپل لګښت په یوه نسبتاً لوکس هوټل کې ځای ونیوی؛ سبا ته مې د طیارې ټکټ ورته واخیست او کندهار ته مې رخصت کړ. ما ایله دوې میاشتې وروسته له جمهور رئیس سره، د پنځو دقیقو له پاره ولیدل او د جانان پیغام مې ور ورساوه. جمهور رئیس راته وویل چې مولوي ذاکر که د نړۍ د هر هیواد تضمین غواړي دی ورته حاضر دی، دی یوازې د سولې له ټینګولو سره علاقه لري او بس. البته زما او د جمهور رئیس بیا لیدل څه باندې درې میاشتې وروسته وسول؛ او دا ځل مې د سولې په باب نه بلکه د خپل وزارت د ستونزو په باره کې خبرې ورسره وکړې. ځکه چې د سولې خبرې او د مولوي ذاکر پیشنهادونه ډېر زاړه سوي ول. ماته معلومه سوه چې د سولې له حیاتي موضوع سره تر هر چا زیات خیانت او منافقت اشرف غني کوي ځکه چې لږ تر لږه یو څه یې په وس کېږي او هیڅ نه کوي. هغه ماته هر ځل سینه ټکوله او زه یې غولولم. که ده ماته ویلي وای چې د سولې او جنګ خبرې په مربوطو ادارو او مقاماتو اړه لري او زه باید خپل د اطلاعاتو او کلتور د وزارت چارې پر مخ بوزم نو ما به یقینا ده او نورو کسانو ته تکلیف نه وای ورکړی او خپل وخت به مې هم بېځایه نه وای تېر کړی.

په دې منځ کې شېر آغا ټلیفون راته وکړ چې دوی له هلمند څخه کندهار ته راغلي دي او دوې ورځې وروسته په بس موټر کې کابل ته راځي. ما د حنیف اتمر له نیژدې سلاکار فرهادالله سره تماس ټینګ کړ. هغه راته وویل چې

دوی به یې له کوټه سنګي څخه واخلي. خپلي امنیتي ودانۍ ته به یې بوزي او د امنیت تر دا ډه کېدلو وروسته به ماته اطلاع راکړي. شېرآغا غوښتل چي په کابل کي زما، حنیف اتمر او، د امکان په صورت کي، له پخواني جمهور رئیس حامد کرزي سره وګوري او خپل نظریات او د سولې په باره کي د خپلو مشرانو پېشنهادونه ورسره شریک کړي. ما کرزي صاحب ته ټلیفون وکړ او هغوی ته مي وویل چي طالبان غواړي زما سریو ځای ستاسي کورته درسي او ستاسي سره وګوري. کرزي صاحب راته وویل چي ستا سره هر څوک ملګری وي زما کورته راتللای سي. زما کور خپل وګڼه.

شېرآغا او د هغه سره یو ملګری، چي ده مولوي صاحب باله، د (۲۰۱۶م.) میلادي کال د پسرلي په سر کي کابل ته را ورسېدل. امنیتي مامورینو د هغوی د رسېدلو اطمینان راکړ او زه د مازیګر پر مهال د هغوی لیدلو ته ورغلم. د شېرآغا عمر د دېرشو او د مولوي صاحب عمر د څلوېښتو کالو په شاوخوا کي معلومېدی. دواړو، د نورو طالبانو په څېر، توري بګړۍ تړلي وې او د طالبانو په څېر یې ګڼي او لویي توري ږیري پرې ایښي وې. تر سلام او روغبړ وروسته مو د چایو په څښلو او خبرو پیل وکړ. له دوی سره ځکه ډېري خبري نه وې چي شېرآغا زما سره، تر دې مخکي، لږ، تر لږه شل ځله په ټلیفون کي خبري کړي وې. هغوی دا یوه خبره ښځي ډېره کوله چي سوله د افغانانو تر منځ په مستقیمو خبرو حلېږي او چي تر څو پوري خبري د پاکستان په لاس او کنټرول کي وي هیڅ نه سي تر لاسه کېدلای. له دوی سره مي وعده وکړه چي سبا به که خیر وي له حنیف اتمر او کرزي صاحب سره وګوري. د مجلس په وروستیو شېبو کي فرهادالله هم کوټې ته راغی. البته دا زموږ د خدای په اماني وخت وو؛ او په دغه شېبه کي شېرآغا او مولوي صاحب دواړو زما لاسونه مچ کړل. د طالبانو دې بې سابقې احترام ته د



فرهادالله خوله وازه پاته سوه. امنیتي کمرو به هم هر څه مشاهده کړي او عکاسي کړي وي. زه یقین لرم چي د طالبانو دې وروستي حرکت، چي هغوی د منتهی اخلاص او درناوي په اساس وکړ، زما او د دوی د سولي کوښښونو ته سخته صدمه رسولې وي؛ ځکه چي حنیف اتمر او د سولي د مسلې نور ټېکه داران داسي چاته، چي طالبان یې لاسونه مچوي، په لوبه کي د ګډون اجازه نه سي ورکولای. دوی فکر کوي چي که دا ډول ریښتوني خلک د سولي په هلو ځلو کي برخه واخلي هر څه ګټي او نعمتونه به د دوی له لاسه ووزي.

په سبا مازیګر له دفتر څخه کورته روان وم چي فرهادالله ټلیفون راته وکړ او راته وې ویل چي زموږ تخنیکي همکاران پر دې دوو کسانو باندي شکمن دي او وایي چي دوی له مشرانو سره نه سي لیدلای. ما ویل دلیل څه دی؟ ویل یې هغه ځوان طالب هیڅ ډوډۍ نه خوري او د پرون راهیسي هیڅ تشناب ته نه دی تللی او هغه مولوي صاحب څو ځله تر چوکیو او کفچونو لاندي کتلي دي او دا حرکتونه یې ډېر مشکوک ښکاري. په زړه پوري خبره دا ده: چي تقریباً دوې هفتې وروسته، د حنیف اتمر په دفتر کي د هغه په مخ کي، یوه امنیتي سلاکار راته وویل چي جهاني صاحب هغه دوه تنه مو ستاسي په احترام پرېښودل کنه موږ بندیانول. ما ویل دلیل څه وو؟ ځکه چي دواړه بې وسلې خلک ول او زموږ په اجازه د خبرو له پاره راغلي ول. البته دا هم زما سادګي وه چي د افغانستان له فاسدي امنیتي دستګاه څخه مي د دلیل او منطق طمع درلوده. زه نه وایم چي د شېرآغا او مولوي صاحب خبرو به نتیجه ورکړې وای؛ خو که د سولي له پروسې سره په دغه ډارن او بې ایمانه منطق سلوک کېږي نو د سولي مسلې ته دي هم خدای خیر پېښ کړي.

ما فکر نه کاوه چي په افغانستان کي به د سولي له مسلې سره، چي د

افغانستان خلک د اکسیجن په څېر اړتیا ورته لري، دونه ظالمانه او بېرحمانه لوبي کیږي. زه په دې مسله کي د دفاع له وزیر، د امنیت د شورا له سلاکار او امنیت له رییس څخه، چي هر یوه خپله لوبه روانه کړې وه چنداني ګیله نه کوم. خو جمهوررییس، چي زه یې د وزیر په حیث مقرر کړی وم، له نیژدې پېژندلم او زما له پاکی او سالم نیت سره بلد وو. هغه ماته په مستقیمه توګه ویلای سوای چي د سولي له پروسې سره کار مه لره. خپل د وزارت کارونه دي پر مخ بوزه.

د دوه زره شپاړسم کال د سپتمبر په میاشت کي مي متحده ایالاتو ته یو رسمي سفر درلود. له همدغه ځایه څخه مي د اکتوبر د میاشتي په پای کي اولسمشر ته، د ناروغۍ په پلمه، خپله استعفی ولېږله. په زړه پوري خبره دا ده چي د کابل حکومت زما د استعفی خبر، په راډیو او ټلویزیون کي خو پرېږده، د اطلاعاتو او فرهنګ د وزارت له خوا په خپرېدونکو اخبارونو کي هم خپور نه کړ. او تر دې لا عجیبه دا چي تر دغي نېټې پوري یې، چي د دوه زره نونسم کال د مې میاشت ده، وزیر نه دی ټاکلی او سرپرست وزیر کار کوي. څرنګه چي زما د ناڅاپي استعفی په باره کي له خلکو سره سوالونه موجود ول او یوازي زما د ناروغۍ په دلیل نه قانع کېدل نو مي یو مضمون خپور کړ او په هغه کي مي په لنډه توګه د خپلي استعفی دلایل وړاندي کړي وه.



## ولي استعفاء؟

کله چي یو څوک یا ورسپارل سوې وظیفه سرته ونه رسولای سي او یا د خپلو پلانونو د عملي کولو په لاره کي خنډونه لیري نه کړای سي. د داسي یوه شخص له پاره، چي زما غوندي په ناروا د جېبونو د ډکولو او پیسو ذخیره کولو نیت ونه لري او اولس او ټولني ته هم د خیر رسولو صلاحیت ورڅخه اخیستل سوی وي نو استعفا لازمه او شرافتمندانه لاره ده.

زما څخه مي نیژدې دوستانو او ملګرو، د ډېره وخته، د استعفا کولو غوښتنه کوله؛ خو ما، په دې تمه چي ګوندي نن یا سبا به کارونه سم سي او یا زه ګوندي د کارونو په سمېدلو کي یوه لږه اندازه تاثیر ولرم، دا اقدام وځنډاوه. زما څخه د (۲۰۱۵م.) کال د جنوري په میاشت کي ډاکتر صاحب اشرف غني وغوښتل چي له هغه سره د اطلاعاتو او کلتور د وزیر په حیث همکاري وکړم. څرنګه چي ما له ډاکټر صاحب سره د زیات و کم څلوېښتو کالو راهیسي پېژندل او بشپړ یقین مي درلود چي هغه به زما له پاکۍ، وطن پالني، نیمګړي پوهي او نیمګړي انرژۍ څخه، د هیواد د ښېګڼي له پاره، ګټه واخلي نو د هماغه کال د فبروري په میاشت کي کابل ته راغلم. د اپریل په میاشت کي اولسي جرګې، د کابینې تر ټولو وزیرانو په کمه رایه، وزیر کړم او په سبا سهار مي په کار پیل وکړ.

زما له پاره په وزارت کي د کار د پرمخ بېولو له پاره د یوه کاري ټیم د جوړولو اړتیا وه، خو د معینانو، کلتوري آتشو او رئیسانو د ټاکلو یا تبدیلولو په برخه کي مي یوازي د ګوتو په شمېر پېشنهادونه ومنل سول او د وزارت په څه باندي یو نیم کال کي د جمهور رئیس سره د خصوصي ملاقات کولو او هغه ته د خپلو مشکلاتو ویلو او پېشنهادونو کولو له پاره ایله څلور ځله د نیم نیم ساعت له پاره وخت راکړه سو؛ په داسي حال کي چي

د هر ځل لیدلو له پاره مي درې تر څلورو میاشتو پوري انتظار وایستی. جمهور رئیس ته ټولي فرعي او اصلي ورغلي لاري د هغه د ارګ کارکونکو، د خپلو شخصي غرضونو له پاره، بندي کړي دي، چي زه د کارونو په مخ کي د هغوی خنډ کېدل پخپله د جمهورریس مسوولیت او ګناه بولم. که یو جمهور رئیس د خپلو وزیرانو د لیدلو او د هغوی د پیشنهادونو یا شکایتونو د اورېدلو له پاره، چي طبیعي خبره ده، د ټوکو او سات تېري له پاره هغه ته نه ورځي، په هفته کي، لږترلږه، یو ځل وخت ونه لري او ټول ملاقاتونه یې د مغرضو غوړه مالانو په لاسونو کي وي نو له وزیرانو څخه د کارونو او فعالیتونو تمه نه سي کېدلای. دا مشکل د اکثریت وزیرانو له پاره عام دی؛ البته داسي نازولي وزیران او د ارګ ځیني کارکونکي سته چي هغوی په هفته کي دوه درې ځله هم له جمهور رئیس سره لیدلای سي. د جمهور رئیس له خوا د یوه وزیر نه لیدل او د ملاقات له پاره په میاشتو معطل کول او یا له وزیر څخه د سکرتر په وسیله د ایمیل له لاري د ملاقات د علت او موضوع غوښتنه کول نه یوازي د کارونو د ځنډېدلو او پر وخت نه عملي کېدلو علت ګرځي بلکه د یوه وزیر حیثیت ته توهین دی. نه پوهېږم چي د ډاکټر صاحب اشرف غني په څېر یو هوښیار او عالم اولس مشر څرنګه دې موضوع ته نه متوجه کېږي. خو د غوړه مالانو او مفسدینو څخه ډک ارګ یې، چي ده پخپله منځته راوړی او انکشاف ته پرې ایښی دی، دو نه خوښ دی چي زما په څېر پاکو خلکو سره ډېر لیده کاته خپل ځان ته سرخوږی بولي.

جمهور رئیس یا په لوی لاس او یا ښایي د خپلو غوړه مالو سلاکارانو په مشوره، چي ده د خپل جمهوري ریاست په سر کي له هغوی څخه د ژغورل کېدلو خواستونه کول، په ارګ کي دننه، د اطلاعاتو او کلتور د وزارت سره موازي اداري جوړي کړي وې چي د وزارت ورځني کارونه یې نه یوازي ځو



چنده ګران کړي بلکه وزارت یې عملاً فلج کړی او بې صلاحیته کړی وو. تر هغه ځایه چي زه معلومات لرم، د نورو اکثرو وزیرانو همدغه حال وو. زما غوندي یوه وزیر له پاره، چي په ټول ژوند کي یې د یوې ذرې خیانت او اختلاس کولو خوب هم نه وي لیدلی، په دې شرایطو کي کار ته دوام ورکول چنداني ممکنه نه وه. که په وزارت کي لازم کارونه نه وي سوي، چي زه یقین لرم نه به وي سوي، نو اصلي او یوازینی علت یې دا وو چي زما لاسونه په مطلق ډول تړلي ول او د اجرآتو او د تغییر او تبدیل په برخه کي تقریبا ټول صلاحیتونه یا ارګ او یا د اداري اصلاحاتو فاسدي اداري را څخه سلب کړي وه. دا چي ولي مي تر اوسه پوري په دې باره کي څه نه دي ویلي او ولي مي خوله په شکایت نه ده خلاصه کړې، یوازینی علت یې دا وو چي یو وزیر د حکومت پر اجرآتو باندي یوازي هغه وخت د انتقاد کولو حق لري چي له حکومت څخه دباندي وي؛ یعني استعفی یې کړې وي.

له استعفی څخه وروسته مي اوږې سپکي سوې او پر کور کښېنستلم. وخت په وخت په ادبي محفلونو کي برخه اخلم. کله نظم او کله نثر لیکم. د ارغوان په نوم لسمه شعري مجموعه مي په (۲۰۱۸م.) کال کي د سوېډن افغانانو راته چاپ کړه. تاریخي څېړني په نوم کتاب دوهم ټوک مي، چي زما د تاریخي مضامینو مجموعه ده، بشپړ کړی دی، أدبي پلټني کتاب، د پښتو شعر ځیني توکي او اړخونه او د شعر پر ښکلي مخ د خط بدرنګه کرښي په نوم کتابګوټي مي ټول چاپ ته تیار دي. څوک یې ځکه چاپولو ته زړه نه ښه کوي چي وایي په بازار کي به خرڅ نه سي او تاوان به راته وکړي. زه یې په خپل لګښت ځکه نه چاپوم چي دا یو څه بې انصافي او د ځان په حق کي ظلم راته ښکاري چي هم کتاب ولیکم او هم یې د چاپولو او توزیع کولو یا ویشلو او ترلوستونکو پوري د رسولو لګښت پر غاړه واخلم. ښایي په یو څه وخت

کي خپله يو ولسمه شعري مجموعه هم بشپړه کړم؛ ځکه چې په بېکاري کي سړی شعرونه ليکي نو بل به څه کوي.

نن سبا امريکايانو، له طالبانو سره، د سولي د خبرو هنګامه بيا توده کړې ده. د دې خبري اصلي علت دا دی چې امريکايان، د وسلو په زور، د طالبانو په له منځه وړلو کي ناکام سول او دغه راز روسيې، چې د افغانستان په ټول معاصر تاريخ کي يې هيڅ وخت، د دې هيواد په چارو کي مثبت رول نه دی درلودلی او هر وخت د افغانستان د بربادۍ سبب سوی دی، ميدان ته ودانګل او ځو ځله د افغانانو تر منځ د سولي د خبرو کوربه سو. د افغانستان جنګ امريکا پيل کړی او اوس هم د جنګ د دوام عمده عامل، په افغانستان کي، د هغوی د پوځيانو جضور دی؛ او که جنګ پای ته رسېږي نو هم به يې عمده اړخ امريکا وي. ځکه نو هغه هيواد هم بېکاره پاته کېدلای نه سي. ځو ځله يې له طالبانو سره مستقيم او غير مستقيم تماسونه ټينګ کړي دي. خو په دې وروستي يوه کال کي يې خپل خاص استازی ډاکټر زلمی خليل زاد، چې د (۱۹۸۰م.) د لسيزي راهيسي د افغانستان په چارو کي د امريکا عالي رتبه مامور دی، دوه درې ځله په قطر کي د طالبانو مرکز ته لېږلی او خبري يې ورسره کړي دي. اوس خو د سولي خبري چنداني برياليۍ نه ښکاري. امريکا او طالبان په خپلو غوښتنو او شرايطو کي ډېر زيات سره ليري دي او جنګ دوام لري. اوس خو د سولي څرک نه لګېږي او زه چې په خپل عقل ورته ګورم نو ويلای سم چې دا وړۍ نه شړۍ کېږي. د دې خبري معنی دا نه ده چې سوله ممکنه ده؛ بلکه اوس حاضر، له سختو ستونزو سره مخامخ ده. ټول هغه اشخاص او ډلي چې د امريکا په زور يې قدرت ترلاسه کړی او د ميليارډونو ډالرونو څښتنان سوي دي، د طالبانو په وجود کي خپل قدرت په خطر کي ويني؛ ټول خپله چاره په اوبو کي ويني او له سولي سره، نه يوازي صادقانه



همکاري نه کوي، بلکه ورسره مخالف دي او پر ضد يې کار کوي. دا هغه اشخاص او ډلي دي چې د سولي په ټينګولو کي عمده رول لري او د سولي د ټينګولو قدرت ورسره دی خو په هيڅ توګه د سولي کولو نيت نه لري. دا کسان يوازي او يوازي په هغه صورت کي سولي ته حاضر دي چې طالبان، لکه د امريکا د دفاع وزير ډانلډ رمزفيلډ چې غوښتل، خپلي وسلې پر مځکه کښېږدي او د دوی امر ته تسليم سي. دا هغه څه دي چې په هيڅ صورت امکان نه لري. طالبان اسلامي امارت غواړي او دا هم هغه څه دي چې د طالبانو څخه پرته هيچا ته د منلو وړ نه دي. په دې صورت کي نو د امريکايانو له وتلو څخه وروسته داخلي جنګ حتمي دی. داخلي جنګ داسي بدمرغه پديده ده چې هيڅوک يې د دوام او تلفاتو پيش بيني نه سي کولای. موږ به فقط دعا کوو چې داخلي جنګ پيل نه سي او که پيل کېږي چې هر څونه لنډ وي او ځاني او مالي تلفات يې کم وي.

زه، د مطلقي بېکارۍ او بې مضمونۍ په صورت کي، کله نا کله فيسبوک هم ګورم. يعني، د استاد برهان الدين رباني د قول په خلاف، چنداني فيسبوکي نه يم. په فيسبوک کي چې کله د ځان په باب د ځينو کسانو نظرونه لولم ورته حيران سم. چې له حکومت سره مي کار کاوه خلک راته په قار ول چې دا فاسد حکومت په کار کولو ارزي چې ته ورسره لګيا يې؟ او چې استعفی مي وکړه اوس راته په قار دي وايي ولي دي ميدان پرېښود. په هر صورت د ښار دروازې تړل کېږي د عالم خولې نه تړل کيږي. د فيسبوک هم يوه عجيبه دنيا ده. خلکو اکاونټونه خلاص کړي دي. خو حيران دي چې څه وليکي. کله، کله خپل عکسونه، کله د کورنۍ عکسونه او کله د انډيوالانو سره يو ځايي عکسونه پکښي خپروي او دوستان يې ماشاءالله ورته وايي. دوی هم ورته خوشاله وي. کله يوه بل ته سپکي سپوري وايي؛ چې په دې لړ

کي زه هم چنداني ورڅخه خلاص نه یم. مثلاً، ما یوه غزل یا یو نظم لیکلی دوی د دې پر ځای چي د غزل په باب کوم نظر ولیکي، چي طبعاً یې سویه او سواد نه لري، ماته په بد ویلو لیګا سي او وایي چي زه که ریښتیا ښه سړی وای وطن به مي نه پرېښودلای. اوس نو دا خبره له چا سره سپینوې چي غزل د ښه سړیتوب او یا په وزارت کي له ښو اجرآتو سره څه اړه لري؟ او داسي نور.

په فیسبوک کي چي د خپلو ځوانانو او حتی د پاخه عمر ښځینتنو لیکوالانو املایي غلطیو ته ګورم نو خدای سته چي زړه مي پر خوږیږي. یوه ورځ مي، د خواخوږۍ له مخي، یو څو املایي غلطۍ په ګوته کړې او له ځوانانو څخه مي وغوښتل چي خپلو غلطیو ته متوجه سي. دوی د دې پر ځای چي زما څخه مننه وکړي ما ته یې په سپکو ویلو بنا کړې وه او راته لیکلي یې وه چي ته که ښه یې خپلي املایي غلطۍ دي اصلاح کړه. ما که په ریښتیا هم املایي غلطۍ درلودلي وي هم دوی باید خپلو املایي غلطیو ته توجه کړې وای؛ زما املایي غلطۍ به یې هم په ګوته کړې وای او په ګډه به مو کار کړی وای.

ما په یوه ورځ په فیسبوک کي څو عمده املایي غلطۍ ولیدې چي د مثال په ډول یې درته راوړم. چهارراه بې شرعي (یعني چهار عیب شرعي) په دې به کوم مسلمان پوه سي؟ یوه بل سړي خپلوانو ته، چي وفات سوي ول، د دعا غوښتنه کړې وه. یوه د ایخلاص (اخلاص) دوعا (دعا) وکی رب الجلیل دي تاسي ټولو ته هجر (اجر) درکړي. یوه ملګري بل ملګري ته لیکلي وه: صفر (سفر) دي بېختره (بې خطره) د تګ تاریخ دي هم غلت (غلط) راکړی وو. فه (په) زړه فوري (پوري) خوندور شعر.

یوه بل سړي لیکلي وه چي محمدزي باید یو لاس سي او خپل کارونه په مشهوره (مشوره) سره سرته ورسوي. یوه بل لیکلي وه ښاغلی مهترم (محترم) او موعزز (معزز) بل یوه لیکلي وه چي اتفاق په تعلیم کي دی



ښتانه باید تعلیم ته توجع (توجه) وکړي.

د خواشینۍ خبره دا ده چي ما دا غلطۍ پر خپلو ځوانانو باندي د پېرزوینې له امله په ګوته کړي وې، خو ځینو ځوانانو دونه سخت عکس العمل ښودلی و چي زه یې ښکنځلی وم. که څه هم چي ما د هیڅا نوم نه وو یاد کړی او نه مي چا ته اشاره قدر کړې وه.

په هر صورت دا د یوې ورځي کار نه دی. اوګره په تلوار نه سرېږي. تر دغه ځایه چي راغلي یو او په فیسبوک کي لیکني کوو دا هم ډېره ده. خدای مهربانه دی ټول کارونه به کرار کرار سم سي.

د خپلي شاعرۍ او لیکوالۍ په برخه کي، چي اوس یې نو څه کم پنځوس کاله کیږي، باید په عمومي صورت یوه لنډه تبصره وکم او هغه دا چي په خپل ټول ژوند کي مي په نیم بیت او په نیمه جمله کي د هیڅ زمامدار او واکمن صفت نه دی کړی. له خپلو ټولو ځوانانو څخه مي هیله دا ده چي په دغه برخه کي زما لاره، چي زه ورباندي ویاړم، تعقیب کړي. ژوند تیریږي، شرایط هره ورځ تغییر کوي خو شعرونه او لیکني د کاغذ پر مخ پاتېږي او افتخار یې تل شاعر او لیکوال ته پاتېږي او شرم یې هم تر قیامته پوري د شاعر او لیکوال په برخه وي. ما ځینو شاعرانو ته د امریکا ږغ راډیو د مستقیمو ادبي پروګرامونو له لاري توصیه کړې ده چي د واکمنانو په صفت، چي نن به وي سبا به نه وي، خپل قلم او وجدان ته دایمي مسوولیت او شرم مه پرېږدی.

په ژوند کي مي یو بیت او یوه داسي جمله نه ده لیکلې چي د قومي، ژبني او نژادي تعصب بوی ورڅخه راسي. هر څه چي مي لیکلي دي د ټول افغانستان لپاره مي لیکلي دي. که څوک د ټول وطن آبادي غواړي نو باید چي د وطن د ټولو اوسېدونکو ګټي په نظر کي ونیسي. په دې کي شک نسته چي هر سړي ته خپل ځان، خپل ټبر، خپله ژبه او خپل قوم ګران وي او

لومړيتوب ورته لري. دا هيڅ عيب نه دی بلکه د افتخار خبره ده. خو د دې معنی دا نه ده چې شاعر او ليکوال د خپل هيواد د نورو قومونو په خلاف څه وليکي او يا په ښېګڼو کي نور قامونه هېر کړي. دې فارمول ته مو بايد پام وي چې د افغانستان د يوه قام دښمن د ټول افغانستان دښمن دی. د هر چا له خولې، قلم او عمل څخه چې د هر ډول اختلاف ايجادولو بوی راځي هغه د ټول افغانستان د ټولو قومونو ګډ دښمن دی.

د خپل ځان سوانح ليکلو پيل کول يو څه اسانه وي. هر څوک په يوه ښار کي په يوه وخت کي زېږېدلی او بيا نو ښوونځي ته تللی وي. د ژوند څه خوږې ترخې يې ليدلي وي. ځيني يې په لوستلو ارزي او ځيني يې، که څه هم د ليکوال لپاره به ډېر اهميت ولري، په يوه ځل لوستلو هم نه ارزي. خو ختمول يې ځکه ګران وي چې سړی نه پوهېږي، چېږي تم سي. ځکه نه پوهېږي چې په باقي شپو ورځو کي، چې هيڅ ته يې درک نه معلومېږي، ښايي تر مخکنيو پېښو ډېري مهمي پېښې منځته راسي. زه به دا خبري قسمت ته پرېږدم او نور به د خپلو لوستونکو سر نه خوږوم. که څه هم چې تر دغه ځايه به مي هم ډېر په عذاب کړي وي. زه به پر دغه ځای، چې د (۲۰۱۹م.) کال د سپټمبر مياشت ده خپله سوانح عمري يا ژوند ليک پای ته ورسوم.

پای

## د ښاغلي جهاني چاپ آثار:

۱-ورکه مېنه، شعري مجموعه.
۲-پايکوب، شعري مجموعه.
۳-د سباوون په تمه، شعري مجموعه.
۴-شپېلۍ، شعري مجموعه.
۵-کوه طور، شعري مجموعه.
۶-راز و نياز، شعري مجموعه.
۷-کوثر، شعري مجموعه.
۸-معراج، شعري مجموعه.
۹-فردوس، شعري مجموعه.
۱۰-ارغوان، شعري مجموعه.
۱۱-پند او عبرت، منظوم داستانونه.
۱۲-د مشکو کاروان، څېړنه او کره کتنه.
۱۳-د پښتو په سُر او تال کي د غربي سندرو شرنګ، له انګريزي څخه منظومه ترجمه.
۱۴-غربي ګلونه شرقي لمني، د انګريزي اشعارو منظومه ژباړه.
۱۵-بهګت کبير د پښتو په بڼ کي، د هندي متصوف شاعر بهګت کبير د اشعارو منظومي ژباړي.
۱۶-د خيام رباعيات، د عمر خيام د رباعياتو منظومي ژباړي.
۱۷-قوماندان، ناول.
۱۸-هرات، پښتانه او ستره لوبه، تاريخي څېړنيز اثر.
۱۹-د پښتو د فوکلوري نکلونو لنډ تحليل، څېړنيز اثر.
۲۰-ادبي پلټنې، څېړنيز اثر.
۲۱-تاريخي څېړني، تاريخي څېړنيز اثر.
۲۲-د پښتو شعر هينداره، ادبي، څېړنيز اثر.
۲۳- زما ژوند، ليکوالي او شاعري، همدغه اثر.